وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

# تفسیر

# أحسن الکلام



بلغة البشتو

للشیخ أبی زکریا عبد السلام الرستمی

## الجزء الخامس
پنځم جزء

از سورة یونس آیة ۱۰ تا سورة مریم آیة ۱۹

الناشر
جامعة عربیة لاشاعة التوحید والسنة
بده بیر - پشاور

| سورة يونس مكية | بسم الله الرحمن الرحيم | اياتها ١٠٩ ركوعاتها ١١ |
|---|---|---|

خاص په نوم د الله تعالى امداد غواړو په شروع كولو كښې چه رحمٰن او رحيم دے

الٓرٰ ۚ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ①

الله تعالى ښه پوهيږى په مطلب د دے، دا آيتونه دى د دا سے كتاب چه حكمتونو والا دے۔

بسم الله الرحمن الرحيم

## سورة يونس

ربط :- ربط دا دے چه مخكښې سورتونو كښې (سورة الانفال او سورة التوبه) د مشركانو سره د جنګ كولو اعلان ووُ نو په دے سورت كښې د هغوى د شرک حقيقت بيانوى چه سبب د قتال دے او جواب د سوال د هغوى دے كه هغوى اُوائى چه مونږ سره په څه سبب جنګ كوئ مونږ خو الله تعالى منو په دے سورت كښې جواب وركوى چه تاسو د الله تعالى سره شريكان جوړ كړيدى په عقيده د شفاعت قهريه شركيه سره او دا عقيده شرک او كفر دے او دا رنګ هر كله چه سورة التوبه كښې شرک د مشركانو او د كتابيانو او نفاق د منافقينو ذكر كړے شو نو په دے سورت كښې هغه ټولو ته دعوت وركول دى د توحيد او د رسالت او د قرآن او ايمان بالآخرت طرف ته۔

دعوىٰ د سورت :- رد د شفاعت قهريه شركيه په ۳ او ۱۸ آيت كښې او دغه رد په ډيرو وجوهو سره دے۔ اول په عقلى دليلونو سره۔

دويمه وجه په ذكر د ډيرو اقسامو د شرک سره۔

دريمه وجه په نقلى دليلونو سره،

څلورمه وجه، په ډيرو زجرونو سره۔

پنځمه وجه، قباحتونه د مشركانو۔

شپږمه وجه، اقرار د مشركانو په بعضے صفتونو د الله تعالى سره د دعاء د هغوى د الله تعالى ته په حالت د سختئ كښې۔

خلاصه د سورت :- په دے كښې پنځه بابونه دى اول باب ۲۰ آيت پورے دے په دے كښې ترغيب دے كتاب الله ته او شپږ زورنے دى او درے عقلى

أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَا

آیا دے خلقو لره تعجب دے پدے خبره چه وحی کړیده موږ ه

إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ أَنْ أَنذِرِ النَّاسَ

یو سړی ته دَ دوی نه چه ادیره وه خلق (ته منونکی)

وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا أَنَّ لَهُمْ

او زیرے ورکړه ایمان والو لره چه یقینًا دوی دپاره

قَدَمَ صِدْقٍ عِندَ رَبِّهِمْ ۗ قَالَ

مرتبه اوچته ده په نیز دَ رب دَ دوی ، وائی

الْكَافِرُونَ إِنَّ هَٰذَا لَسَاحِرٌ مُّبِينٌ ﴿٢﴾

کافران بیشکه دے جادوګر ښکاره دے۔

دلیلونه دی او بشارت دے منونکو ته او تخویف دنیوی او اخروی دے نه منونکو ته۔

تفسیر:- ۱:- په اول آیت کښ ترغیب دے قرآن ته . اَلْحَکِیْم په معنیٰ دَ حکمتونو والا یا په معنیٰ دَ حاکم یا په معنیٰ دَ محکم دے او لفظ دَ حکیم اشاره ده دیته چه پدے سورت کښ عقلی دلیلونه بیا تیری او هغه حکمت دے۔

۲:- دا زورنه ده منکرینو دَ رسول ته چه هغوی دَ نبی نه انکار کوؤ پدے وجه چه دے سړے دے او بشر دے ، او دا آیت دلیل دے په دے خبره باندے چه نبی علیه السلام سړے وؤ دَ جنس دَ بشر نه او دَ هغه ئے دوه کارونه ذکر کړیدی . یو یره ورکول او دویم زیرے ورکول.

قَدَمَ صِدْقٍ . یو معنیٰ دَ دے مرتبه اوچته . دویمه معنیٰ دَ خالسته اجر په سبب دَ نیکو عملونو چه مخکښ ئے لیږلے دی او تعبیر ئے په قدم سره دَ دے وجے نه کړیدے چه سعی او کوششونه په قدم سره کیدلے شی۔ بیا زورنه ده پدے خبره چه دوی نبی صلی الله علیه وسلم ته ساحر وئیلو۔

أَنذِرِ ، انذار وئیلے شی اخبار ته سره دَ تخویف نه او بَشِّرِ ، بشارت وئیلے شی اخبار سره دَ سرور (خوشحالئ) نه۔

إِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَٰوَٰتِ

بیقینًا رب ستاسو اللہ تعالیٰ دے هغه ذات چه پیدا کړی ئے دی آسمانونه

وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ

او زمکه په اندازه دَ شپږو ورځوکښې بیا برابر شویدے

عَلَى الْعَرْشِ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ ۖ مَا مِن

په عرش باندے (دَ خپل شان مناسب) انتظام کوی دَ ټولو کارونو، نشته هیڅ

شَفِيعٍ إِلَّا مِن بَعْدِ إِذْنِهِ ۚ ذَٰلِكُمُ

سفارش کوونکے مگر پس دَ هغه دَ اجازت نه، دا صفتونو والا

اللَّهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٣﴾

اللہ تعالیٰ رب ستاسو دے نو بندگی کوئ هغه لره، آیا نو نه قبلوئ نصیحت تاسو۔

مٹ۔ دا بیان دَ وحی دے چه ان اوحینا کښې ذکر ده او دلیل عقلی دے په توحید باندے او پدے آیت کښې رد دَ شفاعت قهری دے او په هغے باندے تفریع ده په لفظ دَ فَاعْبُدُوهُ۔

إِنَّ رَبَّكُمُ، پدیکښې اثبات دَ توحید ربوبیت دے او دلته رب په معنیٰ دَ حاجات پوره کوونکے یا په معنیٰ دَ حقدار دَ بندگئ دے۔

اللَّهُ الَّذِي، پدیکښې مقصد ذکر دَ معرفت دَ اللہ تعالیٰ دے په درے صفتونو سره۔ ع۱ خالق دے۔ ع۲ دَ عرش دپاسه دے۔ ع۳ تدبیر کوونکے دے۔

معنیٰ دَ سِتَّةِ أَيَّامٍ، او اِسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ، تفسیر په سورة الاعراف کښې ذکر شوے دے۔

الْأَمْرَ، الف لام دَ پاره دَ استغراق دی یعنی ټول څیزونه او کارونه یعنی دا انتظام کښې هیڅ قطب او غوث وغیره نه سپارلے نه دے۔

مَا مِن شَفِيعٍ، دا رد دے په عقیده دَ مشرکانو باندے چه هغوی وائی چه مونږ خپل معبودان خالق او مدبر نه گنړو سفارشیان ئے گنړو۔

فَاعْبُدُوهُ، پدیکښې رد دے په شرک فی العبادة باندے۔

إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا ۖ وَعْدَ اللَّهِ

خاص هغه ته ګرځېدل ستاسو د ټولو دي ، وعده كړېده الله تعالى

حَقًّا ۚ إِنَّهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ

وعده حقه ، يقيناً هغه اول پيدا كوي مخلوق بيا به

يُعِيدُهُ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا

دوباره پيدا كوي هغه د دې د پاره چه بدله وركړي هغه كسانو ته چه ايمان يې راوړيدلے

وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ بِالْقِسْطِ ۚ وَالَّذِينَ

او عملونه يې كړيدي نيك په انصاف سره ، او هغه كسان

كَفَرُوا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ

چه كفر يې كړيدے دوى لره څښل دي د يشيدلو اوبو نه

وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴿۴﴾

او عذاب دردناك دے په سبب د هغې چه دوى كفر كوي .

سـ۴ :- د تذكير د توحيد نه روستو په دے آيت كښ اثبات د آخرت دے په دے جملو كښ او بيا زيرے دے مؤمنانو ته او ويره اخروى ده د پاره د كافرانو او دا آيت بيان د انذار او د بشر دے .

لِيَجْزِيَ ، لام متعلق دے د مرجعكم يا د يعيده سره او دا حكم د بعث بعد الموت دے .

بِالْقِسْطِ ، دا متعلق دے د يجزي سره او قسط صفت د الله تعالى دے يعني جزاء د مؤمنانو په عدل سره وركوي يا قسط صفت د مؤمنانو دے يعني توحيد او نيك اعمال د دوى سبب د جزاء دے نو با سببيه ده .

مِنْ حَمِيمٍ ، په من سره اشاره ده چه دا يو نوعه ده د مشروب او د دينه علاوه نور مشروبات هم شته دے .

بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ، دا مقابل دے د بالقسط سره په دويمه معنى سره ۔

هُوَ الَّذِىْ جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَآءً

خاص الله تعالىٰ هغه ذات دے چه گرځولے ئے دے نمر ډیرے رڼا والا

وَّالْقَمَرَ نُوْرًا وَّ قَدَّرَهٗ مَنَازِلَ

او سپوږمۍ (لږے) رڼا والا او مقرر کړے ئے دی هر یو د پاره منزلونه

لِتَعْلَمُوْا عَدَدَ السِّنِيْنَ وَالْحِسَابَ

دے د پاره چه معلوم کړئ تاسو شمار د کلونو او حساب (د میاشتو او ورځو)

مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ اِلَّا بِالْحَقِّ

نه دی پیدا کړی الله تعالىٰ دا څیزونه مګر د حق ښکاره کولو د پاره

يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۵﴾

تفصیلی بیانوی دلیلونه هغے قوم لره چه پوهیږی ۔

ف :۔ دا دویم دلیل عقلی دے د پاره د توحید رڼا یو عرض (کیفیت) خاصه دے نو اصل د دغه کیفیت ته نور وئیلے شی او چه دا کیفیت کامل او قوی وی نو هغے ته ضیاء وئیلے شی ۔

وَقَدَّرَهٗ مَنَازِلَ ، مراد د دیته منزلونه د نمر او د سپوږمۍ دواړو دی یا صرف منزلونه د سپوږمۍ دی ۔ او دویم قول غوره دے په قرینه د سورة يٰس ۳۹ او په دغه منازلو د قمر سره ورځے او شرعی میاشتے معلومیږی او دا اته ویشت دی ۔ او مراد د منزلونو نه ځایونه د راختلو او پریوتلو د هغے دی ۔

عَدَدَ السِّنِيْنَ ، یعنی وخت د شروع کیدلو او ختمیدلو د کال ۔

وَالْحِسَابَ ، مراد د دیته حساب د میاشتو او د ورځو دے ۔

مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ اِلَّا بِالْحَقِّ ، حق نه مراد ظاهرول د مسئلے د توحید او دلیل په قدرت او په علم د الله تعالىٰ دے ، او دا سے تفسیر خازن کښ لیکلے دی نو دا آیت دلیل دے په دے خبره چه حدیث د لولاک ، لکه چه مشهور دے په ژبو د خلقو د هغے معنىٰ هم صحیح نه ده لکه چه

إِنَّ فِي اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ

بيقينًا په تلو راتلو د شپه او د ورځ كښ

وَمَا خَلَقَ اللَّهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

او په هغه څيزونو كښ چه پيدا كړيدى الله تعالى په آسمانونو او په زمكه كښ

لَآيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَّقُوْنَ ﴿٦﴾ إِنَّ الَّذِيْنَ

خامخا ډير دليلونه دى د هغې قوم دپاره چه يريږى د الله تعالى نه، يقينًا هغه كسان

لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا وَرَضُوْا بِالْحَيٰوةِ

چه نه لرى عقيده د ملاقات زمونږ او رضا شوى دى په ژوند

الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّوْا بِهَا وَالَّذِيْنَ

دنيوى او خوشحاليږى پدے دنيا سره او هغه كسان

الفاظ ئے محدثينو رد كړيدى - الفوائد المجموعه ص٣٢٦، كشف الخفاء ص٢٨٦ دواړو د صنعانى نه نقل كړيدى چه دا حديث موضوع دے -
هاں كه دا معنٰى اوكړے شى "چه نه وے ستا ليږل مكر د پاره د اظهار د مسئلے د توحيد" نو بيا څه وجه د صحت لرى په اعتبار د معنٰے سره ليكن دا توجيه ډيره بعيد دة -

س٦ :- دا دريم عقلى دليل دے - إِنَّ فِي اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ، يو بل پسے راتلل او د لسے رنګونه د دوى بدليدل او د لسے كميدل او زياتيدل -
لَآيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَّقُوْنَ ، مراد د دينه توحيد والا دى ځكه څوك چه شرك كوى نو هغه دليلونه نه نيسى د دے مخلوقاتو نه -

هُمْ عَنْ اٰيٰتِنَا غٰفِلُوْنَ ﴿٧﴾ اُولٰٓئِكَ

چه دوی زموږ د آیاتونو نه بې پرواه دي - دغه کسان

مَاْوٰىهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿٨﴾

ځاى د دوى اور دے په وجه د هغه عملونو چه دوى ئې كوى -

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

يقيناً هغه كسان چه ايمان ئې راوړيدے او عمل كوى په طريقه د پيغمبر صلى الله عليه وسلم

يَهْدِيْهِمْ رَبُّهُمْ بِاِيْمَانِهِمْ تَجْرِيْ

او به رسوى دوى لره جنت ته رب د دوى په سبب د ايمان د دوى چه بهيږى به

مِنْ تَحْتِهِمُ الْاَنْهٰرُ فِيْ جَنّٰتِ

لاندې د بنګلو د دوى نه ولے اوسى به په جنتونو

ف :- په دے آيت كښ زور نه ده منكرينو ته او د هغوى څلور صفتونه ئې ذكر كړيدي -

اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا، رجاء په معنٰى د يره او په معنٰى د اميد او په معنٰى د عقيدے سره دے . دلته آخرى معنٰى مراد ده .

وَرَضُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، معنٰى دا ده چه راضى شوى دى دوى په ژوند دنيوى سره په عوض د آخرت كښ نو عمل كوى د پاره د دنيا -

وَاطْمَاَنُّوْا بِهَا، اطمينان د زړه په دنيا سره نه حاصليږى نو مراد د دينه نه خوشحاليدل او د هغے په محبت كښ پاخه كيدل دى -

غٰفِلُوْنَ ، غفلت په معنٰى د جهل او د سادګئ سره مراد نه دے بلكه بے پرواهى او اعراض كول مراد دى - او ايٰت نه مراد دليلونه د توحيد يا قرآن دى -

ف :- دا بيره اخروى ده د پاره د منكرينو او دا خبر د اِنَّ دے -

النَّعِيْمِ ﴿٩﴾ دَعْوٰىهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَكَ

دَ نعمتونو کښې ـ بلنه دَ دوی په دے جنت کښې دا وی چه پاکی ده تالره

اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ ج

اے الله او پیشکشي دَ دوی به په جنت کښې سلام وی

وَاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ

او آخری بلنه به دَ دوی دا وی چه ټول صفتونه دَ خدائے توب دَ الله تعالیٰ دی

رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٠﴾ ع وَلَوْ يُعَجِّلُ اللّٰهُ

چه رب دَ عالمینو دے ـ او که زر رسولے الله تعالیٰ

ف ۱:- دا زیرے اخروی دے دَ پاره دَ متونکو ـ

يَهْدِيْهِمْ رَبُّهُمْ بِاِيْمَانِهِمْ، یو معنیٰ دا ده چه کوی دوی ته هدایت په سبب دَ ایمان دَ دوی سره ـ

دویمه معنیٰ دا ده چه جنت ته بوځی دوی لره رب دَ دوی په سبب دَ ایمان دَ دوی ـ

په اوله معنیٰ سره هدایت په معنیٰ دَ توفیق دَ اعمالِ صالحه دے او په دویمه معنیٰ سره هدایت په معنیٰ دَ رسولو دے جنت ته ـ

مِنْ تَحْتِهِمْ، مراد دَ دیته لاندے دَ بنګلو او محلونو دَ دوی نه ـ

ف ۲:- دا هم پدے زیری کښې داخل دے ، مطلب دا دے چه کله دوی څه شے خواړی دَ جنت دَ نعمتونو نه نو آواز به اوکړی په سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ، سره او کله چه ختم کړی خوړل او څښکل نو وائی به اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ، یا مراد دا دے چه هر وخت کلام دَ دوی به شروع کیږی په سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ سره او ختمیږی به په اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ سره ـ

وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ، یو معنیٰ دا ده چه پیشکشی دَ دوی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه لفظ دَ سلام به وی ،

بله معنیٰ دا ده چه سلام کول دَ دوی یو بل ته یا دَ ملائکو دَ طرف نه مبارکی به وی په سلامتیا سره دَ عذاب نه ـ

لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ

خلقو ته تکلیف (په وجه دَ غوختلو دَ دوی) پشانتې دَ زر غوختلو دَ دوی خیر لره (چه هغه زر قبلوی)

لَقُضِيَ إِلَيْهِمْ أَجَلُهُمْ ۖ فَنَذَرُ

خامخا پوره شوې په وې دوی ته نیټې دَ دوی ، نو پرېږدو مونږ

الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا فِي

هغه کسان چه نه لري عقیده دَ ملاقات زمونږ په

طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ⑪ وَإِذَا مَسَّ

سرکشئ دَ دوی کښې ګرځي به وي . او هر کله چه اورسي

نو په اوله معنیٰ سره سلام په خپله معنیٰ مشهورې سره دې او په دویمه معنیٰ سره سلام په معنیٰ دَ مبارکئ دَ سلامتیا سره دې .

١١ :- دَ دې تعلق دَ ٢ آیت سره دې یعنې کوم خلق چه تعجب کوی دَ رسالت دَ دې رسول نه او هغوی دَ ځان دَ پاره عذاب غواړی لکه په انفال ٣٢ آیت کښې دی لیکن الله تعالیٰ دَ هغوی اجابت نه کوی دا رنګ دَ دې آیت تعلق دَ لفظ دَ رب العالمین سره دې یعنې دَ ربوبیت په وجه سره الله تعالیٰ دَ دوی خیر زر نه قبلوی او دا زور نه ده منکرینو ته مطلب یې دا دې چه دوی کله دَ ځان دَ پاره خیر غواړی او الله تعالیٰ یې ورله زر ورکوی او دا رنګې کله دوی دَ ځان دَ پاره عذاب غواړی لیکن الله تعالیٰ دا دُعا زر نه قبلوی، که الله تعالیٰ زر قبلولې نو دوی به یې تر اوسه هلاک کړي وې ، ابن قتیبه وئیلی دی چه په دې کښې دا هم داخل ده چه بعضې انسان په وخت دَ غصّه کښې ځان ته او خپل بال بچ وغیره ته خیرې کوی او مرګ او هلاکت غواړی لکه ما مو او قاتو کښې څرنګه چه رحمت او روزی او صحت وغیره غواړی نو الله تعالیٰ خو دَ دوی دعاګانې دَ خیر زر قبلوی لیکن که خیرې دَ دوی الله تعالیٰ زر قبلولې نو دوی به زر هلاک شوی وو لیکن انسان له خیرې کول په ځان او په اولاد باندې په حدیث کښې منع دی هسې نه چه دا سې وخت

الْإِنْسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنْبِهٖٓ

يو انسان ته تکليف نو بلي موږ په ډډه خمله

أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَآئِمًا ۚ فَلَمَّا كَشَفْنَا

يا په ناستې يا په ولاړې نو هرکله چه لرې کړو موږ

عَنْهُ ضُرَّهٗ مَرَّ كَأَنْ لَّمْ يَدْعُنَآ

د ده نه تکليف د ده نو روان شي په شرک خپل لکه چه بلنه يې نه وه کړې زموږ

إِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ ۚ كَذٰلِكَ زُيِّنَ

هغه تکليف ته چه رسيدلے وو ده ته، دغسې خائسته کړے شوے دے

لِلْمُسْرِفِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٢﴾

مشرکانو ته هغه عمل چه دوی يې کوی ۔

سره برابرے او خوری چه په هغے کښ دُعاګانے قبليږی نو بيا به پښيمانه وی۔

فَنَذَرُ الَّذِيْنَ لَا يَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا، خو کله چه زړ يې نه هلاکوی نو مهلت ورکوی۔

فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ، د دينه مراد شرک او کفر او ګناهونه دی او د دے تفسير په سورة بقره کښ تير شوے دے۔

١٢: تير شوی آيت کښ طلب د عذاب ذکر شو نو په دے آيت کښ ثابتوی چه دوی په دے طلب کښ دروغژن دی ځکه چه په حالت د ضرورت کښ بيا د خير دُعاګانے غواړی نو دا هم زور نه ده منکرينو ته، مطلب يې دا دے چه بعضے انسان په حالت د تکليف کښ خاص د الله تعالیٰ نه مدد غواړی او هر کله چه الله تعالیٰ د ده نه مصيبت لرے کړی نو بيا په شرک پاندے روان شی دا سے په سورة روم ٣٣ او سورة سجده ١٥ آيت کښ ذکر دی دغسے بعضے مؤمنان هم په حالت د تکليف کښ الله تعالیٰ يادوی او توبے اوباسی او کله چه مصيبت ترينه لرے شی نو بيا په ګناهونو کښ شروع شی۔

وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ مِنْ قَبْلِكُمْ

او يقيناً هلاک کړي دي موږ قومونه (پيړۍ) مخکښې ستاسو نه

لَمَّا ظَلَمُوا وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ

هر کله چه دوي ظلم کړيوؤ او راغلي وؤ دوي ته رسولان دَ دوي

بِالْبَيِّنٰتِ وَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا كَذٰلِكَ

په ښکاره بيانونو سره او نه وؤ دوي چه ايمان ئے راوړے وے دغسے

نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ﴿۱۳﴾ ثُمَّ

سزا ورکوؤ موږ قوم ته مجرمانو . بيا

نکته :- په دے آيت کښ ئے په لجنبه باندے شروع ځکه کړے ده چه دَ هغه مصيبت ډيروي نو دُعا ئے هم ډيره وي بيا ورپسے حال دَ ناست سړي دے بيا ورپسے حال دَ ولاړ سړي دے۔

جَنْۢبِهٖٓ اَوْ قَاعِدًا اَوْ قَآئِمًا ، دا متعلق دے په دعانا پورے او زجاج وئيلي دي چه جائزه ده چه دا متعلق شي په الضُّر پورے - او دا درے حالتونه ئے ځکه ذکر کړل چه انسان دَ دے درے وارو نه خالي نه وي.

مَرَّ ، دا په معنىٰ دَ استمرار سره دے په شرک باندے .

لِلْمُسْرِفِيْنَ ، مراد دَ دينه مشرکان دي خو هغوي ته مسرفان دَ دے وجے نه وائي چه هغوي برباد کړي دي نفسونه خپل په بندګئ دَ غير الله کښ او مالونه خپل په تحريم دَ غير الله او نذر دَ غير الله کښ.

مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ، دَ دينه مراد اعمال دَ مشرکانو دي .

سلا :- په دے آيت کښ يره دنيوي ده دَ پاره دَ منکرينو .

ربط :- دَ مخکښې سره ربط دا دے چه کله خو الله تعالىٰ دوي له مهلت ورکوي او دعاګانے ورله قبلوي ليکن روستو دَ مهلت نه ئے دا سے اوتيسي په هلاکت او عذاب سره دَ وجے دَ شرک او انکار دَ رسولانو نه او بيا ئے هيڅ دُعا نه قبلوي .

وَجَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ ، دا جمله حاليه ده او دَ دينه روستو فکن بوهم

ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِی الْاَرْضِ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

او ګرځولئ موږ تاسو او سیدونکی په زمکه کښې روستو د مشرانو نه دے

لِنَنْظُرَ كَیْفَ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴﴾ وَاِذَا تُتْلٰی

د پاره چه اوګورو موږه (په طریقه د امتحان) چه په کومه طریقه عمل کوئ تاسو۔ او هرکله چه بیان کړے شي

عَلَیْهِمْ اٰیَاتُنَا بَیِّنٰتٍ قَالَ الَّذِیْنَ

په دوی باندے آیتونه زموږ صفا صفا تو وائی هغه کسان

لَا یَرْجُوْنَ لِقَآءَنَا ائْتِ بِقُرْاٰنٍ

چه نه لری عقیده د ملاقات زموږ، راوړه یو قرآن

غَیْرِ هٰذَآ اَوْ بَدِّلْهُ ؕ قُلْ مَا یَكُوْنُ

سوا (بل یو) د دینه یا بدلی اوکړه په دۀ کښې او ایه ته نه دی جائز

پته دے (یعنی دوی د رسول الله نو تکذیب اوکړو)۔
وَمَا كَانُوْا لِیُؤْمِنُوْا ، دا عطف دے په ظَلَمُوْا باندے یعنی دوی ته امید د ایمان نه وو پاتے شوے۔ الْمُجْرِمِیْنَ، په دے آیت کښې ظلم او انکار د ایمان نه ذکر شو او دا جرم عظیم دے او په تیر شوی آیت کښې صرف شرک ذکر کړے کړے وو نو هغه اسراف دے۔

سکا:- دا آیت هم ویره دنیوی کښې داخل دے۔
كَیْفَ تَعْمَلُوْنَ ، دا دلیل دے په دے باندے چه د الله تعالیٰ په نیز باندے په عملونو کښې کیفیات او طریقے مقصود دی چه هغه طریقه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم دۀ او دا آیت ټول امت ته خطاب دے۔
لِنَنْظُرَ ، مراد د نظر نه امتحان دے۔
كَیْفَ تَعْمَلُوْنَ، یو مقصد د خلق توحید دے لکه په سورة الذاریات سلاه آیت کښې دی۔ او دویم مقصد طریقے د بندګۍ دی په موافقت د سنت سره لکه په دے آیت کښې دی۔

لِيٓ اَنْ اُبَدِّلَهٗ مِنْ تِلْقَآئِ نَفْسِيْ ج

مانړه چه بدلي اوکړم يې د طرف خپل نه

اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ج اِنِّيْٓ

نه کوم تابعداري زه مګر د هغې چه وحي کيدیشي ما ته، يقيناً زه

اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ

ويريږم که نافرماني اوکړم د رب خپل نه ( په بدلولو د قرآن سره) د عذاب د ورځې

عَظِيْمٍ ﴿١٥﴾ قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا

لوئې نه - ته اُوايه که خوښه وے الله تعالیٰ نو نه به وے

۱۵:- دا آيت هم زورنه ده منکرينو د توحيد ته مطلب ئې دا دے چه دوی ته هرکله آيتونه د توحيد بيانيږی نو دوی وائي چه قرآن ښه د نصيحت کتاب دے ليکن هرځائے پکښې د شرک رد دے دا ترې لرې کړه نو باقي مونږه منو۔

بَيِّنٰتٍ، چه په وضاحت سره دلالت کوی په توحيد باندے۔

غَيْرِ هٰذَآ اَوْ بَدِّلْهُ، د دے فرق دا دے چه غير، دا معنیٰ ده چه د دے قرآن په ځائے بل کتاب راوړه او دے بالکل لرے کړه . او تبديل، دا معنیٰ ده چه پدې کښې ترميم اوکړه يعنی مسئله د توحيد ترې نه لرے کړه پدے دليل چه په دوی باندے مسئله د توحيد بده لګيږی لکه په سورة بنی اسرائيل ۴۶ آيت او سورة ص ۵ او سورة زمر ۴۵ کښې دی۔

قُلْ، دا اول جواب دے د مشرکانو د مطالبے مطلب ئې دا دے چه زهٔ ترميم نه شم کولے نو تغير خو په طريقه اولیٰ سره نه شم کولے ځکه چه دا دواړه کارونه سبب د لوئے عذاب دی۔

اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ، دا دليل دے چه د وحی نه بغير د بل څيز تابعداري جائز نه ده۔

اِنْ عَصَيْتُ، مراد د عصيان نه تبديل او تغيير دے۔

تَلَوْتُهٗ عَلَيْكُمْ وَلَآ اَدْرٰىكُمْ بِهٖ ۖ

لوستلے ما قرآن پہ تاسو بانددے او نہ یہ خبر درکڑے وے اللہ تعالیٰ تاسو ته پدے سره

فَقَدْ لَبِثْتُ فِيْكُمْ عُمُرًا مِّنْ قَبْلِهٖ ۗ

نو یقیناً تیر کړیدے ما پہ تاسو کښں ډیر عمر د دے نه مخکښں

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ⑯ فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ

آیا نو عقل نه لرئ تاسو۔ نو څوک لوے ظالم دے د هغه چا نه چه

افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ

جوړوی پہ اللہ تعالیٰ باندے دروغ یا دروغژن کنڑی

سلا :- دا دویم جواب دے د مطالبے د مشرکینو حاصل یے دا دے چه بیا نول د دے قرآن ما د ځان نه نهٔ دی شروع کړی او د دے تعلیم درکول تاسو ته په ارادے د اللہ تعالیٰ سره دی۔
فَقَدْ لَبِثْتُ، د دے اول مطلب دا دے چه زما د ځلویښتو کالو تر عمره پورے صداقت او امانت تاسو پیژنئ او دا هم پیژنئ چه زه امی یم ما څه لوستلے یا لیکلی نه دی نو څنګه ما دا کتاب د ځان نه جوړ کړے شو۔
دویم مطلب دا دے چه تاسو ته معلومه ده چه پدے ځلویښت کاله کښں ما د اللہ تعالیٰ هیڅ نافرمانی نه ده کړے نو ځلویښت کاله نه روستو بیا څنګه ګناه اوکړم او دا دلیل دے د عصمت قبل النبوة۔ په صحیح حدیث سره ثابت ده چه نبی صلی اللہ علیه وسلم ته د ځلویښت کالو په عمر کښں وحی د نبوت شروع شوے وه بیا په مکه مکرمه کښں یے دیارلس کاله او په مدینه طیبه کښں لس کاله تیر کړل او د دریشپیته کاله په عمر کښں نبی کریم صلی اللہ علیه وسلم وفات شو او په کومو روایاتو کښں چه شپیته کاله ذکر دی نو په هغے کښں کسر (دریے) حذف کړیدے۔

بِاٰیٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا یُفْلِحُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۱۷﴾

آیاتو ته د هغه، یقیناً نشي بیچ کیدلے دا سے مجرمان (د عذاب د الله تعالیٰ نه)

وَ یَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا

او بندگي کوي دا خلق سِوا د الله تعالیٰ نه د هغه څه چه نه

یَضُرُّهُمْ وَ لَا یَنْفَعُهُمْ وَ یَقُوْلُوْنَ

ضرر او نه نفع رسولے شي دوي ته او وائي دوي

هٰٓؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ ؕ قُلْ

چه دا کسان سفارشیان زموږ دي په دربار د الله تعالیٰ کښې، اُووایه ته

اَتُنَبِّـُٔوْنَ اللّٰهَ بِمَا لَا یَعْلَمُ

آیا تاسو خبر ورکوئ الله تعالیٰ ته په هغه څیز چه نه پیژنی الله تعالیٰ

فِی السَّمٰوٰتِ وَ لَا فِی الْاَرْضِ ؕ سُبْحٰنَهٗ

په آسمانونو کښې او نه په زمکه کښې (یعني موجود نه دے) پاک دے الله تعالیٰ

۱۷۔ دا هم زورنه دے منکرینو ته او مشرکینو ته۔

اِفْتَرٰی عَلَی اللّٰهِ کَذِبًا ، یو مراد د دینه مشرک دے چه شرک کوي او د هغه جواز نسبت الله تعالیٰ ته کوي او الله تعالیٰ ته د ولد نسبت کوي۔

دویم مراد د دینه هغه څوک دے چه د الله تعالیٰ په کلام کښې تبدیل اوکړي او د ځان نه په هغه کښې الفاظ یا معانے جوړوي۔ په اوله توجیه ربط دا دے چه ته ظلم کوونکے نه یم ځکه چه افتراء په الله تعالیٰ باندے لوئے ظلم دے۔

اَوْ کَذَّبَ بِاٰیٰتِهٖ ، اشاره ده چه په الله تعالیٰ باندے افتراء کوونکے او د قرآن تکذیب کوونکے دواړه یو شان دي په کفر کښې۔

وَتَعَالٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ⑱ وَمَا

او لوړ دے د هغې نه چه دوی شریکوی د الله تعالی سره۔ او نه

۱۸:۔ خلاصه:۔ د دے ځائے نه تر دیرشم آیت پورے دویم باب دے په دے باب کښې رد دے په عقیده د مشرکینو چه هغوی خپل شرکاء شفعاء گنړی او پخه زورتې دی او مثال دے د پاره د فنا د دنیا او زیرے اُخروی او بیره اُخروی ده۔

تفسیر:۔ په دے ۱۸ آیت کښې رد دے په شرک فی العبادت او په عقیده د مشرکانو چه هغوی خپل معبودان شفعاء گنړی۔

حاصل د دوی د عقیدے دا وو چه دوی وئیل الله تعالی یو دے لیکن مونږ چه سوا د الله تعالی د چا بندگی کوو لکه (لات، منات او هبل) وغیره نو دوی زمونږ حاجتونه په الله تعالی باندے پوره کوی۔ رزق راکول، اولاد راکول، مرضونه لرے کول وغیره۔ او کوم کسانو چه په دوی کښې په آخرت باندے عقیده وه نو هغوی دا هم وئیل چه دا معبودان په ورځ د آخرت به مونږ لره د عذاب نه نجات راکوی او په الله تعالی باندے به زمونږ بخنه خامخا کوی او دے عقیدے ته وسیله شرکیه او شفاعت قهریه (بے اجازته) وئیلے کیږی۔

امام رازی فرمائی چه د دے مثال زمونږ په زمانه کښې قبر پرست خلق دی چه د اولیاؤ د قبرونو ناجائز تعظیم کوی (لکه سجده لگول او طواف کول او د هغې په نوم نذرانه شکرانه ورکول او په هغې باندے جنډے او غلافونه اچول) په دے عقیدے سره چه کله مونږ دا تعظیمونه اوکړو نو دا اولیاء کرام زمونږ حاجتونه په الله تعالی باندے خامخا پوره کوی او په ورځ د قیامت به هم دوی مونږ له نجات راکوی، او دا عقیده قطعًا شرک دے ځکه چه د دے آیت په آخر کښې ئے یشرکون فرمائیلے دے او په دے آیت کښې د هغوی په عقیده باندے رد په څلورو طریقو سره شوے دے۔ اول دا چه دا معبودان مالک د نفع او ضرر نه دی۔ دویم دا چه الله تعالی ته په خپل مخلوق کښې داسے هیڅوک نه دی معلوم چه هغه شفیع قهری وی نو آیا تاسو

# كَانَ النَّاسُ اِلَّآ اُمَّةً وَّاحِدَةً

وؤ خلق ر دَ دېته مخکښې) مګر یوه ډله وه ( په عقیده دَ توحید)

الله تعالیٰ له خبر ورکوئ -

بِمَا لَا يَعْلَمُ ، دا کنایه دَ عدم وجود نهٔ ځکه چه الله تعالیٰ په هر موجود بانده عالم دے - دریم دا ده چه دا عقیده عین شرک دے او الله تعالیٰ دَ هر قسم شرک نه پاک دے -

مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ، نفی دَ ضرر او نفع عمومًا ده او بعضو تخصیص کړیدے چه ضرر په وخت دَ پریخودلو دَ عبادت او نفع په وخت دَ کولو دَ عبادت کښې دی -

سُبْحٰنَهٗ ، تسبیح ، راجع ده شرك في العبادة ته -

وَتَعَالٰى ، دا راجع دے شُفعاؤنا ته -

فائده :- په دُنیا کښې دَ بندګانو په مینځ کښې دَ مجرم دَ بچ کولو دَ پاره یا دَ یو ضرورت پوره کولو دَ پاره درے قسمه سفارش کیدے شی اول قسم شفاعت بالمحبت یعنی مجرم یا محتاج په سفارش کښې هغه څوک پیش کوی چه هغه دَ مشفوع الیه (چا ته چه سفارش پیش کیږی) محبوب او کامل دوست وی - دویم قسم شفاعت بالوجاهت دے یعنی مجرم یا محتاج په سفارش کښې هغه څوک پیش کوی چه هغه دَ مشفوع الیه په نیز بانده مخاوریز او دیر عزتمند سړے وی ، پدے دواړو قسمو سفارشونو کښې مشفوع الیه مجبوره شی او خپله اراده پریږدی او خپل قانون باندے هم عمل پریږدی او سفارش دَ هغے محبوب یا دَ مخاوریز سړی ضرور قبلوی ، دَ دے دواړو قسمونو ته په شفاعت قهریه سره تعبیر کیدے شی او مشرکان دا دواړه قسمه سفارشونه کول دَ الله تعالیٰ په دربار کښې دَ خپلو شُفعاؤ په باره کښې ګنړی لیکن دا شرک دے ځکه چه الله تعالیٰ دَ هیچا دَ محبت یا دَ مخاوریزئ نه نهٔ مجبوره کیږی - دریم قسم شفاعت په اذن سره دے یعنی یو تن په خپل قانون کښې دا لیکلی وی چه زهٔ خپله اراده نشم پریخودلے او نه دَ خپل قانون خلاف کولے شم مګر هغه چه

فَاخْتَلَفُوْا ؕ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ

نو اختلاف اوکړو (روستو خلقو) او که نه وے حکم (د روستو الی د عذاب) چه مخکښې مقرر شوے

مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيْمَا

د طرف د رب ستا نه خامخا فیصله به شوې وه په مینځ د دوی کښې په هغه څه کښې

فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ⑲ وَيَقُوْلُوْنَ لَوْلَآ

چه دوی پکښې اختلاف کوی۔ او دوی وائی ولے نشی

قلانے سړے ماته سفارش اوکړی نو هغه په منم نو دا سفارش د ده د اذن د لاندے دے د ده په اختیار سره دے پدیکښې د سفارش کوونکی هیڅ زور په مشفوع الیه باندے نه چلیږی دا سے قسم شفاعت د الله تعالیٰ دربار کښې په دریو طریقو سره ثابت دے۔ اول دا چه یو ژوندے د بل ژوندی د پاره دعا غواړی۔ دویم دا چه ژوندے د مړ د پاره دعا غواړی۔ دریم دا چه په ورځ د قیامت نیکان او بخلے شوی خلق د مؤمنانو گنهگارانو د پاره سفارش کوی۔ دا درے واړه په شرع کښې ثابت دی او څلورم قسم یعنی د مړی دعا، د پاره د ژوندی دا په دلیل شرعی سره نه ده ثابت بلکه دے زمانه کښې دا عقیده شرک ته رسیدلے ده۔

سوال:- پدے آیت کښې جواب د یو سوال دے۔

سوال:- دا عقیده د شفاعت په ستاسو په دین کښې منع وی لیکن مخکنو دینونو کښې خو دا جائز ده؟

جواب:- او شو چه د ټولو پیغمبرانو دین یو دے اختلاف پکښې خلقو جوړ کړے دے۔

اُمَّةً وَّاحِدَةً، یعنی د وخت د آدم علیه السلام نه شرک د قوم د نوح پورے یا د هلاکت د قوم نوح نه تر عادیانو پورے۔

سوال:- هرکله چه دا عقیده د کفر او د شرک ده نو پدوی باندے عذاب ولے نه راځی؟

جواب:- پدے جملے سره جواب اوکړے شو چه لَوْلَآ كَلِمَةٌ سَبَقَتْ

أُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ۚ فَقُلْ

نازل شوې په دې پیغمبر باندې څه موټ (خوارق) د طرف د رب د ده نه تو ته اُوایه

اِنَّمَا الْغَيْبُ لِلّٰهِ فَانْتَظِرُوْا ۚ اِنِّيْ

یقینًا علم د غیب خاص الله تعالیٰ لره دے نو انتظار کوئ یقینًا زه

مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿۲۰﴾ وَاِذَآ

ستاسو سره د انتظار کوونکو نه یم ۔ او هر کله چه

اَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً مِّنْۢ بَعْدِ

اوسکوؤ مونږ خلقو ته رحمت پس د روستو

ضَرَّآءَ مَسَّتْهُمْ اِذَا لَهُمْ مَّكْرٌ

د تکلیف نه چه رسیدلے وی دوی ته نو دغه وخت کښ دوی لره مقابله کول وی

مِنْ رَّبِّكَ ، مراد د دے کلمے نه دا دے چه الله تعالیٰ فیصله کړے ده چه دا امت به عذاب سره په دنیا کښ نه هلاکوی تر قیامت پورے، یا مراد دا دے چه الله تعالیٰ فیصله کړې ده چه هیڅوک نه هلاکوی څو پورے چه دوی له ئے په واسطه د رسول یا د نائب د رسول خبر نه وی ورکړے ؟

سنځ :۔ دے آیت کښ زور نه ده په طلب د معجزاتو سره د پیغمبر صلی الله علیه وسلم نه ، هغه معجزات چه د دوی خواهش ئے غواړی، حاصل د جواب دا دے چه نازلیدل د معجزے دا غیب دے او ما سره علم د غیب نشته نو اختیار د راوړلو به راسره څنګه وی ۔

فَانْتَظِرُوْا ، مراد دا چه د معجزے د راتللو انتظار اوکړئ یا د عاقبت د انکار انتظار اوکړئ ۔

فِیْۤ اٰیٰتِنَا ؕ قُلِ اللّٰهُ اَسْرَعُ مَكْرًا

پہ آیتونو زمونږ کښې، ته او وایه چه الله تعالیٰ ډیر زر مقابله کوونکے دے په پټ تدبیر سره

اِنَّ رُسُلَنَا یَكْتُبُوْنَ مَا تَمْكُرُوْنَ ﴿۲۱﴾

یقیناً ملائک زمونږ لیکی هغه چه تاسو ئې مقابلے کوئ۔

هُوَ الَّذِیْ یُسَیِّرُكُمْ فِی الْبَرِّ وَ

خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه گرځوی تاسو په وچه او

الْبَحْرِ ؕ حَتّٰۤی اِذَا كُنْتُمْ فِی الْفُلْكِ ۚ

په دریابونو کښې، تر دے پورے کوم وخت چه یئ تاسو په کشتو کښې

وَجَرَیْنَ بِهِمْ بِرِیْحٍ طَیِّبَةٍ

او روانے وی داکشتئ په دوی په هوا نرمے سره

وَّفَرِحُوْا بِهَا جَآءَتْهَا رِیْحٌ

او خوشحاله شی دوی په هغے نو راشی هغے ته سیلئ

س۲۱۔ دے آیت کښې زور ته ده منکرینو ته۔

رَحْمَةً، وسعت دَ رزق، صحت دَ بدن، باران دَ رحمت نور نعمتونه،
ضَرَّآءَ او قحط او مرض وغیره دی۔

مَكْرٌ، په معنیٰ دَ دروغژن کولو او دَ مقابلے کولو یعنی جګړه کولو دے،
حاصل دا دے چه بعضے انسان ته هر کله چه دَ سختئ نه روستو راحت
اورسی نو دے دَ الله تعالیٰ دَ توحید او دَ قرآن مقابله کوی۔ او دا آیت
دلیل دے پدے خبره چه دَ هر انسان سره لیکونکے ملائک مقرر دی۔

اَسْرَعُ مَكْرًا، مکر په معنیٰ دَ پټ تدبیر دَ عذاب دے سرعت دا دے
چه څوک ډیر مستحق دَ عذاب وی نو هغوی لره مخکښې هلاک کړی
او نور وروسته هلاک کړی او عجلت صفت دَ الله تعالیٰ نه دے او سرعت
دَ هغه صفت دے لکه سریع العذاب او سریع الحساب۔

عَاصِفٌ وَّجَآءَهُمُ الْمَوْجُ مِنْ كُلِّ

تيزه او راشي دوى ته چپې د هر

مَكَانٍ وَّظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ اُحِيْطَ بِهِمْ ۙ

طرف نه او ګمان اوكړي چه دوى راګير كړے شول په دے چپو سره

دَعَوُا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ ۚ

نو رابلي الله تعالى لره خالص كوى هغه لره بلنه ،

لَئِنْ اَنْجَيْتَنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ

(او وائى) كه بچ كړو تا مونږ لره د دے مصيبت نه خامخا شو به مونږ

مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٢٢﴾ فَلَمَّآ اَنْجٰهُمْ اِذَا

د شكر كندارو ستا نه . نو هركله چه بچ كړى الله تعالى دوى لره نو دغه وخت كښ

س ٢٢ :- په دے آيت كښ اول دليل عقلي دے بيا زورنه ده مشركينو ته ، حاصل ئے دا دے چه كله په دوى باندے څه سخت تكليف او مصيبت راشي نو په هغه وخت كښ صرف الله تعالى ته آواز كوى او د خپلو معبودانو نوم نه اخلي او الله تعالى سره وعدے كوى كه دا مصيبت ئے زمونږ نه لرے كړو نو مونږ به د الله تعالى شكر ادا كوُو په توحيد منلو سره ، دا رنګ نذر او صدقه به د الله تعالى په نوم باندے كوُو۔

فائده :- ليكن افسوس دے د دے زمانے په جاهلانو چه د هغوى يقين او عقيده په بزرګانو او په اولياؤ دومره كلكه شويده چه كه ډيره سختي په دوى باندے راشي نو هغه بزرګانو ته رامددشه وائي او الله تعالى ئے هير كړے وى نو د دوى حال د مخكنو مشركانو نه بدتر دے۔

دا سے مضمون علامه آلوسي په تفسير روح المعاني كښ ليكلے دے۔

يُسَيِّرُكُمْ ، دا د اوچے او لوندے تمام د سورلئ ذريعو ته شامل دے كه په هغه وخت كښ موجود وُو او كه نه وُو۔

هُمْ يَبْغُونَ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ ط
دوی ظلم کوی په زمکه کښی په ناحقه سره (یعنی شرک کوی)
يَاۤاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلٰۤى
اے خلقو یقیناً ظلم ستاسو تاوان دے په
اَنْفُسِكُمْ مَّتَاعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ز
ځانونو ستاسو فائدے واخلئ فائدے دَ ژوند دنیوی
ثُمَّ اِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ فَنُنَبِّئُكُمْ بِمَا
بیا مونږ ته راګرځیدل ستاسو دی نو خبر به درکړو تاسو لره په هغے
كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۳﴾ اِنَّمَا مَثَلُ
عملونو چه تاسو به کوی۔ یقیناً مثال

حَتّٰۤى اِذَا كُنْتُمْ، دا دَ لوند (بحر) دَ سورلئ دَ یو حالت ذکر کوی۔
فِى الْفُلْكِ، دا لویو جهازونو، وړو کشتو او لانچونو ته شامل دے۔
وَجَرَيْنَ بِهِمْ بِرِيْحٍ، په دیکښی التفات (نقل) دے دَ خطاب نه غیبت ته په دیکښی ډیرے فائدے دی۔ یوه فائده دا ده چه دَ دوی شان او حال نوروته ذکر کوی دَ پاره دَ عبرت اخستلو۔
طَيِّبَةٍ، درمیانه حاله نه ډیره تیزه او نه کمزوری۔
اُحِيْطَ بِهِمْ، احاطه په معنیٰ دَ هلاکت سره ده او هر کله چه قریب وؤ هلاکت ته هلاک شوی نه دی دَ دے وجے نه یے وَظَنُّوْۤا اُوئیل۔
مُخْلِصِيْنَ، یعنی دَ الله تعالیٰ سره بل څوک نه شریکوی او دا اخلاص په اصل کښی علم یقینی فطری وی اخلاص ایمانی نه دے۔
۲۳:- دا دَ مخکښی آیت سره متعلق دے۔
فَلَمَّاۤ اَنْجٰهُمْ، کښی اشاره ده چه الله تعالیٰ دَ مشرک دُعا هم قبلوی دَ هغوئ تضرع دَ وجے نه۔
يَبْغُوْنَ فِى الْاَرْضِ، دَ بغی نه مراد دلته شرک دے په دلیل دَ آیت دَ سورة عنکبوت ۶۵ یا ندے، دا رنګ په سورة الاسراء

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ

دَ ژوند دنيوى پشان دَ اوبو دے چه راوروڅ مونږ هغه

مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ

دَ آسمان دَ طرفنه نوګډ راوخيژى په هغے سره بوټى

الْاَرْضِ مِمَّا يَاْكُلُ النَّاسُ وَالْاَنْعَامُ ط

دَ زمکے دَ هغے قسم نه چه خورى ئے انسانان او څاروى،

حَتّٰٓى اِذَآ اَخَذَتِ الْاَرْضُ زُخْرُفَهَا

تر دے پورے کله چه واخلى راونيسى) زمکه ډول ښکلى

۲۳ آيت او سورة لقمان ۳۲ آيت کښ دى۔
بِغَيْرِ الْحَقِّ، مراد دَ دينه الباطل دى چه شرک کول دى يعنى فساد کوى په شرک کولو سره يا مراد دَ دے نه دا دے چه بغى په حق سره نه کوى بلکه په ناحق سره ئے کوى بغى بالحق دا ده چه مسلمانان دَ کافرانو په مالونو باندے غالب شى په سبب دَ جهاد سره او دَ هغوى نه ئے په زور سره واخلى۔
مَتَاعَ ، دَ دے فعل حذف دے تمتعوا متاعًا يا منصوب دے په حرف جر محذوف سره فى متاع الحيٰوة الدنيا دى۔ يعنى ستاسو بغى لږه زمانه ده زر ده چه فنا به شى۔
مَتَاعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ، دا جواب دَ يو سوال دے که څوک دا سوال اوکړى چه الله تعالىٰ ته علم وو چه دا انسانان به شرک کوى نو دَ ده دُعا ئے ولے قبلوله؟
نو جواب اوشو چه دا دَ ژوند دنيوى فائدے دى او دا الله تعالىٰ مشرکانو ته هم ورکوى، او دا آيت دليل دے په دے خبره چه الله تعالىٰ کله کله دَ مشرک دُعا هم قبلوى۔

وَازَّيَّنَتْ وَظَنَّ أَهْلُهَا أَنَّهُمْ

او خائسته شي او گمان اوکړی مالکان دَ هغې چه یقینًا دوی

قَادِرُونَ عَلَيْهَا ۙ أَتَاهَا أَمْرُنَا

قادر دي په لوُ کولو دَ هغې فصل نو راشي په هغې عذاب زمونږ

لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنَاهَا حَصِيدًا

دَ شپې یا دَ ورځې نو اوګرځوو مونږ هغه داسې دلَول (صفا

كَأَن لَّمْ تَغْنَ بِالْأَمْسِ ۚ كَذَٰلِكَ

کړ یشوې) ګویا کښ چه نه وُه ولاړ دغه فصل پرون ، دغسې

نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ (۲۴)

په تفصیل سره بیانوؤ آیتونه (مثالونه) دَپاره دَ هغه قوم چه فکر کوی -

۲۴ :- هرکله چه متاع دَحیاة دنیویه ذکر شو نو اوس دَ هغې دَ فنا او دَ زوال مثال ذکر کوی دَپاره دَ تزهید فی الدنیا ـ

الْحَيٰوةِ الدُّنيا ، دَ دیته مراد عمر او سامانونه دَ دنیا دی -

زُخْرُفَهَا ، نه مراد دا دے چه سرۂ ، سپین ، زیړ رنګونه بوټي او ګلونه وغیره پیدا شي او په هغې سره زینت حاصل شي او په دے کښ تشبیه ده دَ ناوے سره چه په زیوراتو سره خائسته شي نو دَ انسان زړه ځان ته مائله کړی -

قَادِرُونَ عَلَيْهَا ، اشاره ده چه دا فصل پوخ شي لو کولو ته نزدے وی -

بِالْأَمْسِ ، مراد تیره زمانه قریبه ده -

حاصل دا دے لکه چه الله تعالیٰ باران راووروی او په هغې سره زمکه شنه شي او خائسته شي په قسما قسم میوو سره او مالک دَ فصل (زمیندار) یقین اوکړی چه فصل تیار شویدے لیکن ناڅاپه په هغې عذاب راشي او هغه فصل تباه شي ، دغه رنګے انسان پدے خپل ژوند باندے مغرور وی او مختلف امیدونه ساتي لیکن ناڅاپه

وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا اِلٰى دَارِ السَّلٰمِ ط

او الله تعالیٰ رابلی بندګان خپل کور د سلامتیا ته ۔

وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ

او روانه وی چالره چه اوغواړی په لاره

مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۲۵﴾ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوا الْحُسْنٰى

نیغه باندے ۔ د پاره د هغے کسانو چه خائسته عمل ئے کړیدی خائسته بدله ده

وَزِيَادَةٌ ط وَلَا يَرْهَقُ وُجُوْهَهُمْ

او زیاتی نعمتونه دی، او نه به پټوی مخونو د دوی لره

پرے مرګ راشی نو امیدونه ئے نیمګړی پاتے شی ۔

نو مقصد دا دے چه د دے دنیا د محبت د وجے نه د الله تعالیٰ دین مه پریږدئ ۔

۲۵ :- د دنیا د فنا د بیان نه روستو ترغیب دے جنت ته ۔

يَدْعُوْٓا، دعوت د الله تعالیٰ په رالیږلو د رسولانو او مبلغینو د حق او قائم کول د دلیلونو او نازلولو د کتابونو سره دے ۔ اشاره ده چه دعوت لویه مرتبه ده دا کار د الله تعالیٰ دے او دعوت نه روستو هدایت حاصلیږی د دے وجے ۔

يَهْدِيْ، ئے روستو ذکر کړو لیکن هدایت په مشیت د الله تعالیٰ سره حاصلیږی ۔

دَارِ السَّلٰمِ، دا یو نوم دے د نومونو د جنت نه ځکه چه په هغے کښ سلامونه دی لکه د دے سورت ۱۰ آیت کښ تیر شویدی او دا رنګ په هغے کښ سلامتیا ده د هر آفت نه یا سلام صفت د الله تعالیٰ دے یعنی هغه کور د الله تعالیٰ دے ۔

يَهْدِيْ، مراد د هدایت نه رسول دی صحیح مقصد ته او توفیق ورکول دی ۔

مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ، دا دلیل دے په دے خبره چه الله تعالیٰ

قَتَرٌ وَّلَا ذِلَّةٌ ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ

تور والے او نه ذلت (رسوائي)، دغه کسان جنت والا دي

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۶﴾ وَالَّذِيْنَ

دوی به په هغې کښې همیشه دي ۔ او هغه کسان

كَسَبُوا السَّيِّاٰتِ جَزَآءُ سَيِّئَةٍۭ

چه کوي بد کارونه بدله د بدئ به

بِمِثْلِهَا ۙ وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ؕ مَا لَهُمْ

په شان د هغې دي او پټوي به دوی تول بدن د ذلت ، نه به وي دوی لره

مِّنَ اللّٰهِ مِنْ عَاصِمٍ ۚ كَاَنَّمَآ اُغْشِيَتْ

د عذاب د الله تعالیٰ نه څوک بچ کوونکے ګویا کښې چه اغوستلے شوے وي

وُجُوْهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ الَّيْلِ مُظْلِمًا ؕ

مخونو د دوی ته ټکړے د تورے شپے

د مخلوق نه مستغني دے او په خپلے ارادے سره کار کوي۔

مسئله ۱۔ دے آیت کښې زیرے اخروي دے د پاره د موحدینو۔

وَزِيَادَةٌ ، د دے غوره تفسیر دیدار الٰهي دے په جنت کښې څکه دا په صحیح حدیث د مسلم کښې راغلی دی۔

اَحْسَنُوْا ، مراد احسان نه توحید دے په عقیده او عمل سره۔

الْحُسْنٰى ، خائسته حالت دے او هغه جنت دے۔

وَزِيَادَةٌ ، ټولو مفسرینو اهل سنت والجماعت د دے تفسیر په رؤیت د الله تعالیٰ سره نقل کړیدے او معتزله د دے معنے نه انکار کوي او صحیح حدیث رد کوي لکه صاحب کشاف چه ذکر کړے دی۔

امام رازي او خازن د هغوی د شبهاتو جوابونه کړي دي هغه اوګوره۔

٢٧:- دا ويره اخروي ده د پاره د مشرکينو.

وَالَّذِينَ، په دے کښې لام پټ دے عطف دے په لِلَّذِينَ احسنوا باندے.

بِمِثْلِهَا، مماثلت په ناکاروالی کښې دے لکه څنګه چه شرک او کفر پليت عمل دے دا رنګ د دوی سزا به هم پليت مکان او خوراک وغيره وي او دا رنګ مماثلت په عدد کښې دے په يو سيئه باندے به يوه سزا وي.

مَا لَهُمْ مِّنَ اللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ، په دے آيت کښې اشاره ده رد د شفيع قهري ته چه دعوای د سورت ده.

كَأَنَّمَا أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ، مراد د دينه دا دے چه د دوی مخونه به داسے تور شوی وي لکه چه توره شپه په څه څيز باندے اوغوړولے شي او دا په مقابله د ولا يرهق وجوههم قتر کښې دے.

مَّا كُنْتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ ﴿٢٨﴾ فَكَفٰى

ته وئ تاسو | موږ لره | بندګي كوونكي۔ | نو پوره دے

بِاللّٰهِ شَهِيْدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ

الله تعالىٰ | ګواه | په مينځ | زموږ | او | ستاسو كښ

ف۲۸ :- دا آيت هم ويره اخروى ده دَ پاره دَ مشركانو چه عقيده دَ شفاعت شركيه لرى په باره دَ معبودانو خپلو كښ۔ او دا جواب دَيو سوال دے۔

سوال :- مخكښ آيت كښ ئے اوفرمائيل چه دَ دوى بچ كوونكے نشته او حال دا دے چه دوى خو دَ نيكانو خلقو بندګي كريده نو اميد دے چه هغوى به ئے بچ كړى؟

جواب :- هغه نيكان خلق دَ دوى دَ بندګئ نه به انكار اوكړى۔

فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ، يعنى په جدا جدا ځايونو كښ۲ او درولے شى دَ پاره دَ دے خبرے چه نيكان خلق به صف دَ مجرمانو كښ او نه دريږى يا مراد دا چه دَ دوى وصلتونه او تعلقات به ختم كړو۔

وَقَالَ شُرَكَآؤُهُمْ، دا په جواب دَ قول دَ مشركانو كښ دے چه قَالُوْا رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ شُرَكَآؤُنَا الَّذِيْنَ كُنَّا نَدْعُوْا مِنْ دُوْنِكَ سورة نحل ۸۶ كښ۔

فائده :- په دے آيت كښ رد دے په هغه چا باندے چه هغوى دَ ملائكو يا دَ پيغمبرانو يا دَ اولياؤ عبادت كړے دے يا قبر پرستى ئے كړيده او دَ الله تعالىٰ سره ئے په څه صفتونو كښ شريک كړيدى پس دے امت كښ۔ بيان دے دا نه دى څكه چه حشر او سوال وجواب كول دَ بيانو دَ شان سره مناسب نه ده۔

إِنْ كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَافِلِينَ ﴿٢٩﴾

يقيناً وو موږ د بندګئ ستاسو نه خامخا ناخبره.

هُنَالِكَ تَبْلُوا كُلُّ نَفْسٍ مَّا

دغه وخت به معلوم کړي هر نفس حقيقت د هغې عمل

أَسْلَفَتْ وَرُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ

چه مخکښې ئې ليږلے دے او به کړځولے شي دوی الله تعالیٰ ته چه مالک د دوی دے

۲۹۔ فَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا ، دا په معنیٰ د قسم کښې دے۔يعنې مشرکان به او وائي چه موږ خوضرور ستاسو عبادت کړیدے ستاسو قبرونو ته موسجدے او طوافونه کړيدي او ستاسو په نوم مونډ رونه کړي دي او تاسو ته مو رامدد شه وئيلی دی نو هغوی به په قسم سره موږکښ جواب ورکړي۔

او دا آيت ښکاره دليل دے پدے خبره چه هغه پيغمبران او بزرګان چه خلقو هغوی لره عبادتونه کړي دي هغوی ته ئې رامدد شه وئيلی دي يا د هغوی په نوم ئې نذرونه کړي دي وغيره نور د شرک کارونه نو هغوی د دے ټولو نه ناخبره دي نه ئې اوريدلے دي او نه ئې ليدلی دي۔او دا سے په سورة فاطر ۱۴ او سورة احقاف ۵ آيت کښې هم دي او مفسر آلوسي ليکلي دي چه د هغې حاصل دا دے چه بتان خو په هر صورت کښې ناخبره دي او هر چه ملائک دي نو هغه خو لرے دي ځکه چه دے مشرکانو د آسمانی ملائکو عبادت کړيدے په دليل د سورة نجم ۲۶ آيت سره او هر چه اولياء دي نو ځوک خو لري وو د عابدانو نه او د هغوی علم غيب نشته او ځوک چه نزدے وو نو هغه مړه دي او مړي هيڅ خبره نه آوري لکه چه دا په تحقيق د سماع موتیٰ کښې ذکر کيږي يا دا چه د مشرکانو د شرک او د بدعاتو د آواز او کارونو نه الله تعالیٰ هغوی لره بے خبره ساتي د دے د پاره چه په حزن او غمونو کښې اخته نشي۔

الْحَقِّ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا

په رښتيا او ورک به شي دَ دوی نه هغه چه دوی څه

يَفْتَرُوْنَ ﴿۳۰﴾ قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ

دروغ جوړل. اُو ایه څوک روزی درکوی تاسو ته

مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ اَمَّنْ يَّمْلِكُ

دَ آسمان او دَ زمکے نه او یا څوک اختیارمند دے

السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَمَنْ يُّخْرِجُ الْحَيَّ

دَ غوږ او دَ سترګو او څوک راؤ باسی ژوندے

مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ

دَ مړ نه او راوباسی مړ دَ ژوندی نه

وَمَنْ يُّدَبِّرُ الْاَمْرَ ۭ فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ

او څوک انتظام کوی دَ ټولو کارونو ، نو او به وائی دوی چه الله تعالیٰ

ښځ :. دا هم متعلق دے دَ مخکښ آیت سره ، حاصل دا دے چه کله دوی ته معلومه شوه په میدان دَ حشر کښ، چه دا بزرګان زمونږ دَ عبادت نه بے خبره وو نو دغه وخت کښ دوی ته دَ خپلو عملونو خطائی معلومه شوه -

تَبْلُوْا ، بلاء امتحان او معلومیدلو دَ حقیقت ته وئیلے شی یعنی دوی ته به معلومه شی چه دا عمل دَ خیر وو او که دَ شر وو مقبول وو او که مردود وو -

مَوْلٰهُمُ، دلته مولی په معنیٰ دَ مالک دے او سورت محمد ﷺ کښ په معنیٰ دَ مددګار دے نو تعارض نشته -

مَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ، دَ شرک دعوے او دلیلونه او قصے یا معبودان باطله -

فَقُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۳۱﴾ فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ

| تو او وایه ته آیا نو ځان نه بچ کوئ دَ شرک نه ـ نو دغه صفتونو والا الله تعالیٰ دے |
|---|

۳۱:۔ خلاصه:۔ دَ دے ځائے نه دریم باب دے تر آیت ۷۰ پورے ـ په دیکښ دا سے عقلی دلیلونه پیش کوی چه مشرکان په هغے باندے اقرار کوی او په دیکښ په اتو آیتونو کښ زورنه ده او تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته او بیره دَ عذاب دنیوی او اخروی ده ـ

تفسیر:۔ دا آیت ۳۱ دلیل دے په دے خبره چه مشرکانو دَ عرب دَ الله تعالیٰ دا صفتونه منل چې رازق دے او مالک دَ غوږونو او دَ سترګو دے او بیدا کوونکے دے، او دَ ټول عالم انتظام کوونکے دے ـ لیکن بیا ئې هم هغه سره شرک کوؤ په عقیده او دَ شفاعت قهریه ـ دَ دے آیت دَ دعوے دَ سورت سره مناسبت دا دے چه څوک خپل معبودان شفعاء منی نو هغوی الله تعالیٰ او دَ هغه بعضے صفتونه منی ـ

مِنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ، مراد دَ دینه باران او بوټی او فصلونه پیدا کول دی ـ

السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ، مراد دا دے چه طاقت دَ سمع او بصر دَ چا په اختیار کښ دے او دا سے په سورة الانعام ۴۶ آیت کښ دی.(اَلْحَيَّ) حیوان (ژوندی) دَ چرګو او مرغو بچی او فصلونه تازه، مؤمن او عالم ته شامل دے ـ

اَلْمَيِّتِ، نطفه، هګۍ، زمکه، مشرک او جاهل ته شامل دے ـ

وَمَنْ يُّدَبِّرُ الْاَمْرَ، الف لام استغراقی دی یعنی دَ ټول عالم انتظام څوک چلوی او دا رد دے په عقیده دَ متصوفو باندے چه هغوی وائی دَ عالم انتظام قطب او غوثان او ابدال وغیره چلوی او په دے باره کښ هیڅ حدیث صحیح مرفوع موقوف نشته، کوم حدیث چه ابن عساکر نقل کړے دی هغه بے سنده دے او حدیث دَ ابدال منقطع او ضعیف دے، لکه چه ابن قیم په المنار المنیف کښ لیکلی دی ـ

رَبُّكُمُ الْحَقُّ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ

رب ستاسو دے په رشتیا . نو نشته روستو دَ پریخودلو دَ حق نه

إِلَّا الضَّلَالُ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ﴿۳۲﴾ كَذَٰلِكَ

مګر ګمراهي ده نو څنګه اوړیدلے شئ تاسو دَ حق نه . دغسے

حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ فَسَقُوا

پوره شویده فیصله دَ رب ستا په هغه چا چه نافرمان دی

أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿۳۳﴾ قُلْ هَلْ

چه دوی ایمان نه راوړی . ته اوایه آیا شته دے

مِن شُرَكَائِكُم مَّن يَبْدَأُ الْخَلْقَ

دَ مرد ګارو ستاسو نه هغه څوک چه اول پیدائش اوکړی

۳۲:۔ دا نتیجه دَ مخکښ آیت ده . فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ، صرف ګرځیدلو ته وئیلے شی معنیٰ دا چه په کوم دلیل سره دَ حق نه باطل ته او دَ توحید نه شرک طرف ته اوړے اوګرځئ (فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالَ) دا آیت دلیل دے پدے خبره باندے چه په مسائلو دَ عقیده کښ یو طرف ته حق وی نو دَ هغے مقابل به خامخا ګمراهي وی دواړه طرفو ته حق نشی کیدے او نه باطل . نن چه بعضے خلق دَ ایمان او دَ عقیدے مسائل فرعی ګڼړی او وائی چه دا دواړه حق دی نو دا لوے جاهلان دی .

۳۳:۔ دَ آیت مطلب دا دے چه هر کله دا مشرکان سره دَ پوهے نه په شرک باندے کلک دی نو معلومه شوه چه دَ دوی په باره کښ دا فیصله شویده چه دوی ایمان نه راوړی .

أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ، دا تفسیر دَ کَلِمَةُ دے یا مراد دَ کلمے نه وعده دَ عذاب ده او أَنَّهُمْ په تقدیر دَ لام سره علت دَ حَقَّتْ دے .

ثُمَّ يُعِيدُهٗ ؕ قُلِ اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ

بیا دوباره پیدا ئش اوکړی (تشتہ) ته اوایه چه الله تعالیٰ اول پیدا کول کوی

ثُمَّ يُعِيدُهٗ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴿۳۴﴾ قُلْ

بیا به ئې دوباره هم کوی نو په څه وجه اوړیدے شئ تاسو (د توحید نه). ته اوایه

هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّهْدِيْٓ

آیا شته د ستاسو د شریکانو نه څوک چه رسول کولے شی

اِلَى الْحَقِّ ؕ قُلِ اللّٰهُ يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ؕ

حق ته (نشته)، ته اوایه الله تعالیٰ رسول کوی حق ته،

اَفَمَنْ يَّهْدِيْٓ اِلَى الْحَقِّ اَحَقُّ اَنْ

آیا نو هغه څوک چه رسول کولے شی حق ته حقدار دے د دے چه

يُّتَّبَعَ اَمَّنْ لَّا يَهِدِّيْٓ اِلَّآ اَنْ

تابعداری اوکړے شی (د حکمتو نو د هغه) یا هغه څوک چه نشی موندے لار مګر هغه وخت چه ته

يُّهْدٰى ۚ فَمَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۵﴾

خود نه اوشی نو څه دلیل دے ستاسو، څه رنګه فیصلے کوئ (بے دلیله).

۳۴:۱۔ دا رد دے په مشرکینو چه د هغوی شرکاء هیڅ پیدائش نشی کولے نو دوی ئې په څه وجه د الله تعالیٰ سره شریک کړه۔

فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ، صرف په معنیٰ د اوړیدلو دے د یو حال نه بل حال ته مطلق څنګه چه مخکښ ذکر شو۔ او افك، په معنیٰ د اوړیدلو دے خاص د دروغو طرف ته نو افك خاص دے د صرف نه۔

۳۵:۱۔ دا هم رد دے په مشرکینو چه ستاسو شرکاء حق طرف ته رسول نشی کولے حق ته صرف الله تعالیٰ رسول کوی نو هغوی مو په څه وجه الله تعالیٰ سره شریکان کړل۔

مخکښ آیت کښ رد دے په مشرکین بالعبادالصالحین یا ندے او په

وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلَّا ظَنًّا ۚ إِنَّ

(او نه کوی تابعداری (په شرک کولو کښ) ډیر د دوی خلقو نه مګر د ګمان ، یقینًا

الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ۚ

ګمان فائده نه ورکوی د حق په باره کښ هیڅ ،

إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

یقینًا الله تعالی پوهیږی په هغې چه دوی څه کوی ۔

شرک فی الالوهیة بیاندے او پدے آیت کښ رد دے په شرک فی الحکم باندے چه مشرکین بالاحبار والرهبان دی یعنی ستاسو شرکاء چه ګمراهان پیران او ملایان دی حق طرف ته هدایت نشی کولے بلکه هغوی په اهتداء کښ الله تعالی ته محتاج دی او دلیل پدے باندے لفظ د أَنْ يُتَّبَعَ دے ځکه چه هدایت او اتباع د بتانو د شان سره مناسب نه ده ۔

إِلَى الْحَقِّ او لِلْحَقِّ ، کښ فرق دا دے چه اول نه مراد حق طرفته لاره خودل دی او د دویم نه مراد په حقه لاره باندے روانول دی. دا سے فرق د الی او د لام په صله د هدایت کښ په تفسیر د هدایت کښ په سورة الفاتحه کښ تیر شوید ے ۔ بیا اول قسم خو مخلوق کولے شی او دویم قسم مخلوق نشی کولے د دے وجه نه یې د شرکاءو سره إِلَى او الله تعالی سره لام ذکر کړو ۔

كَيْفَ تَحْكُمُونَ ، یعنی اتباع د دین د الله تعالی پریږدئ اتباع د ګمراهانو کوئ ۔

مسئله :- محکښ آیت کښ رد وو په صرف تقلید د ګمراهانو باندے چه دا د اهل ضلالت کار دے نو او س رد کوی په اتباع د ظنیاتو باندے چه دا هم د ګمراهانو کار دے چه د هغوی سره دلیل صرف ظن دے یقینی دلیل ورسره نشته ، او په ګمان سره یقین نشی ثابت کیدے ۔

أَكْثَرُهُمْ ، أَكْثَرُ یې د دے وجه نه اوئیل چه بعضے خو په هوا (خواهش) پسے روان وی او اکثر په ظن پسے روان وی یا د دے أَكْثَر نه مراد د دوی

وَمَا كَانَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ اَنْ يُّفْتَرٰى

او نه دے دا قرآن چه جوړ کړے شي

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ

دَطرف دَما سوا دَ الله تعالىٰ نه اولیکن رنازل کړے شویدے دَپاره دَ تصدیق

الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ

دَ هغې کتابونو چه دَ ده نه مخکښ دی او دَپاره دَ تفصیل

الْكِتٰبِ لَا رَيْبَ فِيْهِ مِنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۷﴾

دَ فرض شوي حکمونو نشته هيڅ شک په یکښ دَطرف دَرب العالمین نه -

مشران دی داسے خازن ذکر کړی دی حاصل دا دے چه دا مشرکان چه خپل معبودان شفعاء گنړی او دَ هغوی بندگی کوی نو دا ظن دے څکه چه په وحی کښ په دے باندے هيڅ دليل نشته دلته مراد دَظن نه شک دے ریے دلیله خبرے) یا مراد دَ ظن نه دلیل ظنی دے اگرچه شرعی وی او دَ حق نه مراد عقیده یعنی په دلیل ظنی شرعی سره تور احکام ثابتیږی لیکن عقیده په هغے سره نه ثابتیږی او داسے په سورة نجم (وَمَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ۲۸) کښ دی.

فائده :- دا آیت دلیل دے په دے خبره چه دلیل ظنی په باب دَعقائدو کښ نه کافی کیږی داسے تفسیر قرطبی کښ لیکلی دی.

۳۷:- په دے آیت کښ صداق دَ قرآن پاک دے په ذکر دَ پنځو صفاتو سره. اول دا چه دا افتراء نه ده ، دویم دا چه تصدیق دے دَ مخکښ کتابونو ، دریم دا چه تفصیل دے دَ احکام ضروریه ، څلورم دا چه بیشکه دے ، پنځم دا چه الله تعالیٰ دَ طرف نه دے . او ربط ئے دَ مخکښ آیت سره دا دے چه ظنیات پریږدئ او دلیل یقینی نه راشئ چه قرآن کریم دے.

تَصْدِيْقَ ، دَ دینه مخکښ لفظ دَ کان یا انزل پټ مراد دے -

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ ط قُلْ فَأْتُوا

آيا وائي دوي چه دا قرآن يې دځان نه جوړ کړی دے، ته اووايه نو راوړئ

بِسُورَةٍ مِّثْلِهِ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ

يو سورت دَ دهٔ پشان او راوبلئ هغه څوک چه طاقت لرئ

مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٣٨﴾

سِوا دَ الله تعالیٰ نه که يئ تاسو رشتينی.

بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا

بلکه دوی دروغژن گنړی (قرآن) په سبب دَ دے چه دوی نه دے حاصل کړے

بِعِلْمِهِ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ ط

علم دَ دے او تراوسه نه دے راغلے دوی ته عاقبت دَ نه منلو دَ قرآن،

كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ

د غسے دَ دروغو نسبت کوؤ هغه کسانو چه دَ دوی نه مخکښ وؤ رَدَ خپلو رسولانو

۳۸:- مخکښ صداق دَ قرآن ذکر کړو نو اوس پس دے آيت کښ زورنه
ده منکرينو دَ قرآن ته په طريقه دَ طلب دَ مقابلے دَ قرآن دَ يو سورت
او دے ته تحدی وئيلے شی او په دے کښ اثبات دَ اعجاز دَ
قرآن دے.

مِثْلِهِ، ضمير راجع دے قرآن ته او مماثلت په فصاحت، بلاغت
او خائسته ترتيب او صداق او رشتينے پيشنگويئ کښ دے او سورت
بقره کښ من مثله شکه ذکر دے چه هلته احتمال وؤ چه ضمير راجع
شی عبد ته يا هلته مراد دَ مثل نه تورات او انجيل وؤ او مراد دَ
هغے نه مناظره کول وؤ تحدی نه وه لکه دا په تفسير سورة البقرة
کښ تير شوے دی.

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۳۹﴾

نو اوګوره چه څرنګ شو انجام دَ ظالمانو۔

وَمِنْهُمْ مَّنْ يُّؤْمِنُ بِهٖ وَمِنْهُمْ

او بعضے دَ دوی نه هغه څوک دی چه ایمان راوړی په قرآن او بعضے دَ دوی نه

ف۳۹۔ په دیکښ روستو دَ اثبات دَ اعجاز دَ قرآن نه زورنه ده منکرینو دَ قرآن نه او دَ هغے انکار ئے دوه وجے بیان کړیدی۔یو دا چه دوی دَ قرآن په مقصد باندے نه دی پوهه نوځکه ئے نه منی او دا سے په سورۃ النمل ۸۴ اوسورۃ احقاف ۱۱ آیت کښ دی۔ دویم دا چه دوی ته دَ انکارکولو انجام نه دے ښکاره شوے چه هغه عذاب دے ځکه دوی انکار کوی۔

بَلْ كَذَّبُوْا بِمَا لَمْ يُحِيْطُوْا بِعِلْمِهٖ، باء په بِمَا کښ زائده ده او دا مفعول دَ كَذَّبُوْا دے یا باء سببیه ده او مفعول ئے پټ دے یعنی القرآن او دَ دے مراد دا دے چه هیڅوک دَ قرآن په علومو باندے احاطه نشی کولے او دوی هم نه ده کړے ځکه تکذیب کوی۔دویم مراد دا دے چه قرآن کښ دَ جنت جهنم وغیره ذکر دے چه هغه تر اوسه پورے دَ دوی په علم کښ نه دے راغلے۔ دریم مراد دا چه په قرآن کښ هغه علوم او مسائل دی چه دَ دوی په علم کښ تر اوسه پورے نه وو راغلے او دوی نه دی اوریدلی او مثل مشهور دے چه (الناس اعداء لما جهلوا) خلق چه په کوم څیز نه پوهیږی نو دشمنی ورسره کوی۔

وَلَمَّا يَاْتِهِمْ تَاْوِيْلُهٗ ، ضمیر راجع دے قرآن ته او تاویل نه مراد تفسیر دَ قرآن دے یعنی دوی تدبیر او سوچ په معانی دَ قرآن کښ نه دے کړے بلکه په تقلید دَ مشرانو سره ئے تکذیب کړیدے دا معنی تفسیر مدارک ذکر کړیده۔ دویم دا چه ضمیر تکذیب ته راجع دے او او تاویل په معنی دَ عاقبت سره دے یعنی دَ عذاب دَ تکذیب۔

مَّنۡ لَّا يُؤۡمِنُ بِهٖ ؕ وَرَبُّكَ اَعۡلَمُ

هغه څوک دي چه نه لري ایمان پدے قرآن او رب ستا ښه پوهه دے

بِالۡمُفۡسِدِيۡنَ ﴿۴۰﴾ وَاِنۡ كَذَّبُوۡكَ

په حال دَ فساد کوؤنکو. او که دوی تا دروغژن ګڼړی

فَقُلۡ لِّىۡ عَمَلِىۡ وَلَكُمۡ عَمَلُكُمۡ ۚ

نو اوایه زما دپاره بدله دَ عمل زما ده (چه دعوت دَحق دے) او تاسو لره بدله دَ عمل ستاسو ده

اَنۡتُمۡ بَرِيۡٓـئُوۡنَ مِمَّاۤ اَعۡمَلُ وَاَنَا

(چه انکار دے) تاسو خلاص یئ دَ هغه عمل نه چه زهٔ کوم او زهٔ

بَرِىۡٓءٌ مِّمَّا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۴۱﴾ وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ

خلاص یم دَ هغه عملونو نه چه تاسو ئے کوئ. او بعضے دَ دوی نه هغه څوک دي

ملا :- دے آیت کښ زور نه ده منکرینو ته او دلیل دے پدے بان دے چه څوک دَ قرآن نه انکار کوی نو هغه مفسد دے په دلیل دَ المفسدین لفظ سره۔

يُؤۡمِنُ او لَا يُؤۡمِنُ . دا خو یا په معنیٰ دَ مستقبل سره دے او یا په معنیٰ دَ ماضی سره دے۔

ملا :- په دے کښ تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او مطلب ئے دا دے که دوی ستا خبره نه منی نو دَ دوی نه اعلان دَ براءت اوکړه او هر کله چه په آیت کښ مقصد تخصیص دَ هر شخص په جزاء دَ خپل عمل سره دے نو دَ دے آیت دَ قتال سره هیڅ تعلق نشته نو هغه قول دَ بعضے مفسرینو صحیح نه دے چه وائی چه دا آیت منسوخ دے په آیتونو دَ قتال سره۔

يَّسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ ط اَفَاَنْتَ تُسْمِعُ

چه غوږ ږدي تاته ، آيا نو ته آورول کولے شے

الصُّمَّ وَلَوْ كَانُوْا لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿٤٢﴾

کڼړو ته او حال دا چه دوی عقل نه لري .

وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّنْظُرُ اِلَيْكَ ط اَفَاَنْتَ

او بعضے د دوی نه هغه څوک دی چه ګوري تاته آيا نو ته

تَهْدِي الْعُمْيَ وَلَوْ كَانُوْا لَا يُبْصِرُوْنَ ﴿٤٣﴾

خودنه کولے شے ړندو ته او حال دا چه دوی نه پوهيږي .

سلګ. په دے آيت کښ هم زورنه ده منکرينو ته چه دوی قرآن ته غوږ ږدي ليکن د زړه په غوږونو ئے نه اوري - او په يکښ تسلي هم ده پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته -

يَسْتَمِعُوْنَ ، دا استماع (اوريدل) په قصد د اعراض او استهزاء کولو ده -

الصُّمَّ ، په يکښ تشبيه د منديانو ده د کڼړو سره لکه کڼړ هم نه آوري نو فائده نشي اخستلے نو دا رنګ دوی هم داسے اوريدل نه کوی چه فائده ترے واخلي -

وَلَوْ كَانُوْا لَا يَعْقِلُوْنَ ، د دينه مخکښ تقدير د عبارت داسے دے چه کوڼړ سړے چه عقل لري نو هم خبره نه آوري نو کله چه بے عقله هم وی نو هغه په څه واوري ؟

سګګ. په دے آيت کښ هم زورنه ده منکرينو ته چه دوی تاته په ظاهري سترګو نظر کوی ستا د ويرولو د پاره يا ستا نه د تعجب کولو د پاره ، ليکن د دوی د زړه سترګے ړندے دی ، او په يکښ هم تسلي ده پيغمبر عليه السلام ته - په دے دواړو آيتونو کښ د کافرانو تشبيه ئے ورکړيده د کڼړو او د ړندو سره لکه چه کوڼړ هيڅ نه آوري او ړوند هيڅ نه ويني نو دا رنګے دا کافر د حق نه کاڼړه او ړانده دی .

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ النَّاسَ شَيْئًا وَّ

يقيناً الله تعالی نه کوی ظلم په خلقو هیڅ ظلم او

لٰكِنَّ النَّاسَ أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٤٤﴾

لیکن خلق په خپلو ځانونو باندے ظلم کوی .

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَنْ لَّمْ يَلْبَثُوْٓا

او په کومه ورځ چه راجمع به کړی دوی لره (دوی به گمان اوکړی) گویا نه وو حصار شوی

إِلَّا سَاعَةً مِّنَ النَّهَارِ يَتَعَارَفُوْنَ

مگر یو ساعت د ورځے نه پیژندگلی به کوی

بَيْنَهُمْ ط قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا

په مینځ خپل کښ، یقیناً تاوان والا دی هغه کسان دی چه دروغژن گڼړی

بِلِقَآءِ اللّٰهِ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿٤٥﴾

پیښ کیدل الله تعالی ته او نه دی دوی لار موندونکی .

---

وَلَوْ كَانُوْا لَا يُبْصِرُوْنَ ، تقدیر د عبارت داسے دے چه روند سړے څه وینی نه اگرچه د زړه بصیرت ئے وی نو هرکله چه د زړه بصیرت ئے هم نه وی نو هغه به څه اوینی ؟

سک :- دا جواب د یو سوال دے . سوال دا وو چه د دوی نه طاقت د اوریدلو او لیدلو اخستل آیا دا ظلم نه دے ؟

جواب :- حاصل ئے دا دے چه دا ظلم نه دے ځکه چه الله تعالی په چا هیڅ ظلم نه کوی بلکه هغه په خپل ملکیت کښ تصرف کوی چه څنگه اوغواړی ، او دا عدل دے - او دا رنگ الله تعالی دے خلقو ته اسباب د فائدے اخستلو ورکړیدی چه غوږونه سترگے او عقل دے لیکن د دوی ظلم کول دا دے چه دوی د هغے نه فائدے نه اخلی .

---

سک :- په دے آیت کښ ویره اخروی ده او دا د أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ، نتیجه ده مقصد ئے دا دے چه د قیامت دومره هیبت دے چه د هغے

وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ

او كه او وښايو موږ تا ته بعضې هغه عذاب چه وعده كوو د دوى سره

أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ

يا وفات كړو تا لره (مخكښې د عذاب د دوى نه) نو زما طرف ته راګرځيدل د دوى دي

ثُمَّ اللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ﴿٤٦﴾

بيا الله تعالى خبر دے په هغه كارونو چه دوى يې كوى -

د وجې نه دا منكرين خلق د دنيا عمر او د قبر حال يو ساعت قدرے به اوګنړى.

يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ، مراد د دے تعارف نه هغه تعارف دے چه د هغې په وجه په يو بل ته ملامتيا او زور نه وركوى او دا تعارف په بعضې حالاتو كښې دے او بيا به دا تعارف د ډيرو هيبتونو د وجې نه منقطع شى يا مراد دا چه دا سے تعارف به نه وى چه يو بل ته فائده وركوى صرف تعارف د ملامتيا كولو به وى - پس دے سره په آياتونو كښې تعارض دفع كيږى هغه آياتونه چه دلالت كوى چه په ورځ د حشر به دوى د يو بل د حال نه تاخبر وى تپوس نه به هم نشى كولے لكه په دے قول كښې فَلَآ اَنْسَابَ بَيْنَهُمْ وَلَا يَتَسَآءَلُوْنَ (سورة المؤمنون ١٠١) -

اِلَّا سَاعَةً، دا ګمان د دوى د هيبتونو د ورځ د حشر نه دے يا د دے وجې نه چه دوى خپل عمر برباد كړے وؤ او د آخرت د پاره يې هيڅ عمل نه وؤ كړے نو د دوى عمر دا سے شو لكه چه يو ساعت وى. نسبت نحشر ذكر دے په سورة طه ١٠٢ كښې او نسبت د يوم بعض يوم ذكر دے په مؤمنون ١١٣ كښې او نسبت د عشيه او ضحاها په سورة نازعات ٤٦ كښې او نسبت د قليل ذكر دے اسراء ٥٢ او مؤمنون ١١٤ كښې. او نسبت د ساعة په سورة روم ٥٥ او احقاف ٣٥ او په دے آيت كښې.

قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا، دا علت د ماقبل دے يعنى سبب د دے هيبتونو تكذيب د قيامت او نيشتوالے د هدايت د توحيد دے.

٤٦:- دے آيت كښې تسلى ده پيغمبر صلى الله عليه وسلم ته او يره وركول

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولٌ ج فَإِذَا جَآءَ

او دَ هر امت دَپاره رسول دے (گواهی کوونکے په دوی په ورځ دَقیامت) نو هر کله چه راشی

رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ

رسول دَدوی (دَپاره دَگواهئ) فیصله به اوشی په مینځ دَدوی کښ په انصاف سره

وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٤٧﴾ وَيَقُولُونَ

او په دوی به هیڅ ظلم نشی کیدے۔ او دوی وائی

دی منکریتو ته۔ مقصد دا دے یا به مونږ په دوی باندے په دنیا کښ عذاب راولو نو ته به ئے اوینے او که په دنیا کښ عذاب رانه ولو نو قیامت کښ به خامخا په دوی باندے عذاب وی۔ نو ته دَ دوی دَ عذاب نه بے غمه اوسه۔

أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ، جزاء هم پټه ده یعنی راویه وینئ آخرت کښ)۔

فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ، دا علت دَ پټے جزاء دے او دا سے په سورة مؤمن ۷۷ آیت او سورة زخرف ۴۱، ۴۲ آیتونو کښ هم راغلی دی۔

ثُمَّ اللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ، په دے کښ اشاره ده دیته چه دَ دوی په عملونو باندے نورو گواهانو ته حاجت نشته الله تعالیٰ په خپله خبر دے۔

وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ، دَپاره جزاء پټه ده یعنی رسنا تسلی به اوشی)۔

فائده :- په دے آیت کښ دَ نرینك مقابله دهٔ دَ نتوفینك سره دَ دیته معلومیږی چه پس دَ وفات نه دَ دنیا حالات نه لیدلے کیږی نبی صلی الله علیه وسلم ئے هم نه وینی۔

۴۷ :- دا دَ ویرے اخروی سره تعلق ساتی دَ دے آیت یو تفسیر دا دے چه دَ هر تیر شوی امت دَپاره رسول وو نو کله چه په ورځ دَ قیامت هغه رسول حاضر شی او شهادت ورکړی په امت باندے نو دوی له عذاب ورکیدے شی نو جاء رسولهم نه مراد په قیامت کښ حاضر کیدل دَپاره دَ شهادت ورکولو دی۔

دویم تفسیر دا دے چه دَ هر امت دَپاره رسول مقرر شوے وو

مَتٰی هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ

چه کله به وی دا وعده که یئ تاسو

صٰدِقِیْنَ ﴿۴۸﴾ قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِیْ

رشتینی ۔ اوایه ته زهٔ نه لرم اختیار دَ ځان دَپاره

ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ

دَ هیڅ ضرر لرے کولو او نه دَ فائدے حاصلولو لیکن هغه چه اوغواړی الله تعالیٰ

لِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ؕ اِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ

(نو هغه کوی) دَ هر یو (نه منونکی) امت دَپاره یوه نیټه ده (دَ عذاب) کله چه راشی دا نیټه دَ دوی

فَلَا یَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا یَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿۴۹﴾

پس نه به روستو کیدے شی یو ساعت او نه به مخکښ کیدے شی۔

دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه، نو کله به چه دا رسول دوی ته راغے په دنیا کښ نو دوی په انکار اوکړو نو په دوی به عذاب راغے، ینا په دویم تفسیر دے آیت کښ ویره دَ عذاب دنیوی ده او فاذا جاء رسولهم نه روستو لفظ دَ کن بوا پټ دے۔

سـ۴۸ :- دے آیت کښ زورنه ده منکرینو ته چه هر کله مخکښ آیت کښ اشاره اوشوه عذاب ته نو دوی تپوس اوکړو په طریقه دَ انکار چه دَ دغے عذاب نیټه مونږ ته اوخایه۔

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ، جمع ئے ذکر کړیده ځکه چه خطاب نبی او مؤمنانو ته دے۔

سـ۴۹ :- دا جواب دے دَ مخکښ قول دَ منکرینو۔ حاصل دَ جواب دا دے چه زهٔ ځان لره اختیار دَ نفع، ضرر نه لرم نو علم دَ تاریخ دَ عذاب دَ راتلو لره خبره ده لیکن دومره معلومه ده چه هر عذاب لره نیټه مقرر ده چه دَ هغے له، نه روستو کیدے شی او نه مخکښ کیدے شی۔

نکته :- داسے مضمون والا آیت سورة الاعراف سـ۱۸۸ آیت کښ هم تیر شویدے صرف فرق دا دے چه هلته ئے نفع مخکښ ذکر کړے ده او

قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَتٰىكُمْ عَذَابُهُ بَيَاتًا

ته اوايه آيا فكر كړيدلے تاسو كه راشي تاسو ته عذاب د الله تعالى د شپے

أَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُونَ ﴿٥٠﴾

يا د ورځے نو څه تدبير دے چه زر به اوكړي هغے لره مجرمان (د پاره د دفعے ئے كولو)۔

دلته كښ ئے ضرر مخكښ ذكر كړيدے نو وجه دا ده چه هلته د علم د قيامت خبره ده او علم نفع ده۔ او دلته كښ د عذاب ذكر وو او عذاب ضرر دے۔ نو هر آيت كښ د هغه ځائے مناسب لفظ مخكښ راوړے شوے دے۔

فائده :- جواب د مخكښ قول د كافرانو چه متى هذا الوعد دے په سورة ملك ۲۵ آيت كښ او سورة يٰس ۴۸ آيت كښ په بله طريقه سره ذكر كړے دے او دلته بله طريقه ده وجه دا ده چه دلته مقصد د دوى اعتراض وو په رسالت د رسول باندے نو په جواب كښ شان د رسول ئے ذكر كړو او په هغه دواړو سورتونو كښ مقصد اخبار د عذاب دے نو هلته د هغے مناسب ذكر اوكړو۔

إِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ، دا په سورت نحل ۶۱ آيت او سورة اعراف ۳۴ آيت كښ ذكر دى هلته وجه د فرق ذكر كړے شوے ده۔

۵۰ :- په دے آيت كښ زورنه ده منكرينو ته سره د ويرے وركولو د عذاب نه او تعلق د دے د طلب د عذاب سره دے يعنى د هغے دويم جواب دے حاصل ئے دا دے چه كله عذاب د الله تعالى د شپے يا د ورځے راشي نو دا منكرين به د هغے د دفع كولو د پاره سم ستى څه تدبير اوكړى بَيَاتًا منصوب دے په ظرفيت سره او په معنىٰ د ليلًا سره دے۔

مَاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُونَ، د دے يوه معنىٰ دا ده چه څومره لوے عذاب دے چه په تلوار سره طلب كوى مجرمان هغے لره د الله تعالى نه۔ او په دے توجيه سره جزاء د شرط د ان محذوف دے (پښيمانه به شى په استعجال باندے) په دے معنے سره ضمير د مِنْهُ راجع دے الله تعالى ته او دا اذا د استفهام د پاره د تعظيم او انكار دے۔ دويمه معنىٰ دا ده

آثُمَّ اِذَا مَا وَقَعَ اٰمَنْتُمْ بِهٖ ط آٰلْـٰٔنَ

آيا بيا كله چه راشي داعذاب نو ايمان به راورئ تاسو بيا اوس ايمان راوړئ

وَقَدْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۵۱﴾ ثُمَّ

او په تحقيق سره وئ تاسو چه دا مو په تلوار غوښتو - بيا به

قِيْلَ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذُوْقُوْا عَذَابَ

اُوئيلے شي ظالمانو ته او څكئ عذاب

الْخُلْدِ ۚ هَلْ تُجْزَوْنَ اِلَّا بِمَا كُنْتُمْ

دَ هميشوالي نه شي دركيدلے تاسو ته بدله مگر دَ هغه عمل په سبب چه تاسو

تَكْسِبُوْنَ ﴿۵۲﴾ وَيَسْتَنْۢبِـُٔوْنَكَ اَحَقٌّ هُوَ ط

كولو - او تپوس كوي دوي ستاسو نه آيا حق دے داعذاب دَ قيامت،

چه څه تدبير دے چه زر به ئے اوكړي مجرمان دَ پاره دَ بچ كيدلو دَ عذاب نه او بل دے معنے سره ضمير دَ مِنْهُ راجع دے لفظ دَ ماذا ته - او ما په معنیٰ دَ اي شيئ او ذا په معنیٰ دَ الذي دے او داجزاء دَ ان ده -

سلهٔ :- دا آيت هم دَ مخكښ سره تعلق لري مطلب ئے دا دے كه دوي دَ عذاب دَ دفع كولو دَ پاره دا تدبير اوكړي چه هغه وخت به ايمان راوړي نو ملائك به دوي ته جواب اوكړي چه آيا اوس ايمان راوړئ ، او حال دا دے چه پدے وخت كښ ايمان نه قبليږي -

آلْـٰٔنَ ، دَ ديته مخكښ عبارت پټ دے يعني راوبه وئيلے شي دوي ته) او دا سے پدے سورت سلهٔ آيت كښ دي -

سلهٔ :- دے آيت كښ ويره دَ عذاب دنيوي ده كه چرے دَ عَذَابَ الْخُلْدِ، نه مراد عذاب دَ دنيا شي او دَ مخكښ آيت سره مناسبت لري او عذاب دنيوي ته خُلد هله وئيلے شي چه په هغه عذاب كښ هلاك شي، او يا ويره اخروي ده كه چرے عذاب دَ خُلد نه مراد عذاب دَ آخرت شي -

قُلۡ اِیۡ وَرَبِّیۡٓ اِنَّهٗ لَحَقٌّ ؕۚ وَمَا

ته او وایه هاؤ قسم دے په رب زما یقینًا دا خامخا حق دے او نه یئ

اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِیۡنَ ﴿۵۳﴾ وَلَوۡ اَنَّ

تاسو بیچ کوؤنکی ځان لره دَ دے عذاب نه - او که شیٔ

لِکُلِّ نَفۡسٍ ظَلَمَتۡ مَا فِی الۡاَرۡضِ

دَ پاره دَ هر یو نفس چه ظلم ئے کړیدے هغه څه چه په زمکه کښ دی

لَافۡتَدَتۡ بِهٖ ؕ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ

خامخا بدله به ورکوی دے په هغے سره، او پټوی به دوی پښیمانتیا

لَمَّا رَاَوُا الۡعَذَابَ ۚ وَقُضِیَ بَیۡنَهُمۡ

هر کله چه اوینی دوی عذاب لره او فیصله به اوکړیشی په مینځ دَ دوی کښ

بِالۡقِسۡطِ وَهُمۡ لَا یُظۡلَمُوۡنَ ﴿۵۴﴾ اَلَاۤ اِنَّ

په انصاف سره او په دوی به هیڅ ظلم نشی کیدے - خبردار یقینًا

۵۳ :- دا زورته ده متکریتو دَ عذاب او دَ قیامت ته کوم چه په مخکښ آیت کښ ذکر شول - او پدے آیت کښ قسم کړیدے الله تعالی پخپل ذات باندے په باره دَ راتلو دَ قیامت کښ او دا رنګے قسم په سورة مریم ۶۸ آیت او سورة سبا ۳ آیت او سورة تغابن ۷ آیت کښ راغلی -

هُوَ، ضمیر راجع دے هغه عذاب ته چه وعده ئے کړے شویده چه عذاب الخلد دے په ورځ دَ قیامت -

بِمُعۡجِزِیۡنَ، لازمی دے په معنیٰ دَ بیچ کیدونکی دَ عذاب نه یا متعدی دے بیچ کوؤنکی ځان لره - یا عاجز کوؤنکے الله تعالی لره او عاجز کیدل دَ یو څیز لازم دی دَ هغے سره فوت کیدل -

۵۴ :- پدے آیت کښ هم ویره اخروی ده چه کله قیامت قائم شی نو مشرکان نه په فدیه ورکولو خلاصیږی او نه په پښیمانه کیدلو سره -

لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ

خاص اللہ تعالیٰ لرہ دے اختیار دَ هغه څیزونو چه په آسمانونو او په زمکه کښ دی

اَلَآ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّ لٰكِنَّ

خبردار یقیناً وعده دَ الله تعالیٰ یقینی ده او لیکن

اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۵۵﴾ هُوَ يُحْيٖ

اکثر دَ خلقو نه پوهیږی۔ خاص الله تعالیٰ ژوندی کول کوی

فائده:- لفظ دَ وَاَسَرُّوْا ، دَ اضدادو نه دے ، یعنی دَ دے دوه معنے دی چه دَ یو بل ضد دی۔ یو معنیٰ دا ده چه پټه به کړی مشران دَ مشرکینو پښیمانتیا لره دَ خپلو تابعدارو نه لیکن دا هغه وخت چه لا اُور ته نه وی داخل شوی۔

دویمه معنیٰ دا ده چه ښکاره به کړی دوی پښیمانتیا لره ځکه چه دوی عذاب وینی او هیبت به پرے راشی۔

لَافْتَدَتْ بِهٖ ، دَ دے نه روستو ما تقبل منها رقبول به نه کړے شی) پټ دے لکه چه په سورۃ آلعمران ۹۱ آیت او سورۃ مائده ۳۶ آیت کښ دی۔

۵۵:- خلاصه: دَ دے ځائے نه خلورم باب دَ سورت دے تر اویا پورے آیت پورے په یکښ رد دَ شرک فعلی دے ، دا رنګ رد دے په اتخاذ الولد بانده او عقلی دلیلونه دی چه کارساز او غیب دان صرف الله تعالیٰ دے۔ او ترغیب دے قرآن کریم ته او بشارت دے ایمان والو ته۔

تفسیر:- دا آیت دلیل عقلی دے چه واکدار دَ هرڅه الله تعالیٰ دے۔ او دَ دے په دویمه جمله کښ اثبات دَ بعث بعد الموت دے او مراد وَعْدَ اللّٰهِ ، نه هغه ده چه تیر شوے درے آیتونو کښ ذکر شوے ده او اِنَّ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ، آه هم دلالت کوی په فدیه نه قبلولو بانده۔

وَيُمِيتُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٥٦﴾ يَا أَيُّهَا

او مړه کول کوي او خاص هغه ته به او ګرځولے شئ تاسو - اے

النَّاسُ قَدْ جَاءَتْكُمْ مَوْعِظَةٌ

خلقو یقینًا راغلے دے تاسو ته وعظ (نصیحت)

مِنْ رَبِّكُمْ وَشِفَاءٌ لِمَا فِي الصُّدُورِ

دَ طرف دَ رب ستاسو نه او شفاء دَ هغه مرضونو چه په سینو کښ دی

وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾ قُلْ

او هدایت او رحمت دے دَ پاره دَ مؤمنانو - ته اُوایه

۵۶ :- دا هم دلیل عقلی دے چه اختیار متن دَ ژوند او دَ مرګ الله تعالیٰ دے - او په آخری جمله کښ اثبات دَ قیامت دے -

۵۷ :- په دے آیت کښ ترغیب دے قرآن پاک ته - هر کله چه مخکښ دَ عذاب او دَ قیامت ذکر اوکړے شو نو دَ هغے نه دَ بچ کیدلو دَ پاره ذریعه ذکر کړله چه قرآن دے -

او دَ قرآن ئے څلور صفات ذکر کړی دی -

اول ، مَوْعِظَةٌ ، یعنی منع کوونکے دَ بدو اخلاقو نه - وعظ زجر دے چه ورسره تخویف وی (خازن) -

دویم ، شِفَاءٌ ، یعنی علاج دَ مرضونو دَ زړه شرک او نفاق او شک او بغض وغیره - او دے دواړو ته صفات تخلیه وائی -

دریم ، هُدًى ، دے یعنی خودونکے دَ ښائسته عقائدو او اعمالو -

څلورم ، رَحْمَةٌ ، دے یعنی سبب دَ نرم والی دَ زړه دے او دَ نزول دَ رحمت الٰهی دے دَ ایمان والو دَ پاره - او دے دواړو ته صفات تحلیه او تجلیه وائی -

فائده :- هر کله چه اول ضروری دفع دَ ضرر وی او هغه په موعظه او شفاء کښ دی نو هغه ئے مخکښ کړل په صفتونو دَ نفع ورکولو باندے چه هغه هدًی او رحمة دے او دفع دَ ضرر هم دوه قسمه

بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ

په فضل دَ الله تعالیٰ او په رحمت دَ هغه سره نو په دې

فَلْيَفْرَحُوْا هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ﴿۵۸﴾

خوشحاله شي خلق دا غوره دے دَ هغه مال نه چه جمع کوي ئې خلق۔

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ

او وايه آيا فکر کړے تاسو چه څه چه پيدا کړي دي الله تعالیٰ ستاسو دَپاره

مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ مِّنْهُ حَرَامًا

څه رزق حلال تو جوړوئ تاسو بعضے دَ هغے نه حرام

وي يو هغه چه دَ ضرر نه منع کوي دويم هغه چه شته ضرر لرے کوي تو اول ته اشاره ده په موعظه او دويم ته اشاره ده په شفاء سره۔
۵۸۔ دا هم ترغيب دے قرآن ته۔ فَبِذٰلِكَ، اشاره ده مجموعه فضل او رحمت ته او په دے کلام کښ اختصار دے اصل داسے دے چه
بِذٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوْا بِذٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوْا بِالْحَقِّ۔ او تکرار دَ دير تاکيد دَپاره دے۔
قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ، مراد دَ فضل الله نه قرآن دے او مراد دَ رحمت نه توحيد او سنت دے چه دا دواړه سبب دَ خوشحالئ دے دَپاره دَ ايمان والو۔ دَ دے وجے نه حديث کښ راغلي دي چه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائي، رهغه څوک چه هغه ته الله تعالیٰ هدايت اوکړي دَ اسلام او علم ورته ورکړي دَ قرآن بيا دے مخلوق ته شکايت کوي دَ خپلے لوږے نو الله تعالیٰ به دَ ده دَ دواړو سترګو ترمينځه فقيري اوليکی ترمرګه پورے)۔
دويم قول دا دے چه مراد دَ فضل نه قرآن دے او مراد دَ رحمت نه دا دے چه الله تعالیٰ څوک دَ دے اهل اوګرځوي، دريم قول دا دے چه فضل قرآن دے او رحمت سنت دے۔

وَحَلٰلًا ؕ قُلۡ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمۡ

او بعضے حلال او ایه ته آیا الله تعالی اجازت کړیدے تاسو ته (د حرام حلال جوړولو)

اَمۡ عَلَى اللّٰهِ تَفۡتَرُوۡنَ ﴿۵۹﴾ وَمَا ظَنُّ

بلکه تاسو په الله تعالی باندے دروغ جوړوئ. او څه ګمان دے

الَّذِيۡنَ يَفۡتَرُوۡنَ عَلَى اللّٰهِ الۡكَذِبَ

د هغے کسانو چه جوړوی په الله تعالی باندے دروغ (چه څه به او کړی شی د دوی سره)

يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوۡ فَضۡلٍ

په ورځ د قیامت کښ ، یقینًا الله تعالی فضل والا دے

عَلَى النَّاسِ وَلٰـكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ

په خلقو باندے لیکن ډیر خلق

لَا يَشۡكُرُوۡنَ ﴿۶۰﴾ وَمَا تَكُوۡنُ فِىۡ شَاۡنٍ

شکر نه کوی . او نه یے ته په څه حال کښ

ع ۷ / ۱۱

سـ۵۹: دے آیت کښ رد دے د شرک فعلی، مطلب دا دے چه هر کله دلیلونه د توحید هم بیان شول او قرآن پاک هم موجود دے نو د ځان د طرف نه ولے حلال او حرام جوړوئ.

مِّنۡ رِّزۡقٍ ، فصلونه، څاروی وغیره او دا ټول په برکاتو د آسمان سره پیدا کیږی د دے وجے نه انزل ذکر شو او په دے آیت کښ سخت رد دے په هغه چا باندے چه په حلال حرام، جائز ناجائز کښ بغیر د دلیل نه د بل چا تقلید کوی او دیته شرک فی التشریع او فی الحکم او فی التحلیل والتحریم ویلے شی.

سـ۶۰: دے آیت کښ زورنه ده شرک فعلی کوونکو ته چه دوی په الله تعالی دروغ جوړوی.

اِنَّ اللّٰهَ لَذُوۡ فَضۡلٍ ، مراد د دینه فضل دے په دنیا کښ، نعمتونه ورکول او مهلت ورکول. دا رنګے فضل قرآن پاک دے چه په هغے

وَمَا تَتْلُوْا مِنْهُ مِنْ قُرْاٰنٍ وَّلَا تَعْمَلُوْنَ

او نه لولے ته د الله تعالىٰ د طرفه څه قرآن او نه کوئ تاسو

مِنْ عَمَلٍ اِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُوْدًا

څه كاروته (عملونه) مګر یو مونږ په تاسو باندې حاضر ناظر

اِذْ تُفِيْضُوْنَ فِيْهِ ۭ وَمَا يَعْزُبُ

كله چه شروع كوئ تاسو په هغے كښ، او نه شي پټیدے

عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْاَرْضِ

د رب ستا نه په قدر د يو ذرے په زمكه كښ

وَلَا فِي السَّمَاۗءِ وَلَآ اَصْغَرَ مِنْ ذٰلِكَ

او نه په آسمان كښ او نه وركوټے د دینه

وَلَآ اَكْبَرَ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝۶۱

او نه لوئے مګر په كتاب ښكاره كښ دى (علم د الله تعالىٰ)

كښ بيان د تحليل او تحريم دے۔

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ، دا منصوب دے په ظن سره يعنى د قيامت په باره كښ د دوى څه ګمان دے يا كلام پټ دے يعنى (ماذا يفعل بهم يوم القيامة)۔

ملا:- دے آيت كښ دليل عقلى دے چه عالم په هر پټ او ښكاره باندے يو الله تعالىٰ دے۔

فِيْ شَاْنٍ، چه شان مصدر وى نو په معنىٰ د قصد كولو سره دے او كله اسم مصدر وى په معنىٰ د هر حال او كار چه هغه مقصد وى، په دے آيت كښ د شان نه مراد هغه حالتونه د پيغمبر دى چه د دعوت والى سره تعلق لرى۔

وَمَا تَتْلُوْا مِنْهُ، مراد د دينه هغه حالت دے چه پيغمبر امت ته قرآن بيانوى، مِنْهُ، ضمير راجع دے الله تعالىٰ ته او مِنْ قُرْاٰنٍ،

أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ

خبردار یقینًا دوستان دَ اللہ تعالیٰ نه به وی هیڅ یره

عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٢﴾

په دوی باندے او نه به دوی غمژن کیږی (په ورځ دَ قیامت).

مِنْ ، بعضیه دے یا ضمیر راجع دے قرآن ته او دویم قرآن نه مراد ټکړه ده لکه آیت او سورت.

وَلَا تَعْمَلُونَ، مراد دینه ټول اعمال دَ امت دی.

کِتٰبٍ مُّبِیْنٍ، مراد دَ دینه لوح محفوظ دے او هغه تعبیر دے دَعلم دَ الله تعالیٰ نه چه لیکلے شوے دے.

فائده :- فِى الْاَرْضِ وَلَا فِى السَّمَآءِ ، دا سے په سورة سباء ۳ آیت کښ دی.

سوال :- دلته فِى الْاَرْضِ ئے مخکښ راوړیدے او سورة سبا کښ روستو دے ؟

جواب :- دلته مخکښ احوال دَ زمکے والو ذکر شول دَ دے وجے نه ارض ئے مخکښ راوړه.

وَلَا اَصْغَرَ ، دا منصوب دے ځکه چه اسم دے دَ لَا نفی الجنس دَ پاره.

۶۲ :- په دے آیت کښ زیرے دے نیکانو خلقو ته او په دے سورت کښ دَ اولیاء الله دَ ذکر کولو نکته دا معلومیږی چه مشرکینو هغوی شفعاء گنړل ، او دَ هغوی بندګی ئے کوله نو الله تعالیٰ په دے آیتونو کښ دَ هغے حقیقت حال ذکر کړو. چه اولیاء دَ الله تعالیٰ کیدے شی لیکن شفعاء نشی کیدے او اَوْلِيَآءَ اللَّهِ ، ولایت دَ دوی دَطرف نه محبت کول دَ الله تعالیٰ سره په طاعت او عبادت کولو سره او دَ الله تعالیٰ دَطرف نه ولایت هم محبت کول او حفاظت او نصرت کول دی. او دویمه معنیٰ موافق ده دَ سورت بقره ۲۵۷ آیت سره.

لَا خَوْفٌ ، مراد دَ دینه دا دے چه په قبر او حشر کښ به په دوی باندے خوف او حزن نه وی.

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَكَانُوْا يَتَّقُوْنَ ﴿٦٣﴾

دا هغه كسان دي چه ايمان يې راوړى دے او دوى ځان ساتي د هر ګناه نه۔

لَهُمُ الْبُشْرٰى فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

د دوى دپاره زيرے دے په ژوندنا دنيوى كښ۔

وَفِى الْاٰخِرَةِ ۭ لَا تَبْدِيْلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ

او په آخرت كښ۔ نشته بدليدل د كلمو د الله تعالىٰ لره (وعدے د هغه)

س ٦٣:۔ په دے آيت كښ تعريف د اولياء كرامو دے په دوؤ صفتونو سره۔

اوّل صفت د ايمان دے چه مراد د هغې نه ايمان كامل دے۔

دوئيم صفت د تقوىٰ دے چه مراد د هغې نه د شرك او بدعت د ګناهونو نه بچ كيدل دى۔

او خازن ذكر كړى دى چه ولى الله هغه دے چه عقيده يې صحيح وى بناء وى په دليل باندے او اعمال يې صالح وى موافق د شرعے سره وى او په حديث مرسل كښ راغلى دى چه اولياء الله هغه دے چه د هغوى په ليدلو سره الله تعالىٰ يا ديږى۔

دا آيت دليل دے په دے خبره چه څوك د يو حكم شرعي مخالفت كوى په شرك كولو يا بدعت كولو سره نو هغه ولى الله نه شي كيدے۔

خطيب شربيني په تفسير كښ د قشيرى نه نقل كړے دى چه په نبي كښ عصمت شرط دے او په ولى كښ حفاظت (ځان د ګناه نه بچ كول) شرط دى نو هغه چه په هغه باندے د شرع اعتراض وى نو هغه دهوكه مار دے۔

ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۶۴﴾ وَلَا

دا کامیابي لویه ده . او نه دې

يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ إِنَّ الْعِزَّةَ

خفه کوي تا لره وینا دَ دوي یقیناً عزت

لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۭ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۶۵﴾

په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دے ټول هغه هرڅه آوري په هرڅه پوهه دے .

اَلَآ إِنَّ لِلّٰهِ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ

خبردار یقیناً په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دي هغه څوک چه په آسمانونو کښ دي او هغه څوک

سلا :- دے آیت کښ زیرے دے اولیاء الله ته . دنیا کښ دَ بشارت ورکولو مقصد دا دے چه په حالت دَ ځنکدن کښ ملائک هغه له زیرے دَ جنت ورکوي دا رنګ رشتینې خوبونه لیدل ، او په حدیث دَ مسلم کښ وارد دي چه یو شخص نیک عمل کوي او نور خلق دَ ده تعریفونه په هغې وجه سره کوي نو دا دنیوي بشارت دَ مؤمن دے نو لفظ البُشریٰ عام دے که ملائیکو دَ طرف نه وي او که دَ انسانانو . او په آخرت کښ زیرے دا دے چه کله دَ قبرونو نه اوځي نو دوي له ملائک زیرے ورکوي دَ جنت .

سلا :- دا تسلي ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم او دَ هغه تابعدارانو ته چه که مخالفین خلق ستاسو تکذیب کوي یا افتراء کوي نو هغوي ستاسو عزت نشي کمولے ځکه چه اختیار دَ عزت دَ الله تعالیٰ سره دے . او ربط دَ دے دَ ما قبل سره دا دے چه ولي الله هغه دے چه منکرین خلق په هغه بانډے طعنونه وائي لیکن هغه دَ هغې پرواه نه کوي او پدے سره دَ هغه عزت عند الله نه کمیږي .

فِي الْأَرْضِ وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِيْنَ
چه په زمکه کښې دی او نه کوی تابعداری هغه کسان
يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُرَكَآءَ ط
چه بلی سوا دَ الله تعالیٰ نه شرکاؤ لره ،
اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ
تابعداری نه کوی دوی مګر دَ ګمان او نه دی دوی
اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ﴿۶۶﴾ هُوَ الَّذِيْ
مګر په اټکل کاروونه کوی ۔ خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے

۶۶ :۔ دے آیت کښې زورنه ده مشرکینو ته او دا دلیل عقلی دے او علت دے دَ اِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ، دَپاره ، پس دے آیت کښې یې مَنْ راوړے دے چه خاص دے په عقل والو پورے ملائک انسانان جنات او په ۵۵ آیت کښې لفظ دَ مَا راوړے وُو چه غیر عقل والو دَپاره دے یا عام دے او دے آیت کښې یې مَنْ دَ دے وجے نه ذکر کړو چه اولیاء الله پکښې داخل شی چه معلومه شی چه هغوی دَ الله تعالیٰ مملوک دی دَ هغه سره شریکان نشی کیدلے ۔

وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُرَكَآءَ ، دَ دے جملے دوه تفسیرونه دی ۔

اول تفسیر دا دے چه شرکاء مفعول دَ یتبع دے او مراد دَ دینه اولیاء الله دی ۔ مطلب دا دے چه دا مشرکان دَ دے اولیاء الله تابعداری نه کوی په باره دَ دین کښې او هسے یې دَ الله تعالیٰ سره شریک ګڼړی ۔

دویم تفسیر دا دے چه شرکاء مفعول دَ یدعون دے او دَ یتبع دَپاره مفعول محذوف دے ۔ مطلب دا دے چه داکوم خلق چه دَ الله تعالیٰ نه سوا شرکاؤ ته رامېدشه وائی دوی تابع نه دی دَ دلیل بلکه تابعداری کوی دَ ګمان ۔ او پس دے دواړو توجیهاتو سره لفظ دَ

جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ

چه جوړه کړے یې د ستاسو دپاره شپه (تیارے والا) دپاره د دې چې آرام او کړئ په هغې کښ

وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

او ورځ رڼا والا ۔ یقینًا په دې کښ دلیلونه دي د توحید د الله تعالٰی دي

لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ﴿۶۷﴾ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ

دپاره د هغه قوم چه غوږ نیسي ۔ وائي دوي نیولے دے الله تعالٰی

وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ ؕ هُوَ الْغَنِيُّ ؕ لَهٗ

نازولے پاک دے الله تعالٰی ، هغه بے حاجته دے ، خاص هغه لره دي

مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ

هغه څه چه په آسمانونو کښ دي او هغه څه چه په زمکه کښ دي ،

مَا، نافیه دے او جائز ده چه مَا استفهامیه شي په آخری توجیه باندے ۔

اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ۔

سوال :۔ اِنْ او اِلَّا دپاره د حصر دي او د یو څیز حصر څو په دوه طریقو سره صحیح نه وي؟

جواب :۔ اول حصر د دوي د اتباع او دلیل دے او دویم حصر د دوي د اقوال شرکیه دے چه هغه ټول دروغ دي ،

دویم جواب دا دے چه ظن دوه قسمه دے ۔ اول هغه ظن چه مستند د هغې دلیل شرعي دے او دویم هغه دے چه دلیل یې نشته نو دویمه جمله کښ اشاره شوه چه د دوي ظن دویم قسم دے ۔

۶۷ :۔ هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ، دا دلیل عقلي دے دپاره د توحید او په دے آیت کښ یو یو لفظ د اختصار دپاره غورځولے دے ۔ تفصیل یې دا دے (جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ مُظْلِمًا ، او د مُبْصِرًا نه روستو لتبتغو من فضله) او دا رنګ په سورۃ قصص ۷۳ آیت کښ دي۔

إِنْ عِنْدَكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ بِهٰذَا ؕ

نشته تاسو سره هيڅ دليل په دې خبره،

أَتَقُولُونَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٨﴾

آيا جوړوئ په الله تعالىٰ هغه خبرې چه نه يوهيږئ په هغې.

قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللّٰهِ

ته او وايه يقينًا هغه کسان چه جوړوي په الله تعالىٰ باندې

الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴿٦٩﴾ مَتَاعٌ فِي

دروغ نشي بچ کيدے (د عذاب د الله تعالىٰ نه) ـ دوي لره څه برے مزے دي په

الدُّنْيَا ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ

دنيا کښ بيا موږ ته راګرځيدل د دوي دي بيا به

س۶۸ ـ دے آيت کښ زورته ده هغه چا ته چه الله تعالىٰ ته نسبت کوي د ولد او په هغې رد دے په پنځو طريقو سره ـ او دا جواب دے د وهم د مشرکانو چه هغوي وئيل چه دا معبودات زموږ ځکه شفعاء دي چه دوي د الله تعالىٰ محبوب مطلق (نازولے) دي پشان د اولاد نو د دوي شفاعت الله تعالىٰ ضرور قبلوي نو په دے عقيده باندے يې رد اوکړو ـ او لفظ د اتخذ صريح دليل دے چه دلته مراد حقيقي ولد نه دے بلکه مراد د دينه حکمي ولد دے لکه چه د پلار اثار او صفات په اولاد کښ وي نو مشرکان وائي چه دا سے د الله تعالىٰ صفتونه د الوهيت هم په اولياء الله کښ شته دے ـ او تفصيل د دے په سورة بقره کښ تير شوے دے ـ

س۶۹ ، ۷۰ ـ دے دواړو آيتونو کښ ويره د عذاب اخروي ده هغه چا لره چه الله تعالىٰ ته نسبت د ولد کوي ـ

الْكَذِبَ ، مراد د دينه نسبت د ولد او د شريک دے الله تعالىٰ ته ـ

مَتَاعٌ ، دا جواب د سوال دے ـ

سوال :- چه هرکله دوي فلاح والا نه دي نو دوي له په دنيا کښ سامانونه

نَذِيْقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيْدَ بِمَا كَانُوْا

او څکوو دوی ته عذاب سخت په سبب د هغے چه دوی

يَكْفُرُوْنَ ۝۷۰ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ

کفر کوی . او بیان کړه په دوی باندے خبر

نُوْحٍ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ

د نوح علیه السلام کله چه اُوئیل هغه قوم خپل ته اے قومه زما

اِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ مَّقَامِيْ وَتَذْكِيْرِيْ

که گران وی په تاسو باندے اودریدل زما او بیانول زما

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَعَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ

آیتونو د الله تعالیٰ لره نو په الله تعالیٰ باندے ځان سپارلے دے ما

فَاَجْمِعُوْا اَمْرَكُمْ وَشُرَكَآءَكُمْ

نو کلک کړئ تدبیر خپل او را اوبلئ شریکان خپل

ثُمَّ لَا يَكُنْ اَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً

بیا دِ نه وی تدبیر ستاسو په تاسو باندے پټ

او عزتونه اولوے عمرونه ولے ورکړے شوی دی؟

جواب :- چه دا د دنیا برخه دی الله تعالیٰ کافرانو له هم ورکوی او دا مهلت دے او لفظ د لهم دلته پټ مراد دے . او تعبیر په ذوق سره په نُذِيْقُهُمْ، کښ اشاره ده چه د دوی په ټولو اندامونو او حواسو د بدن باندے دغه عذاب احاطه کړے ده . او اَلْعَذَابَ الشَّدِيْدَ ، کښ اشاره ده چه عذاب د آخرت سخت دے د عذاب د دُنیا او د قبر نه .

ثُمَّ اقْضُوْٓا اِلَیَّ وَلَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۷۱﴾

بیا تکلیف راکړئ ماته مخامخ او مهلت مه راکوئ ماته۔

سلک : خلاصه :- د دے آیت نه تر آخر د سورت پورے پنځم باب دے په دیکښ واقعه د نوح علیه السلام او د موسیٰ علیه السلام ده نمونې دی د پاره د عذاب دنیوی په منکرینو باندے ، او د دے دواړو واقعو تخصیص په دوه وجوهو سره دے۔

یوه وجه دا ده چه واقعه د نوح علیه السلام اوله ده او واقعه د اهلاک د فرعونیانو آخری ده نو اول او آخر ذکر شو او مینځ واقعات پکښ اشارةً داخل شول۔

دویمه وجه دا ده چه د دے سورت په ۲۲ آیت کښ د مشرکانو حال د ویرے د غرقیدلو ذکر شوے وو نو اشاره شوه چه دا ټول په مشیت او ارادے د الله تعالیٰ سره دی که اوغواړی نو څوک به غرق کړی لکه قوم نوح او فرعونیان او که اوغواړی نو څوک به بچ کړی لکه یونس علیه السلام ئے د غرقیدو نه بچ اوساتلو او د هغه قوم ئے د توبے په وجے سره د عذاب نه بچ اوساتلو او پدے باب کښ ذکر د قوم د یونس علیه السلام دے د پاره د ترغیب توبے ته مخکښ د عذاب راتلو نه او په آخر کښ بیان د پیغمبر صلی الله علیه وسلم دے۔ د پاره د رد د اقسامو د شرک او د پاره د ترغیب قرآن ته۔

تفسیر:- پدے آیت سلک کښ واقعه د نوح علیه السلام ده ، او دا واقعه د پاره د تخویف ذکر ده او د پاره د تسلی هم۔ د دے وجے نه پدیکښ مسئله د توحید ئے نده ذکر کړے۔

مَقَامِیْ ، مقام په زور د میم سره او دریدلو ته وئیلے شی په دیکښ اشاره ده چه هغه دعوت په اولاړے سره کوؤ۔

وَتَذْکِیْرِیْ بِاٰیٰتِ اللّٰهِ ، اشاره ده چه ټولو انبیاؤ دعوت او تبلیغ په آیاتونو د الله تعالیٰ سره کوؤ۔

فَعَلَی اللّٰهِ ، د دینه مخکښ لفظ پټ دے یعنی رفعزمتم علی قتلی

فَاِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَمَا سَاَلْتُكُمْ مِّنْ

نو کہ تاسو مخ واړوئ نو ما نہ دہ غوښتلے ستاسو نہ څہ

اَجْرٍ ؕ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۙ

مزدوری، نہ دہ مزدوری زما مگر دَ اللہ تعالیٰ سرہ دہ

وَاُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿۷۲﴾

او حکم کړے شوے دے ما تہ چہ یم زۂ دَ حکم منونکو نہ۔

وا ایذائی) قصد کوئ تاسو زما دَ قتل او دَ ضرر رسولو۔ او دے آیت کښ دَ نوح علیہ السلام شجاعت ذکر کړے شوے دے۔

ثُمَّ لَا یَكُنْ اَمْرُكُمْ عَلَیْكُمْ غُمَّةً، مطلب دَ دے دا دے چہ تاسو خپل کار زما پہ مقابلہ کښ ښکارہ کړئ ځکہ څوک چہ یو کار پټ کوی نو هغہ پورہ مقصد تہ نشی رسیدلے۔

ثُمَّ اقْضُوْا اِلَیَّ، یعنی زما پہ بارہ کښ چہ څہ فیصلہ اوکړئ نو هغہ ما تہ رااورسوئ یا تکلیف مراد شو۔

۷۲:۔ پدے آیت کښ ذکر شوے دے نیشتوالے دَ طمع دَ نوح علیہ السلام ځکہ چہ طمع دارسړے پورہ حق نشی بیانولے۔

فَاِنْ تَوَلَّیْتُمْ، دَ دے جزاء پټہ دہ یعنی زۂ ملامت نہ یم او دا روستو جملہ علت دَ جزاء دے۔ او هرکلہ چہ دعوت فرض عین دے پہ انبیاء علیہ السلام باندے نو دَ دعوی دَ پارہ پدے باندے اجرت اخستل منع دی او دا رنګ پہ چا باندے چہ یو عمل فرض عین وی نو پہ هغے باندے اجرت اخستل حرام دے۔

مِنَ الْمُسْلِمِیْنَ، تابعدار دَ حکم دَ اللہ تعالیٰ پہ اخلاص سرہ او دعوت کوونکے بغیر دَ اجرت نہ کہ خلق ئے قبلوی او کہ نہ یا اَلْمُسْلِمِیْنَ، نہ مراد جماعت دَ انبیاؤ۔ دے یعنی زہ پہ دے بیان او اجرت نہ اخستلو کښ دَ انبیاؤ۔ پہ مسلک باندے روان یم۔ او اشارہ دہ چہ اسلام دَ ټولو انبیاؤ علیهم السلام دین دے۔

فَكَذَّبُوْهُ فَنَجَّيْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ فِي

نو دوی هغه ته دروغژن اُو ئیل نو بچ کړو مونږ هغه او هغه څوک چه د ده ملګری وو په

الْفُلْكِ وَجَعَلْنٰهُمْ خَلٰٓئِفَ وَاَغْرَقْنَا

کشتۍ کښ او اوګرځول مونږ دوی روستو اوسیدونکی په زمکه کښ او غرق کړه مونږ

الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا فَانْظُرْ

هغه کسان چه دروغژن ئې ګنړل آیتونه زمونږه نو او ګوره

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿٧٣﴾

چه څه رنګه شو انجام د يره وركړے شوؤ۔

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ رُسُلًا اِلٰى قَوْمِهِمْ

بیا اوليږل مونږ روستو د هغه نه ډیر رسولان قوموتو د هغوی ته

فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَمَا كَانُوْا

نو راوړو هغوی دوی ته دليلونه نو نه وو هغوی چه

لِيُؤْمِنُوْا بِمَا كَذَّبُوْا بِهٖ مِنْ قَبْلُ

ايمان ئې راوړے وے په سبب د هغې چه دروغژن کړے وو حق لره مخکښ د دینه،

٧٣ :- په دے آيت کښ ذکر د نجات د ملګرو د نوح دے او ذکر د عذاب د منکريتو دے۔

فَكَذَّبُوْهُ، دا سبب د عذاب دے۔

خَلٰٓئِفَ، يعنى د نوح عليه السلام اولاد په زمکه کښ آباد شول لکه په سورة صافات ٧٧ آيت کښ۔

اَلَّذِيْنَ كَذَّبُوْا، دا دليل دے چه صرف مکذبين غرق شول نو په ټوله زمکه باندے طوفان نه دے راغلے او دا سے تفصيل په سورة اعراف او سورة هود کښ تير شو يدے۔

فَانْظُرْ، کښ مراد نظر د عبرت اخستلو دے يا سوچ کولو دے۔

كَذٰلِكَ نَطْبَعُ عَلٰى قُلُوْبِ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۷۴﴾

دَ دے وجے نه مُهر وهو مونږه په زړونو دَظالمانو (دَحد نه تيرو تونکو) باندے

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُّوْسٰى

بیا اولیږل مونږ روستو دَ هغوی نه موسٰی

وَهٰرُوْنَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَاۡئِهٖ

او هارون علیهما السلام فرعون ته او ختنانو دَ قوم دَ هغه ته

بِاٰيٰتِنَا فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا

په معجزاتو زمونږه نو لوئی اوکړه هغوی او وو دوی قوم

۷۴:- په دے آیت کښ دلیل نقلی اجمالی دے دَ پیغمبرانو نه او درے درجات دَ منکرینو ذکر دی - اول تکذیب، دویم عدم ایمان، دریم مهر په زړونو-

بِمَا كَذَّبُوْا، په دیکښ دوه توجیه دی - اول دا چه دَ ضمیر دَ لیؤمنوا او کذبوا یوه مرجع ده او قبل نه مراد اول حالت دے یعنی په اول حال ئے تکذیب اوکړو نو بیا دَ ایمان نه محرومه شول-

دویمه توجیه، لیؤمنوا ضمیر روستنو قومونو ته راجع دے او ضمیرِ دَ کذبوا قوم دَ نوح علیه السلام ته راجع دے او په باء دَ کذبوا کښ دوه احتمالونه دی -

اول احتمال دا چه باء سببیه ده یعنی په سبب دَ تکذیب دَ مخکنو روستنی هم (دَ هغوی دَ تقلید دَ وجے نه) دَ ایمان نه محروم شول -

دویم احتمال دا دے چه باء صله دَ لیؤمنوا ده نو معنیٰ دا چه روستنو ایمان رانه وړو په هغه څیز چه مخکنو دَ هغے تکذیب کړے وو-

كَذٰلِكَ، کاف په معنیٰ دَ لام علتیه دے-

مُّجْرِمِيْنَ ﴿۷۵﴾ فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ

| مجرمان ۔ | نو هرکله چه راغئ دوی ته | حق |
|---|---|---|

مِنْ عِنْدِنَا قَالُوْٓا اِنَّ هٰذَا لَسِحْرٌ

| دَ طرف زموږ نه | اُوئیل دوی | یقیناً دا | خامخا جادو |
|---|---|---|---|

مُّبِيْنٌ ﴿۷۶﴾ قَالَ مُوْسٰٓى اَتَقُوْلُوْنَ

| ښکاره دے ۔ | اُوئیل | موسیٰ | آیا | وایئ تاسو |
|---|---|---|---|---|

لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمْ ؕ اَسِحْرٌ هٰذَا ؕ

| په باره دَ حق کښې هرکله چه راغئ تاسوته ، | آیا جادو دے | دا ، |
|---|---|---|

۷۵ :۔ دا دلیل نقلی دے دَ موسیٰ علیه السلام نه او مقصود پدے کښې ویره ورکول دی منکرینو ته دَ عذاب دَ دنیا نه او بهادری دَ موسیٰ علیه السلام او دَ منکرو دَ هغه ذکر کوی ۔

بِاٰیٰتِنَا ، مراد دَ دینه هغه نهه معجزات دی چه سورة اعراف کښې تیر شویدی۔

فَاسْتَکْبَرُوْا ، مراد دا دے چه دَ توحید او رسالت منلو نه انکار دَ دے وجے نه اوکړو چه دوی ځان لوے گنړلو۔

مُّجْرِمِيْنَ ، جرموته او گناهونه یئے ښکاره کول او وروسته دے آیاتونو کښې دَ دوی استکبار او جرم ذکر کړیدے ۔

۷۶ :۔ پدے آیت کښې بیان دَ استکبار دَ هغوی دے او دَ اَلْحَقُّ ، نه مراد معجزات دَ موسیٰ علیه السلام دی ۔

لَسِحْرٌ مُّبِيْنٌ ، هرکله چه په هغه زمانه کښې دَ سحر کاروبار ډیر وو نو دوی دَ موسیٰ علیه السلام معجزه هم په هغے باندے قیاس کړله ۔

وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُوْنَ ﴿٧٧﴾ قَالُوْٓا اَجِئْتَنَا

او نشي كامياب كيدے جادوګر - اوئيل دوى آيا ته راغلے يے موږ ته

لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا

دے دپاره چه ته واړوے موږ لره د هغه طريقے نه چه موندلى دى موږ په هغے مشران خپل

وَتَكُوْنَ لَكُمَا الْكِبْرِيَآءُ فِى الْاَرْضِ ؕ

او شي دے تاسو دواړو لره باداشاهي په دے زمکه كښ ،

وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿٧٨﴾

او نه يو موږ تاسو لره منونكي -

٧٧ :- په دے كښ رد دے د طرف د موسىٰ عليه السلام نه په منكرينو باندے.
لَمَّا جَآءَكُمْ ، د دے نه روستو هٰذَا سحر حذف دے مقوله د تقولون ده -
اَسِحْرٌ هٰذَا ، كښ همزه د استفهام انكارى او توبيخ دپاره دے يا دا مقوله د تقولون دپاره او همزه استفهاميه په السحر كښ زيات دے د زورتے دپاره -
وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُوْنَ ، دا مے په سورة طٰهٰ ٦٩ آيت كښ هم شته -
٧٨ :- په دے آيت كښ دويم استكبار د هغوى ذكر دے او په موسىٰ او په هارون عليهما السلام يے دوه الزامه ولګول اول دا چه تاسو موږ د مشرانو د لارے نه اړوئ -
دويم دا چه تاسو زموږ نه باداشاهي د مصر اخلئ - په اول الزام كښ خفګان د عوامو خلقو دے او په دويم كښ خفګان د اقتدار والو دے - او په دے كښ اوله خبره په حقيقت كښ صحيح ده او دويمه باطله ده -

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ائْتُونِي بِكُلِّ

او اُوئیل فرعون راولئ ما ته هر

سَاحِرٍ عَلِيمٍ ﴿٧٩﴾ فَلَمَّا جَاءَ

جادوګر ماهر (پوهه). نو هر کله چه راغلل

السَّحَرَةُ قَالَ لَهُمْ مُوسَىٰ أَلْقُوا

جادګر اُوئیل دوی ته موسیٰ علیه السلام (پس د وینا د هغوی نه) اوغورځوئ

مَا أَنْتُمْ مُلْقُونَ ﴿٨٠﴾ فَلَمَّا أَلْقَوْا

هغه شے چه تاسو غورځوونکی یئ. نو هر کله چه دوی اوغورځول

قَالَ مُوسَىٰ مَا جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ

او ئیل موسیٰ هغه شے چه راوړی دے تاسو هغه خو جادو دے،

إِنَّ اللَّهَ سَيُبْطِلُهُ إِنَّ اللَّهَ لَا يُصْلِحُ

یقینًا الله تعالیٰ زر دے چه ختم به کړی اثر د دے، یقینًا الله تعالیٰ نه کامیابوی

سوی:۔ په دے کښ بیان دریم استکبار د فرعون دے په مقابله کولو سره په واسطه د ساحرانو او په دے طریقے سره ښکاره کوی چه موسیٰ علیه السلام ساحر دے لیکن کامیابه نه شو۔

سنه:۔ د دے آیت کښ تقدیر دا دے چه قَالَ لَهُمْ مُوسَىٰ بَعْدَ قَوْلِهِمْ أَلْقُوا مَا أَنْتُمْ مُلْقُونَ، یعنی اول قول هغوی اوکړو موسیٰ علیه السلام ته نو موسیٰ علیه السلام د هغوی په جواب کښ دا اُوئیل او دا سے په سورة اعراف سلا او سورة طٰهٰ سلا کښ ذکر دی۔ دلته په واقعه کښ اختصار مقصد دے د دے وجے نه د هغوی قول ئے حذف کړے دے

عَمَلَ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۸۱﴾ وَيُحِقُّ اللّٰهُ

عمل دَ مفسدانو ۔ او ښکاره کوی الله تعالیٰ

الْحَقَّ بِكَلِمٰتِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۸۲﴾

حق لره په کلمو خپلو سره اګر چه بد ګنړی مجرمان ۔

فَمَآ اٰمَنَ لِمُوْسٰى اِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّنْ

نو ایمان رانه وړلو په موسیٰ باندے مګر ځوځوانانو (اولاد) دَ

قَوْمِهٖ عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ

قوم دَ هغه نه سره دَ یرے دَ فرعون نه

وَمَلَا۠ئِهِمْ اَنْ يَّفْتِنَهُمْ ؕ وَاِنَّ فِرْعَوْنَ

او دَ ځنانو دَ قوم دَ هغوی نه چه وارَوی په هغوی لره (دَ دین نه) او یقیناً فرعون

سلا ۸۱:- په دے آیت کښ ردکول دَ موسیٰ علیه السلام دی په ساحرانو باندے او بیان دَ عاقبت دَ سحر دے او اشاره ده دیته چه سحر کول فساد دے ۔

مَا جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ، دا جمله دلالت کوی په حصر قلب باندے یعنی زما معجزه سحر نه دے ستاسو دا عمل سحر دے ۔

فائده:- تفسیر قرطبی کښ دَ عبد الله بن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه ځوک دَ شپے په بستره باندے څملی او دا ولی؛

مَا جِئْتُمْ بِهِ السِّحْرُ اِنَّ اللّٰهَ سَيُبْطِلُهٗ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ الْمُفْسِدِيْنَ، هغه ته به سحر ځه ضرر نه ورکوی ۔ او دا رنګ دا آیت چه اولیکلے شی په بدن دَ هغه چا چه جادو پرے کړے شوے وی نو الله تعالیٰ دَ هغه سحر دفع کوی ۔ لیکن پدے طریقے دَ لیکلو دَ پاره دلیل نشته او نور نقصانات ترینه پیدا کیږی هاں لوستل دَ قرآن دَ شفاء دَ پاره ثابت دی ۔

سلا ۸۲:- مراد بِكَلِمٰتِهٖ نه دلیلونه دَ الله تعالیٰ دی یا وعدے دَ امداد

لَعَالٍ فِی الْاَرْضِ ۚ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الْمُسْرِفِیْنَ ﴿۸۳﴾

خامخا اوچت وو په زمکه دَ مصر کښې او یقیناً دے خامخا وو دَ مشرکانو نه ۔

وَقَالَ مُوْسٰی یٰقَوْمِ اِنْ کُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ

او اُوئیل موسیٰ علیه السلام اے قومه زما که تاسو ایمان راوړے وی

بِاللّٰهِ فَعَلَیْهِ تَوَکَّلُوْٓا اِنْ کُنْتُمْ

په الله تعالیٰ نو خاص په الله تعالیٰ باندے ځان اوسپارئ که تاسو

دَ هغه دی یا مراد تری نه معجزات دی۔

وَیُحِقُّ اللّٰهُ ، دا عطف دے په سیبطله باندے۔

۸۳ :- په دے آیت کښې بیان دَ شجاعت دَ ملګرو دَ موسیٰ علیه السلام دے۔

اِلَّا ذُرِّیَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ ، لږ کسان مراد دی چه کمزوری وو که تارینه وی او که زنانه دی که یې وی او که بوډاګان وی دَ لفظ دَ ذریةٌ تحقیق په سورة آل عمران کښې تیر شوے ۔ په دے آیت کښې دوه توجیه دی۔

اول توجیه دا چه مِنْ قَوْمِهٖ ، ضمیر موسیٰ علیه السلام ته راجع دے نو مراد دَ دینه هغه بنی اسرائیل دی چه ایمان ئے راوړے وو په موسیٰ علیه السلام باندے۔

دویمه توجیه دا ده چه ضمیر راجع دے فرعون ته مراد دَ دینه بعضے هغه کسان وو دَ قوم دَ فرعون نه چه ایمان ئے راوړے وو لکه رجل مؤمن دَ آل فرعون په سورة حٰم مؤمن کښې ذکر دے او ښځه دَ فرعون او ساحران ۔ او مراد دَ آیت دا دے چه دے کسانو ایمان په اسے حالت کښې راوړے وو چه دَ فرعون او دَ هغه دَ قوم نه دا یره وه چه دوی ته به سخت تکلیفونه ورکړی لیکن دوی دَ هغے بیرواه اونکړه۔

لَعَالٍ فِی الْاَرْضِ ، مراد دَ دینه بادشاهی او اقتدار دَ هغه دے۔

وَاِنَّهٗ لَمِنَ الْمُسْرِفِیْنَ ، نه مراد شرک او کفر کول او ظلم کول دَ ده دی۔

مُّسْلِمِيْنَ ﴿٨٤﴾ فَقَالُوْا عَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلْنَا ج

حکم منونکی یئ۔ نو اُوئیل دوی خاص په الله تعالیٰ مونږ ځان سپارلے دے

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ

اے ربه زمونږه مونږ مه گرځوے ازمیښت (یا لاندے کړیشوے) دَ قوم

الظّٰلِمِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ

ظالمانو دَپاره۔ او بچ کړے مونږه په وسیله دَ رحمت ستا

۸۴:۔ هرکله چه هغوی ایمان راوړو نو دَ فرعونیانو دَ طرف نه په هغوی باندے ډیر ظلمونه شروع شول نو دا تسلی ورکول دَموسٰی علیه السلام دی مؤمنانو ته په وخت دَ مصیبتونو کښ او دا آیت دلیل دے پدے خبره چه کمال دَ ایمان او اسلام په سپارلو دَ کارخپل سره دے الله تعالیٰ ته۔ په دے آیت کښ ئے ایمان او اسلام دواړه جمع کړل نو ایمان صفت دَ زړه دے او اسلام ظاهری اعمال او تابعداری ده دَحکمونو دَ الله تعالیٰ اودَ روستو شرط دَپاره جزاء پټه ده (فاصبروا واثبتوا) اوآیت صریح دلیل دے چه توکل په الله تعالیٰ باندے مقتضیٰ دَ ایمان او اسلام ده۔

۸۵۔ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً، مراد دَ فتنے نه په عذاب کښ مبتلا کیدل دی په لاسونو دَ ظالمانو سره یا مراد فتنے نه مصیبتونه دی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه چه هغه امتحان دے دَپاره دَظالمانو ځکه هر کله چه په حق پرستو مصائب ډیر راشی نوظالمان وائی که دوی په حق باندے وے نو په دوی به دا عذابونه وے راتلل او دا امتحان دے۔

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا، اشاره ده چه دَ توکل سره دُعا هم یو ځائے کول پکار دی۔

مِنَ الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَاَوْحَيْنَآ

دَ قوم كافرانو نه - او وحي اوكړه مونږ

اِلٰى مُوْسٰى وَاَخِيْهِ اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا

موسىٰ عليه السلام ته او ورور دَ هغه ته چه تيار كړئ دَپاره دَ قوم ستاسو

بِمِصْرَ بُيُوْتًا وَّاجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ

په مصر كښې كورونه او جوړ كړئ په كورونو خپلو كښې

قِبْلَةً وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَبَشِّرِ

ځائے دَ مانځه او پابندي كوئ دَ مانځه او زيرے وركړه

الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٨٧﴾ وَقَالَ مُوْسٰى رَبَّنَآ

مؤمنانو ته دَ كاميابئ - او اُووئيل موسىٰ عليه السلام اے ربه زمونږه

٨٦:- دا آيت دليل دے په دے خبره چه غوره وسيله الله تعالىٰ ته په دُعا كښې رحمت دَ هغه دے - او دا نجات عام دے كه په هلاكولو دَ ظالمانو سره وي اوكه په توفيق دَ هجرت سره وي دَپاره دَ مؤمنانو اوكه په دوارو سره وي دلته دواره كارونه اوشول مؤمنانو ته ئے توفيق دَ هجرت وركړو او ظالمان ئے هلاك كړل.

٨٧:- په دے آيت كښې بيان دَ امور مصلحو دے په وخت دَ تكاليفو او مصيبتونو كښې مطلب ئے دا دے چه كله فرعون دوى تنګ كړل او په عبادتخانو كښې عبادت كولو ته نه پريخودل نو دوى ته اُووئيلے شول چه په كورونو كښې ځان له مساجد جوړ كړئ او په هغے كښې عبادت كوئ.

اَنْ تَبَوَّءَا لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوْتًا، مراد دَ دينه دا دے چه خپلے آبادئ دَ فرعونيانو نه جدا كړئ دَپاره دَ دے چه كوم وخت په هغے عذاب راځي چه تاسو ترے بچ يئ نو مراد دَ بيوت نه كورونه دَ اوسيدلو دي يا مراد دَ دينه عبادت خانے دي.

قِبْلَةً، مراد دَ قبلے نه كعبه ده ځكه چه كعبه قبله دَ ټولو انبياؤ ده

إِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِيْنَةً

يقيناً تا ورکړے دے فرعون ته او غټانو د هغه ته ډول (ښائست)

وَّاَمْوَالًا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا رَبَّنَا

او مالونه په ژوند دنيوي کښ اے ربه زمونږ

لِيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِكَ رَبَّنَا اطْمِسْ

(رتا قبت دا دے) چه واړوی خلق ستا د لارے نه اے ربه زمونږ بے کاره کړے

عَلٰٓى اَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ

مالونه د دوی او سختی راولے په زړونو د دوی

فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ

نو دوی ایمان نه راوړی تر دے پورے چه اوینی عذاب

الْاَلِيْمَ ﴿٨٨﴾ قَالَ قَدْ اُجِيْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا

درد ناک لره ۔ او فرمائیل الله تعالیٰ یقیناً قبوله شوه دعا ستاسو د دواړو

یعنی عبادت خانے کعبے طرف ته اوګرځوئ یا قبله چه په معنیٰ د مساجدو سره دے یعنی خپلو کورونو کښ مونځونه کوئ ۔
فائده :- اول خطاب موسیٰ او هارون علیهما السلام ته دے تثنیه ده ځکه چه عبادت ګاه مقرر کول او انتظام کول د انبیاء علیهم السلام کار دے ۔ دویم او دریم خطاب ونه جمع ده ځکه چه عبادت کول د ټول امت فریضه ده ۔ څلورم خطاب مفرد دے صرف موسیٰ علیه السلام ته خطاب دے اشاره ده عظمت د بشارت او مبشر به ته ۔
ف۸۸ :- په دے آیت کښ دعا د شر ، یعنی خیرے کول د موسیٰ علیه السلام دی په فرعونیانو باندے او هر کله چه دعاء شر د پاره اول ذکر د جرمونو ضروری دی چه سبب دے د پاره د خیرو کولو نو ذکر ئے کړو ۔

إِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِيْنَةً وَّاَمْوَالًا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا . یعنی محبت

فَاسْتَقِيمَا وَلَا تَتَّبِعَانِّ سَبِيلَ الَّذِينَ

تو کلک شئ یخپله طریقه او مه ځئ په لارے د هغے کسانو

لَا يَعْلَمُونَ ﴿٨٩﴾ وَجٰوَزْنَا بِبَنِي إِسْرَآئِيلَ

چه نه پوهیږی۔ او پورې ویستل مونږ بنی اسرائیل (اولاد د یعقوب علیه السلام)

د دنیا سبب د جرمونو کولو دے۔

لِيُضِلُّوا عَنْ سَبِيلِكَ، دا لام د عاقبت دے یعنی د دے مال ارځ انجام دا دے چه دوی یخپله هم گمراه شول او نور خلق هم گمراه کوی۔

اُطْمِسْ عَلٰى اَمْوَالِهِمْ، مراد دا دے چه د دوی مالونه که روپۍ او اشرفۍ دی او که فصلونه وغیره دی بے کاره او گرځوه نو هغه څیزونه تول تبے شول۔

وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ، د دینه مراد کلکول د دوی دی په کفر باندے په مهر وهلو سره د هغوی په زړونو۔

فَلَا يُؤْمِنُوْا، دا عطف دے په لیضلوا باندے په نیز د عام علماء نحویانو باندے او په نیز د اخفش او د فراء دا جواب د امر دے چه اطمس، او اشدد دے۔ او دا دعاء د موسٰی علیه السلام په هغه وخت کښې وه چه نا امیده شو د هغوی د ایمان راوړلو نه په شان د نوح علیه السلام۔

۸۹:۔ په دے آیت کښې قبولیت د دعاء د موسٰی او د هارون علیهم السلام دے اکثر مفسرینو لیکلی دی چه موسٰی علیه السلام دعا غوښتله او هارون علیه السلام په هغے آمین اُوئیل او آمین هم دعا ده، نو ځکه په دے آیت کښې د دعا نسبت یئے دواړو ته اوکړو۔

او ابن کثیر وئیلی دی چه په دے سره حجت نیولے هغه چا چه امام فاتحه اولولی او مقتدی آمین اُوائی نو دا سے شوه لکه چه هغه هم قراءت وئیلے وی لیکن دا موقوف روایت دے او بقاعی لیکلی دی چه هارون علیه السلام دغه وخت غائب وو لیکن هغه هم رضا وو په دے دعا باندے نو هغه ته ځکه نسبت اوکړے شو۔

فَاسْتَقِيمَا، مراد دا دے چه تر قبلیدلو د دعا پورے په خپل دین

الْبَحْرَ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُ

دَ دریاب نه نو ورپسے لاړو فرعون او لښکرے دَ هغه دَ ده

بَغْيًا وَعَدْوًا ۖ حَتَّىٰ إِذَا أَدْرَكَهُ

دَ ضد او دَ دشمنئ نه ترهغه پورے چه کله راګیر کړو ده لره

الْغَرَقُ قَالَ آمَنتُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ

غرقیدلو نو اوئیل ده چه ایمان ے راوړو په دے چه نشته حق دار دَ بندګئ

إِلَّا الَّذِي آمَنَتْ بِهِ بَنُو إِسْرَائِيلَ

سوا دَ هغه ذات نه چه ایمان راوړے دے په هغه بانددے بنو اسرائیلو

وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٩٠﴾ آلْآنَ وَقَدْ

او زه یم دَ توحید والو نه . راوئیلے شول ده ته) آیا اوس ایمان راوړے او حال دا چه

باندے کلک اوسئ . او دعوت جاری ساتئ او دا رنګ مراد دَ استقامت دا دے چه په قبلیدلو دَ دُعا کښ تلوار مه کوئ بعضو روایاتو کښ راغلی دی چه اجابت دَ دُعا نه څلویښت کاله پس فرعون هلاک شو.

وَلَا تَتَّبِعَانِّ سَبِيلَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ، مراد دا دے چه دَ جاهلانو پشان تلوار او بے صبری مه کوئ څکه تلوار کوونکی په دُعا کښ حکمت دَ مهلت ورکولو باندے نه پوهیږی.

ف :- په دے آیت کښ نجات دَ بنی اسرائیلو او غرقیدل دَ فرعونیانو ذکر شوی دی.

بَغْيًا وَّعَدْوًا ، یو فرق دا دے چه بغی په قول کښ ده او عدوًا په عمل کښ.

دویم دا چه بغی په عقیده کښ او عدوًا په عمل کښ.

دریم دا چه بغی په حقوق الله کښ او عدوًا په حقوق العباد کښ.

أَدْرَكَهُ الْغَرَقُ ، ادراک په معنیٰ دَ احاطے دے دَ هر طرف نه ئے راګیر کړو. نو معلومه شوه چه فرعون دَ غرق نه بچ شوے نه دے اګرچه ده یو مقصد په درے عبارتونو سره وئیلے دے.

عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنْتَ مِنَ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿٩١﴾

نافرماني دِ كړيده مخكښې د دينه، او وے ته د فساد كوونكو نه.

فَالْيَوْمَ نُنَجِّيْكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُوْنَ

نو نن پورته کوو بدان ستا دے دپاره چه شے ته

لِمَنْ خَلْفَكَ اٰيَةً ؕ وَاِنَّ كَثِيْرًا

د روستو خلقو دپاره نخه د عبرت، او يقيناً ډير

مِّنَ النَّاسِ عَنْ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُوْنَ ﴿٩٢﴾

د خلقو نه زمونږ د آيتونو نه بے پروا دي۔

ع ۹ ۱۰ ۱۴

اول، اٰمَنْتُ، دويم لَآ اِلٰهَ اِلَّا الَّذِيْٓ اٰمَنَتْ بِهٖ بَنُوْٓا اِسْرَآءِيْلَ ۔ دريم وَاَنَا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ، او دلته ايمان او اسلام يو څيز دے۔

ﺳ۹ :- دا قول د الله تعالىٰ دے په واسطه د جبرئيل يا د بل ملك سره ليكن په حديث ترمذي (حديث حسن) كښې راغلي دي چه جبرئيل فرعون ته په دغه حالت كښې د هغه په خوله كښې خټه اچوله نو معلومه شوه چه جبرئيل دغه كلمات وئيلي دي او په دے حديث باندے امام رازي ډير اوږد اعتراض كړے دے او خازن د هغے تفصيلي جواب ذكر كړے دے ۔ او وحيد الدين خان په كتاب عظمتِ قرآن كښې د ډيرو غير مسلم عبارتونه د دے خبرے په تصديق كښې ذكر كړي دي۔

ﺳ۹۲ :- روايتونو كښې راغلي دي چه د بني اسرائيلو يقين نه كيدلو چه فرعون غرق شوے دے الله تعالىٰ د هغه بدن دوي ته ښكاره كړو۔ او په دےكښې دوه توجيهات ذكر كړے شوي دي د هغے نه يو دا چه بدن د فرعون بغير د روح نه په غاړه د درياب باندے اوغورځولے شو۔ لكه چه اوس مشهوره ده چه د قاهرے په عجائب گهر كښې هغه بدن كيخودلے شوے دے۔ دويمه توجيه دا ده چه د ده بدن د اوبو د پاسه دوي ته ښكاره كړے شو او د دوي د زړونو نه شك اوتلو۔

نُنَجِّيْكَ ، د نجوه نه اخستلے شوے دے او نجوه اوچت مكان ته وئيلے شي۔

وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ مُبَوَّأَ

او يقيناً ځاے ورکړے وو موږ بنی اسرائيلو ته ځائے

صِدْقٍ وَّرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ

مزيدار او رزق ورکړے وو موږ دوی ته د پاکو څيزونو نه

فَمَا اخْتَلَفُوْا حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ

نو اختلاف او نکړو دوی (په مسئله د توحيد کښ) ترهغے چه راغے دوی ته علم،

إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِيْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ

يقيناً ستا رب به حملی فيصله اوکړی په مينځ د دوی کښ په ورځ

الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿٩٣﴾

د قيامت په هغه څيز کښ چه دوی به هغے کښ اختلاف کوی۔

بِبَدَنِكَ، مراد د بدن نه وجود (جوثه) بے وسه دے۔ اٰيَةً، عبرت د هغه چا دپاره چه د ربوبيت دعوے کوی يا تکبر کوی د حکمونو د الله تعالیٰ نه۔

عَنْ اٰيٰتِنَا، اشاره ده چه د الله تعالیٰ د عذابونو د ايوه نخه نه ده بلکه ډيرے نخے دی۔

۹۳۔ په دے آيت کښ ذکر د حال د بنی اسرائيلو دے روستو د غرقيدلو د فرعون نه۔ په دوی بانديے انعامات اجماليه په دے آيت کښ بيان شول يو مکان، دويم روزی د طيباتو نه او بيا د دوی ناشکری په اختلاف سره په حق کښ پس د علم نه دا هم ذکر شوه۔ لکه مخرج صدق، مدخل صدق، قدم صدق ذکر دی۔

مُبَوَّأَ صِدْقٍ، د دينه مراد زمکه د شام يا د مصر ده او د عربو عادت دے چه د يو څيز صفت او مدح کوی نو صدق ورسره لګوی که قول وی يا فعل يا مکان وغيره وی۔

حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ، مراد د علم نه قرآن دے يعنی د قرآن د نزول نه روستو په دوی کښ اختلاف راغے، يا مراد د علم نه تورات دے يعنی په تورات کښ په باطل تاويلونو او تحريفونو سره اختلافات پيدا شول۔

فَاِنْ كُنْتَ فِيْ شَكٍّ مِّمَّآ اَنْزَلْنَآ

نو که یې ته په شک کښې د هغه څیز نه چه رالیږلے مونږ

اِلَيْكَ فَسْــَٔلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ الْكِتٰبَ

تا ته نو تپوس اوکړه د هغې کسانو نه چه لوستو یې کتاب

مِنْ قَبْلِكَ لَقَدْ جَآءَكَ الْحَقُّ

ستا نه مخکښې (حق پرست علماء) یقینًا راغلے دے تا ته حق

مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۹۴﴾

د طرف د رب ستا نه نو مه کیږه ته د شک کوونکو نه.

۹۴:- هر کله چه مخکښې آیت کښې ذکر کړے شو اختلاف د اهل کتابو او دا اختلاف سبب وی د پاره د شک نو دے آیت کښې د شک د زائل کولو د پاره طریقه یې بیان کړه چه هغه تپوس کول دی د علماء و حق نه، بیا دے آیت کښې درے توجیه دی.

اوله توجیه دا ده چه خطاب نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دے او شک په معنیٰ مشهور سره دے لیکن حرف د اِنْ دلالت نه کوی په وجود شيء با ندے او دے وجے نه د دے آیت د نزول نه روستو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه نه زۀ شک کوم او نه تپوس کوم.

دویمه توجیه دا ده چه شک په معنیٰ د تنګوالی د زړه دے نو مطلب دا دے چه که ستا زړه تنګیږی په مخالفت د دے کسانو، نو صبر کوه او تپوس اوکړه د علماء و حق نه چه خبر درکړی تا لره په صبر کولو د تیر شوی پیغمبرانو. دا اسے مفسر قرطبی لیکلے دی.

دریمه توجیه دا ده چه په آیت کښې خطاب دے مشرکانو ته چه هغوی په اعتماد کوی په خبرو د کتابیانو، معنیٰ دا ده چه آوایه اے پیغمبره مشرک ته که یې ته په شک کښې د هغې کتاب او د مسئلے د توحید نه چه بیان کړیں دے مونږ تا ته نو تپوس اوکړه د نیکانو علماؤ د اهل کتابو نه.

وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الَّذِينَ كَذَّبُوا

او مه کیږه ته د هغه کسانو نه چه دروغژن گڼری

بِآيَاتِ اللَّهِ فَتَكُونَ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٩٥﴾

آیتونه د الله تعالیٰ نو شے به ته د تاوانیانو نه۔

إِنَّ الَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ

یقیناً هغه کسان چه پوره شویده په هغوی باندے فیصله

رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٩٦﴾ وَلَوْ جَاءَتْهُمْ

د رب ستا ایمان نه راوړی۔ اگرکه راشی دوی ته

كُلُّ آيَةٍ حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ﴿٩٧﴾

هره نخه تر دے چه اُوبنی دوی عذاب دردناک۔

دا هم قرطبی لیکلے دی۔

فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ، په یکښ هم خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته دے او مراد تری نه امت دے او مراد د دینه شک کول دی په حق کښ۔ یا مراد د دینه امتراء (شک) کول دی په نزول د عذاب کښ په منکرینو باندے۔

۹۵:۔ دا تفریع ده په شک کولو باندے یعنی شک کول سبب د تکذیب دے او تکذیب سبب د خسران دے۔

۹۶:۔ دے آیت کښ زور ته ده منکرینو ته مراد د کلمے نه عذاب د الله تعالیٰ دے په سبب د انکار د دوی او دا کلمه په تقدیر کښ لیکلے شوے ده۔

۹۷:۔ دا د مخکښ آیت سره تعلق لری چه دوی ته هر قسم آیت راشی نو دوی ایمان نه راوړی ترهغے پورے چه عذاب وینی نو بیا به ایمان راوړی لیکن فائده به نه ورکوی۔

فائده:۔ كُلُّ آيَةٍ، نه مراد جمع آیات دی نو ځکه ئے فعل مؤنث راوړو۔

فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ اٰمَنَتْ فَنَفَعَهَآ

تو ولے نه وو یو کلی والا چه ایمان ئے راوړے نو چه فائدہ ورکړے وو هغوی ته

اِيْمَانُهَآ اِلَّا قَوْمَ يُوْنُسَ ۗ لَمَّآ

ایمان د هغوی مگر قوم د یونس علیه السلام، هر کله چه دوی

اٰمَنُوْا كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ

ایمان راوړو نو لرے کړو مونږ د دوی نه عذاب د شرمندګئ

فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنٰهُمْ

په ژوند دنیوی کښ او مزے ورکړے مونږ دوی لره

اِلٰى حِيْنٍ ﴿۹۸﴾ وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ

تر یو وخت پورے۔ او که غوښتے رب ستا

۹۸:- په دے آیت کښ ذکر د توبے د قوم د یونس علیه السلام دے چه دوی په وخت باندے توبه ویستله نو د عذاب نه بچ شول مفسرینو لیکلی دی چه قوم د یونس علیه السلام په علاقه موصل، نینوا کلی کښ آباد وو او شرک ئے کوؤ نو یونس علیه السلام دوی ته دعوت د توحید ورکړو ډیر زمانه لیکن دوی انکار کوؤ نو یونس علیه السلام ته وحی راغله چه دے قوم له خبره ورکړه چه درے ورځے پس په دوی باندے عذاب راتلونکے دے که چرے دوی ایمان رانه وړو هر کله چه دریمه ورځ نزدے شوه نو یونس علیه السلام د دوی نه سفر اوکړو نو دوی پوهه شول چه عذاب یقیناً راتلونکے دے نو دوی توبه ویستله د شرک او د کفر نه او الله تعالیٰ ته ئے دُعا اوغوښتله نو عذاب د دوی نه دفع شو، صحیح قول په دیکښ دا دے چه عذاب په دوی لا نه وؤ راغلے د عذاب نه مخکښ دوی توبه ویستلے وه ځکه چه په وخت د راتللو د عذاب کښ ایمان او توبه فائده نه ورکوی۔

فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ اٰمَنَتْ، دا په معنیٰ د نفی دے۔

فَنَفَعَهَا، نافع ایمان هغه دے چه د وخت د غرغرے نه مخکښ وی۔

لَاٰمَنَ مَنۡ فِی الۡاَرۡضِ كُلُّهُمۡ

خامخا ایمان به راوړے وے هغه چا چه په زمکه کښ دوی ټولو

جَمِيۡعًا ؕ اَفَاَنۡتَ تُكۡرِهُ النَّاسَ

په جمع سره ، آیا نو ته زور کولے شے په خلقو

حَتّٰى يَكُوۡنُوۡا مُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۹۹﴾ وَمَا كَانَ

دے د پاره چه دوی مؤمنان شی ـ او نشی کیدلے

اِلَّا قَوۡمَ يُوۡنُسَ ، دا استثناء منقطع ده یعنی دوی ایمان نافع راوړے وو زجاج نه نقل دے چه دوی عذاب نه وو لیدلے صرف علامات د عذاب ئے اولیدلو۔

كَشَفۡنَا عَنۡهُمۡ عَذَابَ ، په معنیٰ د نفس لرے کولو سره دے یا استثناء متصل ده یعنی دوی عذاب اولیدلو یعنی قریب وو چه نازل شویوے لیکن په توبے سره هغه عذاب لرے کړے شو نو دا د دغه قوم خصوصیت دے ځکه چه الله تعالیٰ په خپل ارادے سره کار کوی او بل دا چه الله تعالیٰ د دوی د اخلاص د توبے نه خبر وو نو د دوی توبه ئے قبوله کړه ـ كَشَفۡنَا ، په معنیٰ د لرے کولو سره دے یعنی عذاب نزدے وو چه نازل شوے وے لیکن الله تعالیٰ د دوی نه بیرته واړوو۔

۹۹ :- په دے آیت کښ تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته چه ایمان د دے خلقو په مشیت د الله تعالیٰ سره دے ستا اختیار او زور په دیکښ نه چلیږی۔

شَآءَ رَبُّكَ ، یعنی ایمان د دوی په مشیت د الله تعالیٰ سره دے او مراد د مشیت د لطف او د مهربانئ دے لیکن الله تعالیٰ دا مشیت په باره د ټولو کښ نه دے کړے بلکه د چا د پاره چه ئے ایمان په تقدیر کښ لیکلے وی۔ نو صرف هغوی ایمان راوړی او معتزله وائی چه د دے نه مراد مشیت جبری دے یعنی جبر د الله تعالیٰ د طرفنه نشته د هر چا خپله خوښه وی او دوی تقدیر نه منی۔

لِنَفْسٍ اَنْ تُؤْمِنَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ

دَ یاره دَ هیچا چه ایمان راوړی مګر په توفیق دَ الله تعالیٰ ،

وَ یَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِیْنَ

او اچوی الله تعالیٰ پلیتی په هغه کسانو باندې

لَا یَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ قُلِ انْظُرُوْا مَاذَا فِی

چه عقل نه لری ۔ او ایه اوګوری چه څنګه دَلیلونه دی دَ توحید په

السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ؕ وَ مَا تُغْنِی الْاٰیٰتُ

آسمانونو او په زمکه کښې او فائده نه ورکوی دلیلونه

وَ النُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَّا یُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۱﴾

او یره ورکوونکی هغه قوم ته چه ایمان نه راوړی ۔

**تفسیر:** ۔ دا آیت تفصیل دَ ما قبل دے یعنی دَ ټولو دَ ایمان راوړلو مشیت الله تعالیٰ نه دے کړے بلکه بعضے په اذن دَ الله تعالیٰ سره ایمان راوړی او بعضے په پلیتئ دَ شرک کښې پریږدی او په دے آیت کښې هم تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته چه ایمان دَ خلقو په توفیق دَ الله تعالیٰ سره دے او کوم خلق چه په حق باندے نه پوهیږی نو هغوی په پلیتئ دَ شرک او دَ کفر کښې غورځوی ، دلته دَ اِذْنِ ، نه مراد تقدیر الٰهی او توفیق دے او رِجْسَ ، نه مراد شرک یا عذاب دے ۔

**تفسیر:** ۔ په دے آیت کښې دعوت دے منکرینو ته دَ پاره دَ فکر کولو په عقلی دلیلونو کښې او بیا زورنه ده په ایمان نه راوړلو دَ وجے دَ عناد نه ، او په دے آیت کښې دلیل دے چه انسان مجبور محض هم نه دے بلکه دے مکلف دے په نظر او فکر کولو سره دَ پاره دَ حاصلولو دَ هدایت ۔

قَوْمٍ لَّا یُؤْمِنُوْنَ ، مراد دَ دیته ضد او عناد کوونکی دی ۔

فَهَلْ يَنْتَظِرُوْنَ إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ
نو نه کوی انتظار دوی مګر په شان د واقعاتو
الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ط قُلْ
د هغه کسانو چه تیرشویدی مخکښ د دوی نه، ته اُوایه
فَانْتَظِرُوْا إِنِّيْ مَعَكُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾
تو انتظار کوئ یقیناً زۀ ستاسو سره د انتظار کوونکو نه یم۔
ثُمَّ نُنَجِّيْ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا
بیا واورئ بچ کریدی مونږ رسولان خپل او هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے
كَذٰلِكَ حَقًّا عَلَيْنَا نُنْجِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۳﴾ ع
د غسے لازم دہ په مونږ چه بچ کوؤ په مؤمنانو سره۔

ع ۱۱ ۱۵

۱۰۲ :- پدے آیت کښ ویره د عذاب دنیوی ده منکرینو ته۔
آیَّامِ، نه مراد واقعات د عذاب دی د مخکښ قوموتو ځکه د ایام اطلاق په واقعاتو د عذاب باندے کیږی او د ا رنګ په انعاماتو باندے هم اطلاق کیدیشی۔ لکه په ذکر هم بایام الله (سورة ابراهیم ۵)۔
۱۰۳ :- پدے آیت کښ زیرے دے مؤمنانو ته په نجات سره۔
ثُمَّ نُنَجِّيْ رُسُلَنَا، ثُمَّ پدے آیت کښ د پاره د تعقیب ذکری دے او صرف عطف د پاره دے او معطوف علیه محذوف دے (فنهلك المكذبين و ننجی آه) او دا فعل مضارع په معنیٰ د ماضی سره ده په قرینه د خَلَوْا مِنْ قَبْلِهِمْ سره۔
حَقًّا عَلَيْنَا، مراد د دینه حق تفضلی دے حق واجبه نه دے مراد ځکه چه الله تعالیٰ باندے څه شے واجب کیدے نشی۔ حق دوه قسمه دے۔ یو حق تفضلی دے یعنی د وعدے په وجه سره الله تعالیٰ په ځان باندے لازم کړے دے۔
دویم حق ایجابی استحقاقی دے دا دویم په الله تعالیٰ باندے نشته ځکه الله تعالیٰ فعال لما یرید دے او قادر دے په هر څه باندے نو

قُلْ يَآاَيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِيْ شَكٍّ
او وايه ته چه اے خلقو كه يئ تاسو په شک كښې
مِّنْ دِيْنِيْ فَلَآ اَعْبُدُ الَّذِيْنَ
دَ دين زما نه نو زۀ نه كوم بندګی دَ هغه كسانو
تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلٰكِنْ
چه تاسو بندګئ كوئ دَ هغوی سوا دَ الله تعالىٰ نه ليكن
اَعْبُدُ اللّٰهَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ ۚ وَ
زۀ بندګی خاص كوم دَ الله تعالىٰ هغه الله تعالىٰ چه مرګ راولی په تاسو او
اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۴﴾
حكم شوی دے ماته چه يم زۀ دَ مؤمنانو دَ ډلے نه۔

په هغه باندے دَ بيچا حق واجبه نشته او دَ دے وجے نه سوال په وسيله بحق فلان منع دے كه دَ حق نه مراد دويمه معنىٰ شی نو هغه خو په الله تعالىٰ باندے نشته او كه اوله معنىٰ شی نو دا وهم دے وهم دَ دويمه معنىٰ پيدا كوی او هيڅ صحيح حديث پدے كښې نشته دے۔ دا سے په فقه حنفی كتاب الكراهيه كښې ذكر دی۔

ربط:۔ پدے آيت كښې حكم دے پيغمبر صلى الله عليه وسلم ته دَ پاره دَ بيان تفصيلی دَ توحيد او پدے آيت كښې رد دَ شرك فی العبادات دے، حاصل دا دے چه كه خلق شک كوی په دين اسلام كښې نو دوی ته بيان اوكړه دَ اصل مسئلے چه توحيد دے ځكه چه فرق دَ دين اسلام دَ نورو دينونو نه په توحيد سره دے۔

فائده:۔ شک وائی برابر والی دَ دوؤ طرفونو ته نو دا لفظ ئے ځكه ذكر كړو چه فرعی عبادات او اكثر معاملات دَ مشركينو او دَ مؤمنانو شان وو نو شک راغے چه دَ دوی په مينځ كښې څه فرق دے نو پدے آيت كښې هغه فرق ئے بيان كړو په توحيد سره۔

فَلَآ اَعْبُدُ، نه مخكښې ذات جزاء پټه ده يعنی فاستمحوالا زالة

وَأَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّيْنِ حَنِيْفًا

راو (ښيلے شوي دي ما ته) چه برابر کړه ځان خپل دين ته چه کلک يې په توحيد

وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۰۵﴾ وَلَا

او مه کيږه د ډلے د مشرکانو نه . او مه وايه

تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ

رامدد شه سوا د الله تعالیٰ نه هغه چا ته چه نه نفع رسولے شي تا ته

وَلَا يَضُرُّكَ فَإِنْ فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا

او نه ضرر نو که اوکړو تا دا کار نو يقيناً ته په دغه وخت کښ به يې

مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۰۶﴾ وَإِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ

د ظالمانو نه . او که اورسوي تا ته الله تعالیٰ

الشك رغوړ کيدي ئې د پاره د ناڅل کولو د شک)

الَّذِيْ يَتَوَفّٰكُمْ، په ذکر د وفات سره اشاره ده حيات سابقه او تربيت ته تر مرګه پورے چه هغه دليل دے د پاره د قدرت د الله تعالیٰ او تخصيص د وفات يې د دے وجے نه اوکړو چه په دېکښ خوف ډير دے .

وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ، عبادت عمل د ظاهر دے او ايمان باطني عمل دے او اشاره ده چه عبادت سره ايمان شرط دے .

ف۱۰۵ :- د دے آيت په ابتداء کښ لفظ د قيل مراد دے . وَجْهَكَ، ذکر د مخ دے او مراد ترېنه ټول نفس او ټول اعمال دي نو په مخکښ آيت کښ ذکر د توحيد وو . او په دے آيت کښ په هغے باندے امر د استقامت او اجتناب د شرک نه ذکر کوي .

الْمُشْرِكِيْنَ، يعني د مشرکانو د جماعت سره هيڅ تعلق مه ساته .

ف۱۰۶ :- دے آيت کښ رد د شرک في الدعاء دے او دا يو قسم دے د شرک في العبادت نه چه سوا د الله تعالیٰ نه هيڅ مخلوق لائق د بللو او د حاجت غوښتلو نشته نه ځکه چه مخلوق اختيارمند د نفع او ضرر نه دے او په دے آيت کښ ظالم وښيلے شويدے هغه چا ته چه الله تعالیٰ نه سوا

بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ۚ

څه تکلیف نو نشته هیڅوک لرې کوونکې د هغې سوا د الله تعالیٰ نه

وَاِنْ يُّرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَآدَّ

او که اراده اوکړه ستا د خیر نو نشته هیڅوک واپس کوونکې

لِفَضْلِهٖ ؕ يُصِيْبُ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ

د فضل د هغه ، رسوی الله تعالیٰ دا ضرر او خیر چاته چه اوغواړی

مِنْ عِبَادِهٖ ؕ وَهُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ۝۱۰۷

د بندګانو خپلو نه او الله تعالیٰ بخونکې دے رحم کوونکې دے۔

بل چاته رامدد شه وائی - اوخطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته دے او مراد ترینه عام انسانان دی۔

۱۰۷ :- داپشان د علت دے د مخکښ آیت د پاره چه لا تق د بلنے بل څوک ځکه نشته چه ضرر لرے کول یا خیر ورکول صرف د الله تعالیٰ صفت دے اوپدے آیت کښ رد د شرک فی التصرف دے۔ لِفَضْلِهٖ ، دیکښ اشاره ده دینه چه اراده د خیر د الله تعالیٰ د طرف نه دا هم فضل دے او خیر ورکول دویم فضل دے۔ يُصِيْبُ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ، پدیکښ اشاره ده چه تقسیم د فضل د الله تعالیٰ په مشیت سره دے توکه د چا نه فضل بند شی نو د وجے د قدرت د غیر الله نه نه دے بلکه په مشیت د الله تعالیٰ سره دے۔ بِهٖ ، ضمیر صرف فضل ته راجع دے یا ضرر او فضل هر یو ته راجع دے۔

سوال :- د ضرر سره ئے مس ، ذکر کړیدے او د خیر سره ئے اراده ؟

جواب ۱ :- دا ذکر په طریقه د اکتفاء سره دے یعنی د مس سره اراده هم مراد ده او اراده سره مس هم مراد دے لیکن ذکر د یو ئے اوکړو او بل ئے حذف کړو۔

جواب ۲ :- انسان ته چه معمولی ضرر اورسی نو ډیر فریادونه کوی او د خیر اظهار هله کوی چه ډیر وی او دا سے په سورة انعام ۱۷ آیت کښ دے لیکن پدے سورت کښ د شک د لرے کولو د پاره تفصیل ضروری وو نو ځکه د خیر په جانب کښ اراده او فضل ئے ذکر کړو او سورة انعام کښ د دلیلو نو ذکر کول مقصد وو په هغے کښ اختصار هم کافی دے۔

قُلْ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ

اُو وايه ته اے خلقو يقينًا راغلے دے تاسو ته

الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَمَنِ اهْتَدٰى

حق د طرف د رب ستاسو نه نو څوک چه روان شو په حق پسے

فَاِنَّمَا يَهْتَدِىْ لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ

يقينًا روان دے په حق باندے دے د پاره د فائدے خپلے او څوک چه واوړيږ د حق نه

فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَمَآ اَنَا عَلَيْكُمْ

نو يقينًا واوړيږو تاوان په ده باندے ، او زۂ نه يم ستاسو

بِوَكِيْلٍ ﴿١٠٨﴾ وَاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ

ذمه وار - او تابع اوسه د هغه څه چه وحي كيږي تا ته

وَاصْبِرْ حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ

او صبر كوه تر هغے چه فيصله اوكړي الله تعالى او هغه غوره

الْحٰكِمِيْنَ ﴿١٠٩﴾

د فيصله كوونكو نه دے -

ع ١١ / ١٦

ف١٠٨ :- په دے آيت كښ ترغيب دے قرآن پاک ته د پاره د زائل كولو د شک . او د اَلْحَقُّ ، نه مراد قرآن يا تفصيل د توحيد دے چه بيان د قرآن ټول حق دے او د هغے په باره كښ ئے دوه دلے ذكر كړيدى - وَكِيْلٍ ، بندګانو كښ هغه دے چه هغه ته حقوق سپارلے شوے وى نو هغه ذمه دار وى -

ف١٠٩ :- دا تسلى او تشجيع ده پيغمبر ته په دعوت د توحيد او په اتباع د وحى سره او په صبر كولو سره په تكليفونو باندے تر فيصلے د الله تعالى پورے . مراد د فيصلے د الله تعالى نه عذاب وركول دى منكرينو ته يا توفيق وركول د ايمان دى -

(تمت سورة يونس)

سورۃ ھود مکیۃ | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | اٰیاتھا ۱۲۳ رکوعاتھا ۱۰

خاص په نوم د الله تعالی اما دغوارو په شروع کولو کښ چه رحمٰن او رحیم دے

الٓرٰ تف كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ

الله تعالی ښه پوهیږی په مطلب د دے، دا کتاب دے چه د حکمتونو نه ډک شوی ایتونه دی بیا واضح دی چه تفصیل کړے

مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ ﴿۱﴾ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا

د طرف د حکمت والا خبردار ذات نه دے. چه مه کوئ بندګی د چا

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورۃ ھــــود

ربط ۱ د دے سورت د مخکښ سورت سره دا دے چه سورۃ یونس کښ په مسئله د توحید باندے عقلی دلیلونه بیان شول نو په دے سورت کښ په هغې مسئلې باندے دلیلونه نقلی د پیغمبرانو نه بیانوی۔

ربط ۲ په هغه سورت کښ تفصیل د مسئلې د توحید وو نو په دے سورت کښ په تبلیغ د هغې کښ تشجیع ذکر کوی۔

دعوی:۔ د دے سورت درے دعوے دی۔

دعوی ۱:۔ اول رد د شرک فی العبادات، په دویم آیت کښ، سره د رد د شرک فی العلم او فی التصرف نه، په ۵، ۶ آیتونو کښ۔

دعوی ۲:۔ دویم تشجیع او ترغیب په تبلیغ د توحید باندے په ۱۲ آیت کښ۔

دعوی ۳:۔ تسلی پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته په ۱۲ آیت کښ۔

خلاصه:۔ د دے سورت خلاصه دا ده: چه دے سورت کښ درے بابونه دی اول باب د اول آیت نه تر ۲۴ آیت پورے دے په دے باب کښ ترغیب دے قرآن ته او درے دعوے د سورت دی او زجرونه دی انکار کوونکو ته او ویره اخروی ده منکرینو ته او زیرے دے د یاره د منونکو۔

إِلَّا اللَّهَ ۚ إِنَّنِي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ

سوا دَ الله تعالیٰ نه، یقینًا زهٔ ستاسو دَپاره دَطرف دَهغه نه یره ورکوونکے

وَبَشِيرٌ ﴿٢﴾ وَأَنِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ

او زیرے ورکوونکے یم۔ او بخنه غواړئ دَ رب خپل نه

ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُمَتِّعْكُم مَّتَاعًا

او توبه اوباسئ هغه نه نو دربه کړی تاسو ته مزے

حَسَنًا إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى وَيُؤْتِ

ښائسته تر نیټے مقرر پورے او دربه کړی

تفسیر: سلـ :- پدے آیت کښ روستو دَ ذکر دَ اعجاز دَ قرآن نه په آثر سره ترغیب دے قرآن پاک ته په بیان دَ دریو صفاتو سره۔

اول صفت :- أُحْكِمَتْ آيَاتُهُ ، دَ دے یو معنیٰ دا ده چه دَحکمتونو نه ډک کړے شوے دی آیتونه دَ دهٔ۔

دوئیمه معنیٰ دا ده چه محکم آیتونه دی نقصان او فساد پکښ نه راځی،

دریمه معنیٰ دا ده چه دا کتاب په بل کتاب سره نه منسوخ کیږی۔

دوئیم صفت ثُمَّ فُصِّلَتْ ، معنیٰ ئے دا ده چه بیان دَ توحید او دَ اصولی مسائلو په تفصیل سره کړے شوے دے دَ حکمتونو نه ډک دے ځکه چه دَ حَكِيمٍ ، دَ طرف نه دے ، او تفصیل پکښ ځکه دے چه دَ طرف دَ دَ خَبِيرٍ نه دے۔

سلـ :- پدے آیت کښ اوله دعوی دَ سورت ده چه الله تعالیٰ سره بندګئ کښ شریک مه جوړوئ او ورسره صدق رسول دے۔

أَلَّا تَعْبُدُوا ؛ دا مفعول له دَ احکمت او فصلت دے په تقدیر دَ لام سره لئلا تعبدوا او دلیل دے چه اصل مقصد دَ قرآن رد دَ شرک فی العبادة دے۔

كُلَّ ذِي فَضْلٍ فَضْلَهُ ۗ وَإِنْ تَوَلَّوْا

هر غوره عمل والا ته غوره جزا دَ هغه، او که تاسو مخ واړوو

فَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ

نو يقيناً زهٔ يريږم په تاسو باندے دَ عذاب دَ ورځے

كَبِيرٍ ﴿٣﴾ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ ۖ وَهُوَ

لوے نه۔ خاص الله تعالىٰ ته ورګرځيدل ستاسو دى او هغه

سـ۳ :۔ استغفار او توبه کښ فرق دا دے چه استغفار په ژبے سره دے او توبه په زړه سره ده، دويم دا چه استغفار، مطلب دا دے چه مخکښ کوم کفر او شرک مو کړيدے نو دَ هغے نه بخنه اوغواړئ نو توبه دا ده چه الله تعالىٰ ته ورا وګرځئ په طاعت او په توحيد سره او دَ دے يئ دوه فائدے ذکر کړيدى يو مَتَاعًا حَسَنًا، چه هغه اطمينان دَ ژوند دے او دَ هغے تفصيل په سورة نوح سلسـ۱۲ آيت کښ دے۔

او دويم وَيُؤْتِ كُلَّ ذِي فَضْلٍ فَضْلَهُ، يعنى خاوند دَ خائسته عمل ته زياته جزا ورکول چه هغه جنت دے۔

ذِي فَضْلٍ، دَ اول فضل نه مراد خوره عقيده او عمل دے او دويم فضل نه مراد دَ هغے جزا ده يا مضاف پټ دے جزاء فضله۔

وَإِنْ تَوَلَّوْا، دَ ترغيب نه روستو تخويف تَوَلَّوْا په اصل کښ تَتَوَلَّوْا دے يوه تا حذف شوے ده۔

يَوْمٍ كَبِيرٍ، ورځ دَ قيامت مراد ده يا عذاب دَ دُنيا مراد دے دَ هر عذاب ورځ لويه وى يا كبير په اصل کښ صفت دَ عذاب دے مجرور دے دَ وجے دَ جوار دَ يوم نه۔

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ④ اَلَآ اِنَّهُمْ

په هر څيز باندے قدرت والا دے۔ خبردار يقينًا دوى

يَثْنُوْنَ صُدُوْرَهُمْ لِيَسْتَخْفُوْا

(رانغاړى سينے خپلے (په دشمنئ دَ حق سره) دَدے دَپاره چه ځان پټ كړى

مِنْهُ ۭ اَلَا حِيْنَ يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ ۙ

دَ هغه نه، خبردار كله چه دوى ځان پټوى په جامو خپلو كښ

يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ

نو پوهيږى الله تعالىٰ په هغے چه پټوى دوى او په هغے چه ښكاره كوى دوى

اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ⑤

يقينًا الله تعالىٰ پوهيږى دَ سينو په خبرو باندے۔

ف۴۔ پدے آيت كښ ويره اخروى ده۔ قَدِيْرٌ، اشاره ده هغه انعامات او عذابونو ته چه مخكښ آيت كښ ذكر شو سره دَ دوباره ژوند نه چه الله تعالىٰ پدے ټولو څيزونو قادر دے۔

ف۵۔ دا هم داخل دے په اول دعوىٰ دَ سورت كښ يعنى الله تعالىٰ په هرڅه عالم دے دَ هغه نه څه پټ نشته۔ او پدے آيت كښ ذكر دے دَ دشمنئ دَ مشركانو دَ پيغمبرانو او دَ مؤمنانو سره، معنىٰ دا ده چه دوى دَ پيغمبر او مؤمنانو سره په زړونو كښ پټه دشمنى ساتى او خيال ئے دا دے چه الله تعالىٰ دَ دينه خبر نه دے ليكن الله تعالىٰ فرمائى كه دوى په ځان باندے جامے واچوى او په زړونو كښ دشمنى پټه اوساتى نو هم الله تعالىٰ په هغے خبر دے۔

لِيَسْتَخْفُوْا مِنْهُ، ضمير دَ مِنْهُ الله تعالىٰ ته راجع دے په زعم دَ دوى سره يا رسول ته راجع دے او پدے آيت كښ منافقان او حسن كوونكى دَ حق پرستو سره هم داخل دى۔

اَلَا حِيْنَ يَسْتَغْشُوْنَ ثِيَابَهُمْ، يعنى سره دَ پټ ساتلو دَ حسد نه په خپلو سينو كښ كه په جامو كښ هم ځان پټ كړى نو دَ الله تعالىٰ نه ئے

وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى

او نشته هیڅ ژوندی سر په ځمکه کښې مګر په

اللّٰهِ رِزْقُهَا وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا

الله تعالیٰ باندې روزي د هغې ده او پوهیږي الله تعالیٰ په ځای د آرام د هغې

وَمُسْتَوْدَعَهَا ۚ كُلٌّ فِي كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ﴿۶﴾

او په ځای د امانت د هغې، دا ټول په کتاب ښکاره کښې دي.

پټیږي، او دا حال وو د دې مشرکانو په وخت د جرګو کولو کښې په خلاف د نبي صلی الله علیه وسلم کښې او عام حالات پکښې داخل دي.

ف:- پدېکښې د اولې دعوې دریم جزء دې یعنې کارساز او ذمه وار د رزق صرف الله تعالیٰ دې - تفسیر د مُسْتَقَرّ او مُسْتَوْدَع، سورة انعام کښې تیر شوې دې.

كِتَابٍ مُّبِيْنٍ، مراد د دینه لوح محفوظ دې او هغه کتاب د تقدیر هم دې دا آیت دلیل دې په تقدیر مطلق باندې.

دَآبَّةٍ، په اصل لغت کښې هر هغه څیز ته ویلې شي چه په ځمکه باندې ګرځي او په عرف کښې چارپایانو ته ویلې شي او خاصکر آس ته ویلې شي دلته عامه معنیٰ مراد ده چه په هغې کښې انسانان داخل دي.

عَلَى اللّٰهِ، دا وجوب تفضلي دې ایجابي نه دې یعنې الله تعالیٰ په ځان باندې دا ذمه واري کیخودلې ده.

هر کله چه هر څیز ته روزي ورکول موقوف دي په علم تفصیلي د هغې باندې د دې وجې نه یعلم مستقرها ومستودعها ئې ذکر کړو - او لیکل د هر څیز په تقدیر کښې دلیل دې د علم د الله تعالیٰ په هر څیز باندې.

وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

او خاص الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړی دی آسمانونه

وَالْاَرْضَ فِي سِتَّةِ اَيَّامٍ وَّكَانَ

او زمکه په اندازه دَ شپږو ورځو کښې او ؤو

عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ لِيَبْلُوَكُمْ

عرش دَ الله تعالیٰ په اوبو باندے دے دپاره چه ازمیښت اوکړی ستاسو

اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا ۭ وَلَئِنْ قُلْتَ

چه کوم یو ستاسو خائسته عمل والا دے ، او که ته اَواے

اِنَّكُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ

یقینًا تاسو به پورته کیدلے شئ پس دَ مرګ نه

لَيَقُوْلَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ

خامخا وائی هغه کسان چه کافران دی چه نه ده دا خبره

اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ⑦ وَلَئِنْ اَخَّرْنَا

مګر دروغ دی ښکاره - او که روستو کړو مونږ

ف :- دَ دے آیت په اوله حصه کښې ذکر دَ تصرف او دَ خالقیت دَ الله تعالیٰ دے متعلق دے دَ مخکښې آیت سره چه خالق هم الله تعالیٰ دے لکه چه رازق دے او په دویمه حصه کښې زوزنه ده په انکار دَ بعث بعد الموت باندے ، ځکه دا آیت اوله حصه په عظیم قدرت دَ الله تعالیٰ باندے دلالت کوی نو په بعث بعد الموت باندے هم قادر دے نو انکارکوونکي دَ بیرے زورنے مستحق دی -

وَكَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ ، حدیث دَ بخاری دلالت کوی په دے باندے چه دَ آسمانونو او زمکو نه مخکښې الله تعالیٰ عرش پیدا کړے وو او عرش دَ الله تعالیٰ په اوبو باندے وو بیا ئے روستو آسمانونه

عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِلَىٰ أُمَّةٍ مَّعْدُودَةٍ
دَ دوی نه عذاب (دَ دُنیا) تر یو موده لږې پورې

لَّيَقُولُنَّ مَا يَحْبِسُهُ ۗ أَلَا يَوْمَ
خامخا دوی وائی چه څه څیز بند کړو عذاب لره، خبردار په کومه ورځ

يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ
چه راشی دوی ته نو واپه نه اړولے شی دَ دوی نه

او زمکه پیدا کړل۔ او دَ دے په ظاهر باندے ایمان لرل لازم دی تاویل دَ دے کول چه معنیٰ دا ده چه بادشاهی په ټولو موجوداتو ده او ګان زائد دے دا قول دَ بعضے معتزله او متصوفه وُ دے او باطل دے۔

اَحْسَنُ عَمَلًا، دَ فُضَیل بن عیاض نه نقل دے چه احسن عمل هغه دے چه په هغے کښې اخلاص وی یعنی دَ شرک او دَ ریاء نه پاک وی او هغه په طریقه دَ سنت باندے، که په دے دوارو کښې یو جز کم وی نو خائسته عمل ورته نشی وئیلے کیدے۔ او دا رنګ په سورة کهف ۷ آیت او سورة ملک ۲ آیت کښې ذکر دی۔

لِيَبْلُوَكُمْ، مراد دَ بلاء نه حقیقت خودل دی یعنی دنیا کښې هر څوک ګمان کوی چه زما عمل خائسته دے لیکن الله تعالیٰ دوی ته به دَ دے حقیقت او ښائی په ورځ دَ قیامت کښې لیکن حقیقت دَ څیزونو په امتحان سره معلومیږی په نزد دَ انسانانو دَ دے وجے نه دیته ابتلاء وئیلے شی او مکان دَ ابتلاء دنیا ده دَ دے وجے نه لیبلو متعلق دے په خلق پورے۔

سِحْرٌ مُّبِينٌ، دلته په معنیٰ دَ دروغ او دَ باطل دے لکه چه قاموس لیکلے دی، معنیٰ دَ جادو دلته کښې نه صحیح کیږی ځکه چه هذا اشاره ده قول دَ بعث بعد الموت ته۔

وَحَاقَ بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٨﴾ ع

اولاګير به كړي دوى لره هغه شے چه دوى به هغے پورے ټوقے كوى -

وَلَئِنْ اَذَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً

او كه اوڅكو مونږ يو انسان ته د خپل طرف نه څه نعمت

ثُمَّ نَزَعْنٰهَا مِنْهُ اِنَّهٗ لَيَئُوْسٌ كَفُوْرٌ ﴿٩﴾

بيا يې راكاږو د هغه نه ، نو يقينًا دے خامخا نااميده ناشكره به وى -

۸ :- دے آيت كښ بله زورنه ده منكرينو ته او ويره ده په عذاب دنيوى سره -

اُمَّةٍ مَّعْدُوْدَةٍ ، اُمَّةٍ ، په قرآن كښ په ډيرو معانيو سره دے لكه چه په تفسير د سورة بقرة كښ ذكر دى نو دلته په معنى د مدّت سره دے -

مَا يَحْبِسُهٗ ، دا په طريقه د استهزاء سره دے -

مَصْرُوْفًا ، يعنى الله تعالىٰ عذاب راولى او د هيڅ طاقت نه رسى چه هغه عذاب بل خوا واړوى -

مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ، مضاف حذف دے يعنى وبال -

او مَا كَانُوْا ، كښ مَا مصدريه دے روبال استهزا شهم يا مَا په معنى د عذاب دے او يستهزءون په معنى د يستعجلونك دے يعنى هغه عذاب چه دوى په ستلوار سره غوختلو -

۹ :- دے آيت كښ هم زورنه ده انسان ته په كمزورولى د عقيدے د ده په وخت د انتقال كښ د نعمت نه د محنت ته -

لَيَئُوْسٌ كَفُوْرٌ ، اول حالت د باطن دے او دويم حال د ژبے او د ظاهر دے -

وَلَئِنْ أَذَقْنٰهُ نَعْمَآءَ بَعْدَ ضَرَّآءَ

او که اوڅکو مونږ ده ته نعمت پس دَ تکلیف نه

مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ

چه رسیدلے وی ده ته خامخا وائی دے لاړل ټول تکلیفونه

عَنِّيْ ط إِنَّهُ لَفَرِحٌ فَخُورٌ ﴿۱۰﴾

زما نه ، یقینًا دے خامخا تکبر کوونکے فخر کوونکے وی۔

إِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ط

مګر هغه کسان چه کلک ایمان والا دی او عملونه ئے کړی په طریقه دَ پیغمبر

أُولٰٓئِكَ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّأَجْرٌ كَبِيْرٌ ﴿۱۱﴾

دغه کسان دوی دَ پاره بخنه ده او اجر لوے دے۔

سلا :۔ دے آیت کښ هم زورنه ده په وخت دَ انتقال کښ دَ محنت نه نعمت ته چه انسان په حالت دَ نعمت کښ تکبر او لوئی کوی۔ نسبت دَ ذوق دَ نعمت الله تعالیٰ ته اشاره ده چه نعمت دَ الله تعالیٰ خالص په رحم دَ الله تعالیٰ سره دے او هر کله چه نعمتونه دَ دنیا فانی دی دَ دے وجے نه ئے په لفظ دَ ذوق سره ذکر کړے دے۔

لَفَرِحٌ ، مراد دَ دینه فرح دَ بد او دَ تکبر کولو ده۔

ذَهَبَ السَّيِّاٰتُ عَنِّيْ ، مطلب دا دے چه تکالیف زما نه لاړل زما په تدبیرونو سره یا زما دَ معبودانو په زور سره۔

فَخُوْرٌ ، فخر دا دے چه خپل صفتونه خلقو ته ذکر کوی ، او دے ته په پښتو کښ دوزے ویشتل وئیلے شی۔ او دا فرح او فخر منع کوی ده لره دَ شکر کولو نه۔

سلا :۔ دے آیت کښ زیرے دے متونکو لره۔ صَبَرُوْا ، نه مراد دا دے چه په حالت دَ نعمت کښ او په حالت دَ سختئ کښ ټینګ دے په ایمان باندے صبروا په مقابله دَ لیئوس کفور کښ او وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ، په مقابله دَ فرح فخور کښ دے او مَغْفِرَةٌ ، متعلق دَ

فَلَعَلَّكَ تَارِكٌۢ بَعْضَ مَا يُوْحٰٓى

نو آیا ته پریخودونکے یئے بعضے دَ هغے چه وحی کړے شو بیا ده

اِلَيْكَ وَضَآئِقٌۢ بِهٖ صَدْرُكَ

تا ته (مسئله دَ توحید) او آیا تنګیږی په دے سره سینه ستا دَ دے وجے نه

اَنْ يَّقُوْلُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ

چه دوی وائی ولے نشی نازلیدلے په ده باندے

كَنْزٌ اَوْ جَآءَ مَعَهٗ مَلَكٌ ؕ اِنَّمَا

خزانه یا ولے نه کړځی دَ ده سره ملک، یقیناً

اَنْتَ نَذِيْرٌ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ

ته یره ورکوونکے یئے، او الله تعالیٰ دَ هر شیز

وَّكِيْلٌ ؕ ﴿۱۲﴾ اَمْ يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰىهُ ؕ

ذمه وار دے۔ آیا وائی دوی چه دَ ځان نه یئے جوړ کړے دا قرآن

دَ صبر کولو سره په مصیبتونو باندے او وَاَجْرٌ كَبِيْرٌ په سبب دَ عمل صالح سره دے۔

۱۲:- په دے آیت کښ دویمه دعوی دَ سورت ده چه هغه تشجیع ده په بیان دَ توحید باندے یعنی که دا مشرکان په تا اعتراضونه کوی نو دَ هغے دَ وجے نه دے ستا زړه تنګ نشی او بیان دَ توحید پرے نه ږدئ۔ فَلَعَلَّكَ، لَعَلَّ، په دے ځائے کښ دَ پاره دَ استفهام انکاری دے یعنی "اے نبی ته پریخودونکے نه یئے"۔ فَا تفریع ده په څلورو حالاتو تیر شوی باندے سحر وئیل، استهزاء کول، ناشکری کول، فخر او تکبر کول دا په اکثرو اوقاتو کښ سبب اوګرځی دَ پاره دَ مداهنت دَ مبلغ نو په دے آیت کښ دَ هغے نه منع او کړله۔ بَعْضَ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ، مراد دَ دینه بیان کول دَ توحید دی چه مشرکانو باندے دَ توحید بیان بد لګی۔ وَضَآئِقٌۢ، دا عطف دَ سبب دے په مسبب باندے یعنی تنګیدل سبب وی دَ پاره دَ پریخودلو دَ حق۔ لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ اَوْ جَآءَ مَعَهٗ مَلَكٌ، دا دوه قوتونو ته اشاره ده اول قوت ظاهری دویم قوت باطنی۔

قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهٖ

ته اوایه نو راوړئ لس سورتو ته پشان د ده

مُفْتَرَيٰتٍ وَّادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُمْ

دځان نه جوړ کړے شوے او رابلئ هغه چا لره چه ستاسو طاقت وی

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۳﴾

سوا د الله تعالیٰ نه که تاسو رښتینی یئ۔

فَاِلَّمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَكُمْ فَاعْلَمُوْٓا

نو که دوی قبوله نکړی خبره ستاسو نو پوهه شئ

اَنَّمَآ اُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَاَنْ لَّآ اِلٰهَ

چه یقیناً نازل شوے دے دا قرآن په علم د الله تعالیٰ سره او دا خبره چه نشته حقدار د بندګئ

۱۳:۔ دا زورنه ده منکرینو د قرآن ته او بیان د اعجاز د قرآن دے په طلب د مقابلے سره په لسو سورتونو سره، وئیلے شوی دی چه د مخالفینو په هغه وخت کښ لس لوے قبیلے وے نو د هرے قبیلے نه د یو یو سورت د راوړلو طلب کړے شوے وو، یا دا چه تردے ځائے پورے د ابتدا د قرآن نه لس سورتونه دی نو په تشبیه کښ دغه سورتونو ته اشاره ده۔

سوال :۔ سورت یونس کښ مقابله په یو سورت سره ذکر کړے ده او په دیکښ په لسو سره او دا سورت د سورة یونس نه روستو نازل شوے دے نو په څه وجه دلته ترقی د کم نه زیات ته اوشوه ؟

جواب :۔ مبرد د دے په جواب کښ وئیلی دی چه په سورة یونس کښ مقابله په احکامو او وعد او وعید او اخبار بالغیب الصادق سره ذکر وه او د هغے د پاره د یو سورت راوړل هم کافی دی او په دے سورت کښ مقابله په صرف فصاحت او بلاغت سره مراد ده نو د دے د پاره د یر سورتونه پکار دی چه تقابل او فرق معلوم شی۔

إِلَّا هُوَ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿١٤﴾

سِوا دَ الله تعالىٰ نه نو آيا تاسو منونكى دَ حكم يئ (يعنى او منئ).

مَن كَانَ يُرِيدُ الْحَيَوٰةَ الدُّنْيَا

هغه څوک چه غواړي (په عمل خپل سره) ژوندون دَ دُنيا

وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ

او ددې (رخائست) دَ هغې نو پوره به ورکړو دوی ته بدله دَ عملونو دَ دوی

فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ﴿١٥﴾

په دُنيا کښ او دَ دوی ته په هغې کښ څه کمے نشي کيدے.

سلا:- دے آيت کښ بيان دَ صدق دَ قرآن دے او بيان دَ هغې مسئلے دے چه قرآن دَ هغې مسئلے دَ پاره نازل شويدے چه هغه لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ، دے.

لَكُمْ، جمع کښ اشاره ده چه مؤمنان هم په طلب دَ مقابله کښ دَ نبي صلى الله عليه وسلم سره شريک دی.

بِعِلْمِ اللهِ، يعنى مشتمل په علمونو دَ الله تعالىٰ سره او دَ الله تعالىٰ دَ علمونو مقابله مخلوق نشي کولے.

وَأَن لَّآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ، دا عطف دے په علم الله باندے يا عطف دے په أَنَّمَا باندے او دواړو معانو کښ دليل دے چه موضوع او خلاصه دَ قرآن توحيد دے.

سلا:- دے آيت کښ زورنه ده هغه چاته چه مقصد يئ دنيا گرځولے وی ځکه چه دا سبب دَ انکار دَ قرآن دے او دا آيت هغه چاته هم شامل دے چه په عمل دَ دين سره اجرت دَ دنيا طلب کوی.

مَن كَانَ يُرِيدُ، په صيغه دَ ماضي استمراري کښ اشاره ده چه هميش کيري کوونکے په نيت باندے دے.

الْحَيَوٰةَ الدُّنْيَا، يعنى نيک اعمال کوی دَ پاره دَ دے چه صحت او عافيت او رياست ورته حاصل شي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي
دا هغه کسان دي چه نشته دوی لره په
الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا
آخرت کښ مګر اور، او برباد به شي هغه نیک عملونه چه دوی کړي
فِيهَا وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٦﴾
په دنیا کښ او بے فائدے دي هغه کارونه چه دوی ئے کوي۔
أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن
آیا نو هغه څوک چه وي په ښکاره دلیل باندے د طرف د
رَّبِّهِ وَيَتْلُوهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ
رب خپل نه او ملګري وي د ده سره ګواه د طرف د هغه نه

وَزِينَتَهَا، مراد د دینه وسعت د رزق دے او ډیر والے د اولاد دے لکه په سورة کهف ١٢ کښ دی۔

نُوَفِّ إِلَيْهِمْ، یعنی دغه مرادونه به ورته پوره حاصل شي یعنی الله تعالیٰ د ده محنت د ده د نیت موافق نه ضائع کوي۔

١٣:- دا ویره اخروی ده هغه کسانو ته چه مخکښ آیت کښ ذکر شول۔

وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا، دیکښ اشاره ده هغے عملونو ته چه کوي ئے په نیت د دُنیا سره یعني نیک اعمال۔

وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ، دے کښ اشاره ده هغے عملونو ته چه هغه پخپله قبیح او ناکاره دي۔ او مفسرینو وئیلی دي چه دا آیتونه مشرکانو او منافقانو او ریاکارانو او دنیا پرستو ته شامل دي۔

وَمِنْ قَبْلِهٖ كِتٰبُ مُوْسٰىٓ اِمَامًا

او مخکښې دَ دہ نه کتاب دَ موسٰی دے پیشوا

وَّرَحْمَةً ۭ اُولٰۗىِٕكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ۭ

او رحمت دغه کسان ایمان لری په دے کتاب،

وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ مِنَ الْاَحْزَابِ

او چاچه کفر اوکړو په دے کتاب دَ مختلفو ډلو نه

فَالنَّارُ مَوْعِدُهٗ ۚ فَلَا تَكُ فِيْ

نو اُور ځائے دَ وعدے دَ هغه دے نو مه کیږه ته په

مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۤ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ

شک کښې دَ دہ نه یقیناً دا حق دے دَ طرف دَ رب ستا نه

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۷﴾

لیکن ډیر خلق ایمان نه لری۔

۱۷:۔ په دے آیت کښې دریمه دعوٰی دَ سورت ده چه هغه تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم او تابعدارانو دَ هغه ته۔ او هرکله چه ئے مخکښې حال دَ دنیا پرستو ذکر کړو نو اوس حال دَ دینداړو ذکر کوی په طریقه دَ تقابل سره۔ حاصل ئے دا دے چه اے پیغمبره او تابعدارو دَ هغه ستا سو خبره (یعنی مسئله دَ توحید) په عقلی دلیل سره ثابته ده او قرآن هم دَ هغې په تائید کښې دے چه هغه دلیل وحی دے او کتاب دَ موسٰی هم دَ هغې په تائید کښې دے چه هغه دلیل نقلی دے نو څوک چه دَ دے مسئلے نه انکار کوی نو هغه په ضد او په عناد کښې دے او هغه دَ پاره عذاب دے، دَ هغه دَ انکار دَ وجے نه په حق کښې شک مه کوئ۔ بَيِّنَةٍ، مراد دَ دینه بیان دَ توحید دے په دلیلو نو عقلیو سره۔ شَاهِدٌ، دَ دینه مراد قرآن کریم دے چه پوره ګواه دے په اثبات دَ توحید باندے ځکه چه هغه ګواه دے په مسئله دَ توحید باندے۔

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ

او څوک لوی ظالم دے د هغه چانه چه جوړوی په الله تعالیٰ باندے

كَذِبًا ط اُولٰٓئِكَ يُعْرَضُوْنَ عَلٰى رَبِّهِمْ

دروغ ، دغه کسان پیش به کړے شی رب خپل ته

وَيَقُوْلُ الْاَشْهَادُ هٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ

او او به وائی گواهی ورکوونکی چه دا هغه خلق دی

كَذَبُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ ۚ اَلَا لَعْنَةُ اللّٰهِ

چه دروغ ئے وئیلی وو په رب خپل ، خبردار لعنت د الله تعالیٰ دے

عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۸﴾ الَّذِيْنَ يَصُدُّوْنَ

په ظالمانو خلقو باندے. دا هغه کسان دی چه منع کوی خلق

اِمَامًا ، کتاب د الله تعالیٰ ته امام پدے وجه وئیلے کیږی چه د هغه اقتداء او تابعداری کول لازم دی .

اَفَمَنْ كَانَ آه ، د دے جزاء محذوف ده كَمَنْ يُرِيْدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا وَلَيْسَ لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا النَّار یا جزاء دا ده اَيَبْقٰى لَهٗ مَحَلُّ شُبْهَةٍ وَّشَكٍّ .

اُولٰٓئِكَ ، لفظ د جمع کښ اشاره ده چه مَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ نبی صلی الله علیه وسلم او ټول صحابه دی او ضمیر د بِهٖ قرآن ته راجع دے.

وَمَنْ يَّكْفُرْ ، دا په مقابله د يُؤْمِنُوْنَ کښ دے .

اَلْاَحْزَابِ ، ډلے د کافرانو چه مخالفت او عناد ئے کولو د انبیاء علیهم السلام سره .

مِنْهُ ، ضمیر راجع دے قرآن یا موعد ته .

س۱۸ ۔ دے آیت کښ ویره د عذاب اخروی ده مشرکینو ته او متعلق دے د لَا يُؤْمِنُوْنَ سره .

اِفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ، په نسبت کولو د شریک او ولد الله تعالیٰ ته او په انکار د رسول او قرآن سره .

عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا ۚ

دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه او لټوی په هغې کښې کږلېچ

وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۱۹﴾

او دوی دَ آخرت نه هم انکار کوونکی دی۔

يُعْرَضُوْنَ عَلٰى رَبِّهِمْ، عرض خو دَ ټولو خلقو دے لکه سورة کهف ۴۸ آیت کښې لیکن دلته مراد عرض دَ شرمنده کولو دَ پاره۔

الْاَشْهَادُ، دَ دغه اشهاد ذکر دی په سورة النساء ۴۱، سورة نحل ۸۹، سورة النور ۲۴، سورة یٰسٓ ۶۵، سورة حمٓ سجده ۲۰، سورة ق ۲۱ او سورة البقرة ۱۴۳ کښې۔ تو دا مختلف شهادات دی ځکه یې جمع ذکر کړل۔

وَيَقُوْلُ الْاَشْهَادُ، تو مراد دَ دینه ملائک او پیغمبران او مؤحدین دَ دے امت او اندامونه دَ بدن دی ځکه یې جمع ذکر کړیده۔

كَذَبُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ، یعنی شرک یې کوؤ او الله تعالیٰ ته یې نسبت کوؤ دَ جائز کولو دَ هغې۔

۱۹ دے آیت کښې درے صفات دَ ظالمانو ذکر دی۔ يَصُدُّوْنَ، اشاره ده چه دوی متعدی کافر دی۔

سَبِيْلِ اللّٰهِ، توحید او قرآن او سنت دے۔

وَيَبْغُوْنَهَا، ضمیر سبیل ته راجع دے ځکه چه هغه مذکر او مؤنث دواړه ذکر کیږی۔

عِوَجًا، مراد دَ دینه شکونه اچول دی په زړونو دَ خلقو کښې په باره دَ توحید کښې۔ او وَيَبْغُوْنَهَا، کښې اشاره ده چه سَبِيْلِ اللّٰهِ، کښې کوږ والے نشته لیکن ظالمان په ضد سره په هغې کښې کوږوالے جوړوی دَ دے دَ پاره چه نور خلق تری واړوی او دا ۱۹ په سورة اعراف ۴۵ او سورة آلعمران ۹۹ آیت کښې ذکر دی۔

أُولَٰئِكَ لَمْ يَكُونُوا مُعْجِزِينَ

دغه کسان نه دي دوی چه بچ شي د عذاب د الله تعالیٰ نه

فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُم مِّن دُونِ

په ټوله زمکه کښ او نه په وي دوی لره سوا د

اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ۘ يُضَاعَفُ لَهُمُ

الله تعالیٰ نه څوک دوستان زیاتیدے په شي د دوی د پاره

الْعَذَابُ ۚ مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ

عذاب ، ځکه چه نه لرلو دوی طاقت د حق اوریدلو

وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ ⑳ أُولَٰئِكَ

(یعنی په پرے لګیدلو) او نه دوی لیدلو حق لره - دا

الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَضَلَّ

هغه کسان دي چه تاوان کښ ئے اچولے دي خپل ځانونه او ورک په شي

ف۲:۔ دا ویره د عذاب اخروی ده منکرینو ته۔

مُعْجِزِينَ ، په معنیٰ لازمي سره دے یعنی بچ کیدونکی یا په معنیٰ متعدي سره دے عاجز کوونکی الله تعالیٰ لره د عذاب ورکولو ته۔

مِنْ أَوْلِيَاءَ ، د دوی نه مراد معبودان دي چه دوی شفعاء ګنړل چه په سورة یونس کښ د هغوی ذکر تیر شوے دے۔

يُضَاعَفُ ، مضاعفه د دے وجے نه وه چه ډیر قسمونه د کفر ئے کړی دي او شرک یکښ په ټولو اقسامو سره جمع دے یا دا چه پخپله ګمراه او دا نور ګمراه کوونکے دي۔

عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿٢١﴾ لَا جَرَمَ

ددوی نه هغه چه دوی ځه دروغ جوړول. خامخا

اَنَّهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ﴿٢٢﴾

یقینًا دوی به په آخرت کښې لوی تاوانیان وی

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

یقینًا هغه کسان چه ایمان ئې راوړی دے او عملونه کوی په طریقه دپیغمبر

وَاَخْبَتُوْٓا اِلٰى رَبِّهِمْ اُولٰٓئِكَ

او عاجزی کوی رب خپل ته دغه کسان

٢١، ٢٢ :- دا ذکر د سبب د عذاب دے او زور ته ده منکریتو ته او په دویم آیت کښې ویره اخروی ده.

خَسِرُوْا، خسران په سبب د شرک سره دے ځکه چه شرک سره نور اعمال خیر برباد شول،

وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ، مراد د مفتریاتو نه معبودان باطله دی. او ضَلَّ، په معنیٰ د غائب والی دے یا مفتریات نه مراد قصے د شرک دی او ضَلَّ په معنیٰ د نسیان سره دے.

لَا جَرَمَ، فراء وئیلی دی چه دا لفظ د لا بد او لا محالة سره دے او په معنیٰ د حقًا سره هم استعمالیږی او زجاج وئیلی دی چه لا د نفی د گمان د خلقو دے او جرم په معنیٰ د کسب سره دے نو معنیٰ دا شوه چه داسے نه ده لکه چه دوی گمان کوی بلکه کسب کړو د دوی عملونو خسران په آخرت کښې. او سیبویه وئیلی دی چه لا د پاره د نفی د گمان دے او جرم په معنیٰ د حق سره دے.

خطیب شربینی وئیلی دی چه د ١٨ آیت نه تر دے آیت پورے د لا یؤمنون د پاره ١٤ حالات او صفات ذکر کړے شول.

أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ ﴿٢٣﴾
جنت والا دی دوی په په هغې کښ همیشه وی۔
مَثَلُ الْفَرِيقَيْنِ كَالْأَعْمٰى وَالْأَصَمِّ
مثال دَدے دواړو ډلو پشان دَ ړوند او کوڼ دے
وَالْبَصِيرِ وَالسَّمِيعِ ۚ هَلْ يَسْتَوِيٰنِ
او دَ لیدونکی او دَ اوریدونکی دے آیا برابر دی دا دواړه
مَثَلًا ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٢٤﴾ وَلَقَدْ
په مثال کښ، آیا تو نصیحت نه اخلئ تاسو۔ او یقیناً
أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلٰى قَوْمِهِ ۤ إِنِّي لَكُمْ
لیږلے وو موږ نوح علیه السلام قوم دَ هغه ته (او وئیل) یقیناً زه ستاسو دَپاره

٢٣۔ نو پدے آیت کښ روستو دَ تخویف دَ منکرینو نه دا زیرے اخروی دے دَپاره دَ منونکو۔
وَاَخْبَتُوْا، دَدے یو معنیٰ انابت دے، دویمه معنیٰ اطاعت، دریمه معنیٰ خشوع او عاجزی، څلورمه معنیٰ اخلاص کول دی۔
وَاَخْبَتُوْا، دَدے په صله کښ چه الی راشی نو په معنیٰ دَ خشوع او عاجزیٔ سره دے نو پدے کښ اعمال قلبیه ته اشاره ده او وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ، کښ اعمال دَ جوارحو ته اشاره ده۔
٢٤۔ دا هم په زیری کښ داخل دے، او پدے آیت کښ اعمی او اصم مثال دَ مشرک دے او بصیر او سمیع مثال دَ مؤحد دے او وارد دے په هغه چا باندے چه دَ کافر او مؤمن فرق نه کوی۔ او دے عقیدے ته پدے زمانه کښ سیکولرازم وئیلے شی۔

نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۲۵﴾ اَنْ لَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ؕ

یره ورکوونکے یم ښکاره - (بیان کوم) چه مه کوئ بندګی د هیچا سوا د الله تعالیٰ نه،

اِنِّیْٓ اَخَافُ عَلَیْکُمْ عَذَابَ یَوْمٍ اَلِیْمٍ ﴿۲۶﴾

یقینًا زهٔ بریږم په تاسو د عذاب د ورځے دردناکے نه۔

۲۵۔خلاصه:- د دے آیت نه دویم باب دے تر ۱۱۱ آیت پورے پدے کښ اول درے واقعات او ښیرمه واقعه تعلق لری د رد د شرک فی العبادة سره او څلورمه پنځمه واقعه تعلق لری د رد شرک فی العلم او فی التصرف سره او اومه واقعه د موسیٰ علیه السلام تعلق لری د دویمے دعوے سره او په مینځ کښ ئے تخویف او بشارت ذکر دے او آیت ۱۰۳ تعلق لری د دریمے دعوے سره۔

ربط:- ربط د دے د مخکښ آیت سره دا دے چه د فریقینو په مثال سره ذکر او شو نو اوس په قصو د انبیاء علیهم السلام سره د فریقینو د عاقبت فرق ذکر کوی۔

تفسیر:- دا آیت اول دلیل نقلی دے د نوح علیه السلام نه د پاره د اثبات د مسئلے د توحید او پدیکښ ذکر د شجاعت د هغه دے او ذکر دے د طریقے د دعوت او دا رنګ ذکر د عذاب د قوم د هغه دے د پاره د تخویف دنیوی۔

په اَرْسَلْنَا کښ معنیٰ د قال پټه ده - او اِنِّیْ د هغے مقوله ده مُّبِیْنٌ کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ په حق بیا نولو کښ د دیل چا لحاظ نه کوی او هیڅ حق نه پټوی۔

۲۶:- اَنْ لَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ، دا بدل دے د انی نه یا مفعول دے د مبین د پاره او دا دعوت د توحید دے - اَلِیْمٍ ، صفت د یَوْمٍ دے ، مطلب دا دے چه د عذاب ورځ دردناکه وی که عذاب دنیوی مراد شی او که عذاب اخروی ، او یا صفت د عذاب دے یعنی عذاب دردناک لیکن زیر په الیم باندے د وجے د نزدیکت د یوم نه دے او دیته جر للجوار وائی۔

اِنِّیْٓ اَخَافُ ، دا د خوف په وجه د نه منلو د توحید سره دے۔

فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ

نو اوئيل غټانو هغه کسان چه کفر ئې کړے وو د

قَوْمِهِ مَا نَرَاكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا

قوم د هغه نه ګورو مونږ تا مګر بنده زمونږ پشان

وَمَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ

او نه وینو مونږ تا چه تابعداري کوي ستا مګر هغه کسان چه هغوي

أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ وَمَا نَرَىٰ لَكُمْ

ذلیل دي په مونږ کښ په بے فکرۍ سرې او نه وینو مونږ تاسو لره

عَلَيْنَا مِن فَضْلٍ بَلْ نَظُنُّكُمْ كَاذِبِينَ ﴿٢٧﴾

په مونږ باندے هیڅ غوره والے بلکه ګمان کوو مونږ په تاسو باندې دروغژن.

ـ۲۷ :- الْمَلَأُ ء اشرافو ته وئیلے شي که شرافت دنیوی او که اخروي وي دلته شرافت دنیوی د مال او جاه مراد وو.

سوال:- سورة اعراف ستا کښ ئې الذین کفروا نه وو وئیلے ؟

جواب:- اشاره ده چه په سورة اعراف کښ هغه ټول قوم کافر وو او دلته د تکبر په طریقه سره اعتراضونه دي او هغه کار د مالدارو دے ځکه ئې دلته ملاء ذکر کړل نو غټانو د قوم د نوح علیه السلام د طرف نه څلور اعتراضونه ذکر دي. اول دا چه ته بشر ئې زمونږ پشان او دویم ستا تابعدار ذلیل خلق دي ځکه چه هغوي فقیران وو. او په حدیث د هرقل کښ راغلي دي چه تابعدار د پیغمبرانو اکثر غریبان خلق وي. دریم دا چه ستاسو په مونږ څه غوره والے نشته یعني په تاکښ صفت د پیغمبرۍ نشته او څلورم دا چه ته دروغژن ئې. اوّل دوه اعتراضونه صرف په نوح علیه السلام باندے وو ځکه ئې مخاطب مفرد ذکر کړو او روستو دوه اعتراضونه په نوح علیه السلام سره د مؤمنانو وو نو صیغه د جمع ئې ذکر کړے ده.

قَالَ يٰقَوۡمِ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ كُنۡتُ عَلٰى

اُوئیل هغه نوح ای قومه زما آیا فکر کړیدے تاسو که یم زهٔ په

بَيِّنَةٍ مِّنۡ رَّبِّىۡ وَاٰتٰٮنِىۡ رَحۡمَةً مِّنۡ

ښکاره دلیل دَ طرف دَ رب خپل نه او راکړے یې دے ماته خاص رحمت (پیغمبري) دَ

عِنۡدِهٖ فَعُمِّيَتۡ عَلَيۡكُمۡؕ اَنُلۡزِمُكُمُوۡهَا

طرف خپل نه نو داپټ پاتے شوے وي په تاسو باندے، آیا په زور مناوولے شو مونږ دا په

وَاَنۡتُمۡ لَهَا كٰرِهُوۡنَ ۝٢٨ وَيٰقَوۡمِ

او حال دا چه تاسو دې لره یئ کنړئ. او اے قومه زما

لَاۤ اَسۡـئَلُكُمۡ عَلَيۡهِ مَالًاؕ اِنۡ اَجۡرِىَ

نه غوارم ستاسو نه په دے بیان کولو هیڅ مال نه. ده نه یئ له زما

اِلَّا عَلَى اللّٰهِ وَمَاۤ اَنَا بِطَارِدِ الَّذِيۡنَ

مګر دَ الله تعالی سره ده او نه یم زهٔ شړونکے دَ هغه کسانو

بَادِيَ الرَّاۡيِ، یعنی دوی په تا باندے ایمان راوړے دے په اول نظر کښ اوسوچ او فکر یې نه دے کړے که فکر یې کړے وے نو ستا تابعداري به یې نه وے کړے،

اَرَاذِلُنَا، یې دَ وجه دَ فقیرئ نه اُوئیل دَ وجه دَ نسبت نه نه وو ځکه چه مؤمنان دَ نوح علیه السلام هغه خو دَ هغه ځامن وو او دَ هغوی بیبیانے وے او دَ هغوی نسب اوچت وو ځکه چه الله تعالی انبیاء په لوے نسب کښ رالیږي لکه چه په حدیث دَ هرقل کښ دي.

۲۸: بَيِّنَةٍ، نه مراد ښکاره دلیلونه دَ توحید دي او رَحۡمَةً، نه مراد پیغمبري ده، مطلب دا دے چه ما سره ښکاره دلیلونه دي او نبوت دے زهٔ دروغژن نه یم لیکن زهٔ دا په تاسو باندے په زور نه شم مناوولی نو دا جواب دے دَ هغوی دَ ټولو اعتراضونو. فَعُمِّيَتۡ، او اَنُلۡزِمُكُمُوۡهَا، ضمیرونه یې مفرد مؤنث ذکر کړل دَ دے وجه نه چه مقصد

آمَنُوا ۚ إِنَّهُم مُّلَاقُو رَبِّهِمْ وَلَٰكِنِّي

چه ایمان يې راوړي دي ، يقيناً دوی به مخامخ کيږي د رب خپل سره او ليکن زه

أَرَاكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ۝٢٩ وَيَا قَوْمِ

وينم تاسو لره داسې قوم چه تاپوهي کوئ - او اې قومه زما

مَن يَنصُرُنِي مِنَ اللَّهِ إِن طَرَدتُّهُمْ ۚ

څوک به بچ کړي ما د عذاب د الله تعالیٰ نه که زه اوشړم دوی لره ،

د بَيِّنَةٍ او رَحْمَةً يو دے يا په تاويل د هر يو سره دی .

٢٩ :- په دے آيت کښ ذکر د اخلاص د نوح عليه السلام دے او په يکښ ترغيب دے قوم ته او هر کله چه د دنيا اجر تو نه اکثر مالونه وی د دے وجے نه .

مَالًا ، يې ذکر کړو او د الله تعالیٰ بدله په ډير قسمه ده د دے وجے نه .

أَجْرِيَ ، سره يې ذکر کړه ، او بيا جواب د قول د هغوی دے چه هغوی وئيل چه دا غريبان مؤمنان د خپل مجلس نه اوشړه نو موږ به ستا تابعداری اوکړو نو جواب اوشو چه زه د دوی د شړلو حق نه لرم ځکه چه دوی الله تعالیٰ ته مخامخ کيدونکی دی نو هسے نه چه الله تعالیٰ ته زما شکايت پيش کړي .

تَجْهَلُونَ ، اشاره ده چه مؤمنان سپک ګنړل د جهل کار دے .

أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٣٠﴾ وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ

آیا نو نصیحت نه اخلئ تاسو۔ او نه وایم زهٔ تاسو ته

عِندِي خَزَآئِنُ ٱللَّهِ وَلَآ أَعْلَمُ

چه زما سره اختیار دَ خزانو دَ الله تعالیٰ دے او نه پوهیږم زهٔ

ٱلْغَيْبَ وَلَآ أَقُولُ إِنِّي مَلَكٌ وَلَآ

په غیب باندے او نه وایم زهٔ چه زهٔ ملک (فرښته) یم او نه

أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزْدَرِيٓ أَعْيُنُكُمْ

وایم په باره دَ هغے کسانو کښ چه سپک یې ګنړی سترګے ستاسو

لَن يُؤْتِيَهُمُ ٱللَّهُ خَيْرًا ۖ ٱللَّهُ أَعْلَمُ

چه هیچرے په ورته کړی الله تعالیٰ دوی ته څه خیر، الله تعالیٰ ښهٔ پوهیږی

بِمَا فِيٓ أَنفُسِهِمْ ۖ إِنِّيٓ إِذًا لَّمِنَ

په هغه څه چه په زړونو دَ دوی کښ دی، یقیناً زهٔ به په دغه وخت کښ خامخا

ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٣١﴾ قَالُوا۟ يَٰنُوحُ قَدْ جَٰدَلْتَنَا

دَ ظالمانو نه یم۔ اُوئیل دوی اے نوح جګړه اوکړه تا زمونږ سره

ف۳۰:۔ دا دویم جواب دے دَ هغوی دَ قول یعنی که زهٔ دوی اوشړم نو ما به دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه څوک بچ کړی۔

أَفَلَا تَذَكَّرُونَ، اشاره ده قدرتِ عظیمه دَ الله تعالیٰ ته چه دَ هغے په هیڅ طریقے سره مقابله نشی کیدے۔

ف۳۱:۔ په دے آیت کښ جوابونه دی دَ څلورو اعتراضونو دَ منکرینو چه تفصیل دَ هغے په سورۃ انعام ف۵۰ آیت کښ تیر شوے دے۔ معلومه شوه چه دَ ټولو نه اول رسول (نوح علیه السلام) باندے کوم اعتراضونه کړے شوی دی نو دغه په آخری رسول (محمد صلی الله علیه وسلم) باندے هم شوی دی نو دا صفات سلبیه دَ ټولو پیغمبرانو دی۔

فَأَكْثَرْتَ جِدَالَنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا

نو زیات دِ کړه جګړه زمونږ نو راوړه مونږته هغه شے چه یرویے ته مونږ

إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٣٢﴾ قَالَ إِنَّمَا

په هغې که یې ته د رښتینو نه - اوویل نوح علیه السلام یقینًا

يَأْتِيكُمْ بِهِ اللَّهُ إِنْ شَاءَ وَمَا أَنْتُمْ

راولی به تاسو ته دا عذاب الله تعالیٰ که چرے اوغواړی او نه یئ تاسو

بِمُعْجِزِينَ ﴿٣٣﴾ وَلَا يَنْفَعُكُمْ نُصْحِي

بیچ کیدونکی د هغه نه - او نه درکوی فائده تاسو ته نصیحت زما

بِمَا فِي أَنْفُسِهِمْ، اشاره ده چه دوی په هغه مؤمنانو باندے د منافقت گمان کوؤ لکه چه بَادِيَ الرَّأْيِ، کښ دیته اشاره ده ۔

خَيْرًا، مراد د دیته جنت او ثواب دے۔

لَمِنَ الظَّالِمِينَ، دا رنګ ذکر په سورة انعام ۵۲ آیت کښ تیر شویدے۔

۳۲ :- دا طعن دے د منکرینو د طرف نه په نوح علیه السلام باندے چه د هغه د نصیحت خبرو کولو ته دوی جګړه اوویل یعنی ته جګړه مارئے لکه اوس چه په حق پرستو دا طعن لګولے کیږی چه دوی شریان او جګړه ماردی یا مراد د جدال نه اثبات د توحید او رسالت دے په دلیلونو سره او جوابونه د شبهاتو دی او شربینی په سراج المنیر کښ وئیلی دی چه دا طریقه د انبیاء علیهم السلام ده او تقلید او جهل کسب د کافرانو دے - او مَا تَعِدُنَا، ذکر د هغه وعدے په ۲۵ آیت کښ تیر شوے دے۔

۳۳ :- دا جواب د قول د هغوی دے چه مخکښ آیت کښ تیر شو۔

فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا، حاصل د جواب دا دے چه عذاب راوستل په اختیار د الله تعالیٰ کښ دی۔

إِنْ أَرَدْتُّ أَنْ أَنْصَحَ لَكُمْ إِنْ كَانَ

كه زهٔ اوغواړم چه نصیحت کوم تاسو ته خو که

اللّٰهُ يُرِيْدُ أَنْ يُّغْوِيَكُمْ ط هُوَ

الله تعالیٰ غواړی چه بے لارے کړی تاسو ، هغه الله تعالیٰ

رَبُّكُمْ قف وَإِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٣٤﴾ أَمْ

ستاسو رب دے او خاص هغه ته به او گرځولے شئ تاسو . آیا

يَقُوْلُوْنَ افْتَرٰهُ ط قُلْ إِنِ افْتَرَيْتُهٗ

دوی وائی چه دَ ځان نه ئے جوړه کړیا دا خبره، ته او وایه که ما دَ ځان نه جوړه کړی وی

فَعَلَيَّ إِجْرَامِيْ وَأَنَا بَرِيْٓءٌ

نو زما په ذمه دے جرم کول زما او زهٔ خلاص (جدا) یم

مِّمَّا تُجْرِمُوْنَ ﴿٣٥﴾ ع وَأُوْحِيَ إِلٰى نُوْحٍ

دَ هغے جرمونو نه چه تاسو ئے کوئ . او وحی اوکړے شوه نوح ته

٣٤ :. مطلب دَ دے آیت دا دے لکه څنګه چه عذاب دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دے نو دا رنګے ګمراه کول او هدایت هم دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دے او هغه سبب دَ عذاب دے دَ آیت نه معلومه شوه چه انسان بو کارکوی لیکن نفع دَ هغے په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ وی، دا رنګ هیڅ انسان دَ الله تعالیٰ دَ اراده خلاف کار نشی کولے او جزاء دَ شرط محذوف ده اصل عبارت دا دے . إِنْ كَانَ اللّٰهُ يُرِيْدُ أَنْ يُّغْوِيَكُمْ فَإِنْ أَرَدْتُّ أَنْ أَنْصَحَ لَكُمْ فَلَا يَنْفَعُكُمْ نُصْحِيْ .

٣٥ :. دے آیت کښ دوه توجیه دی. اول توجیه دا ده چه دا هم مکالمه دَ نوح علیه السلام ده دَ قوم خپل سره په صیغه دَ غائب سره.
دویمه توجیه دا ده چه دا مکالمه زمونږ دَ نبی علیه السلام ده دَ خپل قوم سره نو دا په طریقه دَ جمله معترضه سره ده.
إِجْرَامِيْ ، کسب کول دَ ګناه بنکاره ته اجرام وئیلے شی او مضاف حذف دے

آنَّهٗ لَنْ يُّؤْمِنَ مِنْ قَوْمِكَ اِلَّا

چه يقيناً هېڅوک به ايمان نه راوړي د قوم ستا نه مګر

مَنْ قَدْ اٰمَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا

هغه څوک چه ايمان يې راوړی دے نو مه خفه کېږه په هغه کارونو

كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَاصْنَعِ الْفُلْكَ

چه دوی يې کوی. او جوړوه کشتۍ

بِاَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا وَلَا تُخَاطِبْنِيْ

په سترګو زمونږ او په وحی زمونږ او مه کوه سفارش ما ته

فِي الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ ﴿۳۷﴾

په باره د هغې کسانو کښې چه ظلم يې کړی دے، يقيناً دوی به غرقولے شی.

يعنی اِثْمُ اِجْرَامِيْ. ګناه د جرم زما۔ او په دې کښې دويم تقدير د عبارت دا دے يعنی اَنْتُمْ بَرِيْئُوْنَ عَنْ اِجْرَامِيْ.

۳۶۔ د تفصيل د دعوت د نوح عليه السلام نه روستو تفصيل د عذاب ذکر کوی او دا آيت دليل دے په دے خبره چه نوح عليه السلام خپل قوم ته چه خېرے کړے وے نو روستو د دے وحی نه يې کړے وے چه په دے وحی سره هغه د ايمان د خپل قوم نه نااميده شو۔

لَنْ يُّؤْمِنَ ، دا اخبار د الله تعالیٰ رښتينی دے په شان د سورة بقرة ۶ آيت۔

۳۷۔ د دے نه مخکښې دا مراد دے چه د دوی مخالفت ډير سخت شو نو نوح عليه السلام هغه دعا اوکړه کوم چه سورة نوح کښې ذکر ده او هغه دعا قبوله شوه نو ورته اوئيلے شو۔

وَاصْنَعِ الْفُلْكَ ، په دے آيت کښې تدبير خودل دی نوح عليه السلام ته د پاره د نجات۔

بِاَعْيُنِنَا ، دا لفظ د متشابهاتو نه دے يعنی معنیٰ يې ښکاره سترګے دی او کيفيت د هغې منشابه دے او تشبيه د مخلوق سره نشته او تاويل

وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ قف وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ

او هغه جوړوله کشتۍ او هر کله چه ورتیریدله به په هغه باندے

مَلَأٌ مِّنْ قَوْمِهِ سَخِرُوا مِنْهُ ط

ډَلے تو دله د قوم د هغه نه نو ټوقے به یې کولے په هغه پورے،

قَالَ إِن تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ

نو هغه به وئیل که تاسو ټوقے کوئ په مونږ پورے نو مونږ به هم ټوقے اوکړو

مِنكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ ط (۳۸) فَسَوْفَ

په تاسو پورے لکه چه تاسو په مونږ پورے ټوقے کوئ۔ نو زر ده

تَعْلَمُونَ لا مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ

چه پوهه به شئ تاسو چه په چا باندے به راځي عذاب چه شرمنده به یې کړي

ئې په حفاظت سره خلاف د مسلک د سلفو صالحینو نه دے۔

او وَحْيِنَا، په معنیٰ د امر او طریقه د جوړولو د کشتۍ دے

وَلَا تُخَاطِبْنِي، مراد د دینه منع کول دی د سفارش نه په باره د مشرکینو کښ۔

مُغْرَقُونَ، یعنی حکم کړے شوے دے په اغراق د هغوی باندے۔

۳۸:۔ وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ، په دے لفظ کښ کان د استمرار او د همیشوالی د معنیٰ د پاره پټ دے یعنی کَانَ يَصْنَعُ۔ آیت کښ اشاره ده چه بے عقله خلق انبیاء علیهم السلام او حق پرستو پورے مسخرے کوی او د هغوی د کار په رازونو نه پوهیږی او دوی دا سے مسخرے کولے چه او به او دریاب نشته او نوح علیه السلام کشتۍ جوړوی نو داخو د لیونو کار دے۔ او اشاره ده چه په مشرکانو پورے په وخت د عذاب او هلاکت د هغوی کښ مسخرے کول پکار دی۔ او دا رنګ په آخر د سورة تطفیف ۲۲ کښ ذکر دے۔

وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٣٩﴾
او رابه شي په هغه باندے عذاب همیشه -
حَتّٰىٓ إِذَا جَآءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ
تر دے پورے چه کله راغے حکم زموږ (په عذاب سره) او را او خوټکیدلو تنور
قُلْنَا احْمِلْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ
اُوئیل موږ سواره کړه په کشتۍ کښ د هر څیز نه جوړے (یعنی دوه څیز ونه)
اثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ
او کورنۍ خپله غیر د هغه چا نه چه مخکښ شویدے په هغه باندے
الْقَوْلُ وَمَنْ اٰمَنَ ؕ وَمَآ اٰمَنَ مَعَهٗٓ
فیصله د عذاب او هغه څوک چه ایمان ئے راوړے دے، او ایمان نه وو راوړے په هغه باندے
إِلَّا قَلِيْلٌ ﴿٤٠﴾ وَقَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا
مګر لږو کسان - او فرمائیل الله تعالٰی سواره شئ په کشتۍ کښ

۳۹ :- اول عذاب نه مراد دنیوی عذاب دے او دویم نه عذاب اخروی مراد دے، یا دا دواړه صفتونه د عذاب دنیوی دی۔
مَنْ يَّاْتِيْهِ ، او اتیان نه مراد شروع کیدل دی او د وَيَحِلُّ نه مراد پوره احاطه کول دی۔
۴۰ :- حَتّٰى ، ابتدائیه دے - التَّنُّوْرُ ، د دے نه مراد عام تنور دے یا خاص تنور د کور د نوح علیه السلام دے یا مراد د دے نه مخ د زمکے دے یعنی چه په تنور یا په مخ د زمکه باندے اوبه راووتې او جوش اُوهې او بعضے علماء وائی چه دا کنایه ده غضب الٰهی نه۔ لیکن دا قول ضعیف دے۔
إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ ، دیکښ اشاره ده یو ځوی د نوح علیه السلام او ښځے د هغه ته او سبقیت نه مراد سبقیت په تقدیر کښ دے یا په ۳۷ آیت کښ دے۔

بِسۡمِ اللّٰهِ مَجۡرٖىهَا وَمُرۡسٰىهَا ؕ

په امداد دَ نوم دَ الله تعالىٰ روانيدل دَ هغې او اودريدل دَ هغې دى ،

اِنَّ رَبِّىۡ لَغَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۴۱﴾ وَهِىَ

يقيناً رب زما بخښه کوونکے رحم کوونکے دے. او دا کشتۍ

تَجۡرِىۡ بِهِمۡ فِىۡ مَوۡجٍ كَالۡجِبَالِ قف

روانه وه په دوى باندے په اسے چپو کښ چه دَ غرونو پشان وے

وَنَادٰى نُوۡحُ اۨبۡنَهٗ وَكَانَ فِىۡ

او آواز اوکړو نوح عليه السلام خپل ځوئ ته او هغه وُو دَ کشتۍ نه په

مَعۡزِلٍ يّٰبُنَىَّ ارۡكَبۡ مَّعَنَا وَلَا

يو ډډه چه اے ځويه سور شه زمونږ سره او مه

زَوۡجَيۡنِ ، هغه دوه څيزونه چه يو بل ته محتاج وى او جوړه وى هغوى ته زوجان وئيلے کيږى.

اِلَّا قَلِيۡلٌ ، په يکښ ډير اقوال دى ادنىٰ دَ هغې شپږ کسان دى بغير دَ نوح عليه السلام نه درے ځامن او درے انګورانے دَ هغه او اعلىٰ عدد اتيا کسان دى.

سلګ :- دا امر دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه نوح عليه السلام ته دے يا نوح عليه السلام دَ طرف نه قوم ته دے او په دے آيت کښ ذکر دَ سوريدو دَ وخت دے او دَ هغې ادب شرعى ذکر کوى.

بِسۡمِ اللّٰهِ ، متعلق دے په اِرۡكَبُوۡا پورے يا په اِسۡتَعِيۡنُوۡا مقدر پورے يا په مَجۡرٖىهَا ، پورے.

تَكُنْ مَّعَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۴۲﴾ قَالَ سَاٰوِيْٓ

کیږه دَ کافرانو ملگرے۔ اُووئیل هغه پناهي به اونیسم

اِلٰى جَبَلٍ يَّعْصِمُنِيْ مِنَ الْمَآءِ ؕ قَالَ

غرته چه بچ به کړي ما لره دَ دے اوبو نه، اووئیل نوح

لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ اِلَّا

نشته بېچ کوونکے نن دَ عذاب دَ الله تعالی نه مگر

مَنْ رَّحِمَ ۚ وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ

هغه ذات چه رحم کوي (یعني الله تعالی) او راغله دَ دوی په مینځ کښ چپه

فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِيْنَ ﴿۴۳﴾ وَقِيْلَ يٰٓاَرْضُ

نو شو دے دَ غرق شوؤ نه۔ او اُوئیلے شو اے زمکے

س۴۲:- وَهِيَ تَجْرِيْ عَدَدِيْنه ځکښ تقدیر دَ عبارت دا دے چه دوی سوارهٔ شول په کشتئ کښ په بِسْمِ اللّٰه سره نو کیشتئ روانه شوه۔

وَنَادٰى نُوْحُ ُ ابْنَهٗ، په دې کښ اوله توجیه دا ده چه نوح علیه السلام ته دَ ځوئے په کفر باندے علم نه وؤ هغه ورسره منافقت کوؤنکه دا آوازئے ورکړو۔ او فِيْ مَعْزِلٍ، نه مراد دا دے چه دَکیشتئ نه په ډډه وؤ۔

دویمه توجیه دا ده چه عالم وؤ دَ هغه په کفر باندے لیکن دعوت ئے ورکړو دَ بېچ کیدلو دَ کفر نه۔ او ارْكَبْ، معنیٰ دا ده چه ایمان راوړه تو سورشه کیشتئ کښ لکه چه اوئیلے شي مونځ اوکړه یعني پس دَ اودس کولو نه مونځ اوکړه۔ او معزل نه مراد دا دے چه دَ هغه دَ دین نه په ډډه وؤ۔ اوله توجیه غوره ده۔

س۴۳:- لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ، الآية، په دې کښ درے توجیهات دي۔

اوله توجیه دا ده چه دَ مَنْ رَّحِمَ، نه مراد رحیم دے او هغه الله تعالی دے۔

ابْلَعِيْ مَآءَكِ وَيٰسَمَآءُ اَقْلِعِيْ

(واپس) تیرے کړه اوبه او اے آسمانه بند ے کړه اوبه

وَغِيْضَ الْمَآءُ وَقُضِيَ الْاَمْرُ وَ

او کمے شوے اوبه او فیصله وکړے شوه دَ معاملے دَدوی او

اسْتَوَتْ عَلَى الْجُوْدِيِّ وَقِيْلَ

برابر او دریدله کشتئ په جودی غر باندے او اوئیلے شو

بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤٤﴾ وَنَادٰى

تباهی ده قوم ظالمانو لره - او په عاجزئ آواز اوکړو

نُوْحٌ رَّبَّهٗ فَقَالَ رَبِّ اِنَّ ابْنِيْ

نوح علیه السلام خپل رب ته اوئیل ئے اے ربه زما یقینًا ځوے زما

مِنْ اَهْلِيْ وَاِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ

دَ کورنئ زما نه دے او یقینًا ستا وعده حقه ده

دویمه دا چه عاصم په معنیٰ دَ معصوم دے لکه دافق په معنیٰ دَ مدفوق۔
دریمه توجیه دا ده چه دَ الا استثناء منقطع ده په معنیٰ دَ لکن او دا
قول چه سَاٰوِیْ اِلٰی جَبَلٍ، کلمه دَ کفر نه ده بلکه دا ذکر دَ سبب ظاهری
دے دَ دے وجے نه دَ نوح علیه السلام دَ هغه په کفر باندے
یقین رانغے۔

۴۴:- وَغِيْضَ الْمَآءُ، کمے شوے پدے وجے سره چه اوبه دَ زمکے
اوچے شوے صرف دَ آسمان اوبه پاتے شوے هغه هم زمکے راخکلے۔
الْجُوْدِيِّ، دا یو غر دے په کوهستان ارارط کښ دَ موصل ښار
سره نیژدے او دا په ورځ دَ عاشوراء نجات حاصل شو۔
وَقِيْلَ، دا آواز دَ هر طرف نه اوشو او دَ ملائکو دَ جانب نه په عموم
سره اوشو ځکه قیل اُوئیلے شو دَ عموم دَ پاره۔

وَاَنْتَ اَحْكَمُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿۴۵﴾ قَالَ

او ته ښه فیصله کوونکے یې د ټولو فیصله کوونکو نه ۔ (وفرمائیل الله تعالی)

يٰنُوْحُ اِنَّهٗ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ ۚ اِنَّهٗ

اے نوح علیه السلام یقینًا دے نه دے د کورنۍ ستا نه یقینًا دا ده

عَمَلٌ غَيْرُ صٰلِحٍ ۖ فَلَا تَسْـَٔلْنِ

عمل (کار) نه دے نیک نو دعا مه غواړه زما د هغه باره کښ

مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ۖ اِنِّيْٓ اَعِظُكَ

چه نشته تا لره د هغه (د ایمان) په باره کښ یقین (علم) زه نصیحت کوم (منع کوم) تا لره

اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۴۶﴾

چه نشے ته د ناپوهانو د ډلے نه ۔

۷۱۔ وَنَادٰى نُوْحٌ رَّبَّهٗ ، نداء، په معنیٰ د دُعا د عاجزۍ دے لکه په سورة مریم ۳ آیت کښ ۔

اِنَّ ابْنِيْ مِنْ اَهْلِيْ ، اشاره ده چه تا ما سره وعده کړے ده د نجات د اهل په ۴۰ آیت کښ وَاَنْتَ اَحْكَمُ الْحٰكِمِيْنَ ، اشاره ده چه پدیکښ په الله تعالیٰ باندے اعتراض کول نشته صحیح دا ده چه نوح علیه السلام د خوئے په کفر باندے یقین نه لرلو گمان ئے دا وو چه دے مؤمن دے په طریقه د منافقت عملی سره او د هغه د بعض عملونو توجیه یې احسن تاویل سره کوله په خپل اجتهاد سره ځکه دا دعا ئے اوکړله ۔

۷۲۔ دے آیت کښ دلیل دے چه صرف نسب فائده نه ورکوی هر کله چه عقیده او عمل مخالف وی د شرعے نه ۔

اِنَّهٗ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ ، د ابن عباس او مجاهد وغیره نه روایت دے چه هغه خوئے ئے حقیقی وو د نوح علیه السلام په دلیل د دے قول سره چه یا بنی او ان ابنی او د مجاز هیڅ وجه نشته او مراد د اَهْلِكَ ، نه هغه اهل دے چه وعده د نجات ئے شویده یا مراد

قَالَ رَبِّ إِنِّيْٓ أَعُوْذُبِكَ أَنْ أَسْئَلَكَ

اُوئیل دہ اے ربه زما یقیناً زۀ پناه غواړم په تا سره چه دُعا وغواړم ستا نه

مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ ط وَإِلَّا تَغْفِرْ

دهغه چا په باره کښې چه نشته ما لره دهغه (په ایمان باندې هیڅ یقین) او که اونکړے ته بخنه

لِيْ وَتَرْحَمْنِيْٓ أَكُنْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿٤٧﴾

ما ته او رحم اونکړے په ما باندے نو زۀ به شم د تاوان کوونکو نه ۔

دا چه نسبت د ده تا ته لائق نه دے ځکه چه إِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ، او چا چه د مجاهد او حسن نه نقل کړیدی چه دے ولد الزناء وو نو پدے قول کښی د انبیاء علیهم السلام توهین دے او دا دے قول صحیح سند هم نشته او پدے باندے ابن کثیر او امام رازی او سراج المنیر سخت رد کړے دے او پدے آیت کښی بیان د آدب د سوال او دعا دے د پاره د دے چه د جاهلانو د طریقے نه بچاؤ راشی۔

إِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ، مضاف حذف دے یعنی ذو عمل غیر صالح او انه ضمیر دعا د نوح علیه السلام ته راجع کول غلط قول دے۔

فَلَا تَسْئَلْنِ، دا آدب د دُعا دے په راتلونکی وخت کښی۔

مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ، مراد دا دے چه د چا په ایمان کښی چه ستا شک وی نو د هغوی د نجات په باره کښی سوال مه کوه۔

إِنِّيْٓ أَعِظُكَ، دلته وعظ نه مراد بیج کول دی په راتلونکے زمانه کښی زور نه ورکول مراد نه ده۔ بعضے اهل تفسیر (لکه کشاف او تفهیم القرآن) چه د دے آیت په تشریح کښی لیکلی دی چه نوح علیه السلام د جهل کار کړے وؤ نو دا قول د نبی بے ادبی او گستاخی ده الله تعالیٰ دے موتږ د داسے عمل نه بچ اوساتی۔

مسئله:- پدے آیت کښی پدے قول کښی وَإِلَّا تَغْفِرْ لِيْ وَتَرْحَمْنِيْٓ، عبدیت او عجز د پیغمبر دے دا دلیل د هغه په گناه کولو کښی نشی کیدے او دا دعا په شان د دعا د آدم علیه السلام ده چه صرف

قِيْلَ يٰنُوْحُ اهْبِطْ بِسَلٰمٍ مِّنَّا

(ډیلې شو اے نوحه کوز شه سره دَ سلامتیا نه زموږ د طرفه راتا باندې)

وَبَرَكٰتٍ عَلَيْكَ وَعَلٰٓى اُمَمٍ

او برکتونه زموږ دَطرفه په تا باندے او په بعضے امتونو باندے

مِّمَّنْ مَّعَكَ ؕ وَاُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ

چه پیدا کیږي به دَ هغه چا نه چه ستا سره دي، او نور ډیر امتونه به وي چه مزے دَ دنیا به

ثُمَّ يَمَسُّهُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۴۸﴾

بیا به پیوست شي په دوي پورے زموږ دَطرفه عذاب دردناک .

عبدیت دے په گناه باندے دلیل نه دے او دا سے خطیب شربیني لیکلي دي۔

۴۸:۔ پدے آیت کښ اول بشارت دے نوح علیه السلام ته په سلامتیا او برکاتو سره. سلامتیا دَ عذاب او مصیبتونو نه او برکات دنیویه نباتات او وسعت دَ رزق ته اشاره ده او برکات اخرویه نشر او اشاعت دَ دین ته اشاره ده۔

دویم بشارت دا دے چه دَ هغه په اولاد کښ به هم نیکان خلق پیدا کیږي۔

دریم بشارت دا دے اشاره ده چه دنیا کښ به دَ نوح علیه السلام اولاد او نسل وي۔

څلورم دلیل دے چه پیغمبر په سلامتیا او برکاتو کښ الله تعالی ته محتاج دے۔

پنځم اشاره ده دوه فریقو دَ انسانانو ته، او سلام او برکات ټولو مؤمنانو ته شامل دے او متاع او عذاب ټولو کافرانو ته شامل دے۔

تِلْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهَآ
داچه (بيان شول) بعضې دَ خبرو نو دَ غيب نه دي چه وحي كوؤ مونږ دَ هغې
اِلَيْكَ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَآ اَنْتَ وَ لَا
تا ته نه وې پوهه په هغې باندې ته او نه
قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هٰذَا ۛ فَاصْبِرْ ۛ
قوم ستا (مخكښې) دَ دې نه ، نو صبر كوه
اِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٩﴾ وَاِلٰى عَادٍ
يقينًا ښه انجام دَ پاره دَ متقيانو دې ـ (او لېږلې وؤ مونږ) عاديانو ته
اَخَاهُمْ هُوْدًا ۭ قَالَ يٰقَوْمِ
ورور دَ هغوي هود عليه السلام ، اُوئيل ده اې زما قومه
اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ
بندګي كوئ خاص دَ الله تعالىٰ نشته تاسو لره هيڅ حاجت پوره كوؤنكي

۴۹ :- په دې آيت كښې دليل دَ صدق دَ محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم دې او تسلي ده هغه ته ـ
تِلْكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ ، هغه خبرونه چه غائب وؤ دَ علم دَ نبي صلى الله عليه وسلم او دَ مخاطبينو مشركانو نه او دا روستو جمله مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَآ ، دَ دې تفسير دې ـ
وَ لَا قَوْمُكَ ، كښې اشاره ده چه يهودو او نصارىٰ ته خو دا قصه معلوم وه او هغوي پېژنوله ليكن اميين عرب دَ دينه ناخبره وؤ ـ
اِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِيْنَ ، يعنې نوح عليه السلام او دَ هغه مؤمنان دَ تقوىٰ په وجه سره دَ عذاب نه بچ شول او كاميان شول نو راتلونكو خلقو دَ پاره هم داسې حكم دې ـ

غَيْرُهٗ ؕ اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُفْتَرُوْنَ ﴿۵۰﴾

سوا دَ هغه نه، نه يئ تاسو مګر دروغ جوړوئ.

يٰقَوْمِ لَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ

اے زما قومه زهٔ نه غواړم ستاسو نه په دے باندے هيڅ بدله.

اِنْ اَجْرِىَ اِلَّا عَلَى الَّذِىْ

نه ده بدله زما مګر په هغه ذات باندے ده

فَطَرَنِىْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۵۱﴾ وَيٰقَوْمِ

چه زهٔ ئے پيدا کړے يم، نو دَ عقل نه ولے کار نه اخلئ. او اے زما قومه

۵۰ :- دا دويم دليل نقلی دے په اثبات دَ توحيد باندے دَ هود عليه السلام نه او ذکر دَ شجاعت دَ هغه دے په بيان دَ مسئله کښ او ذکر دَ عذاب دَ قوم دَ هغه دے دَ پاره تخويف دنيوی.

اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا مُفْتَرُوْنَ ، هر مشرک په الله تعالیٰ باندے افتراء کوونکے دے او دا رنګ دَ شرک دَ اثبات دَ پاره دروغ قصے جوړوی دَ آيت ۵۰ نه په اول درے آيا تونو کښ طريقه دَ دعوت ده بيا دوه آيتونو کښ مخالفت دَ قوم دَ هغه ذکر دے بيا څلور آيتونو کښ شجاعت دَ هغه او تخويف ذکر دے او په آخری درے آيتونو کښ نجات دَ مؤمنانو او بيا ذکر دَ اسبابو دَ عذاب او په آخر کښ عذاب دنيوی او اخروی بيان شو.

۵۱ :- دا بيان دَ اخلاص دے دَ پاره دَ ترغيب ځکه چه طمع دار دَ دنيا مسئله دَ حق پوره او په اخلاص سره نشی رسولے. او فَطَرَنِىْ ، پوره دليل دے په اخلاص کولو باندے.

اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ

بخښنه غواړئ د رب خپل نه بیا توبه اوباسئ هغه ته

يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا

رالیږي به باران په تاسو باندې ډیر د ضرورت برابر

وَّيَزِدْكُمْ قُوَّةً اِلٰى قُوَّتِكُمْ وَلَا

او زیاتې به کړي تاسو لره طاقت د طاقت ستاسو سره او

تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِيْنَ ﴿۵۲﴾ قَالُوْا يٰهُوْدُ

مخ مه ګرځوئ جرم کوونکي. اُوئیل دوی اے هود علیه السلام

مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ وَّمَا نَحْنُ

تا نه دے راوړے مونږ ته څه ښکاره دلیل او نه یو مونږ

۵۲:- په دے آیت کښ دعوت دے توحید ته په استغفار او توبه سره او ترغیب دے په ذکر د دوه نعمتونو دنیویه سره فرق د استغفار او د توبے د دے سورت د آیت ۳ په تشریح کښ بیان شوے دے، او په دے آیت کښ د ستغفار او توبے دوه دنیوی فائدے ذکر کړیدی او دا رنګ سورة نوح ۱۱، ۱۲ کښ هم ذکر دي۔

يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا، دا خلق زمیندار وو باران نو ته ئے ضرورت ډیر وو او دا رنګ په یو قول کښ راغلي دي چه د دوی نه درے کاله باران بند شوے وو۔

وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً اِلٰى قُوَّتِكُمْ، قوت د اولاد او د مال مراد دے ځکه چه یو روایت کښ راغلي. دي چه درے کاله د دوی زنانه شنړے شوے وے۔

مُجْرِمِيْنَ، یعني زما د دعوت نه مخ ګرځول مستلزم دي مجرم کیدلو لره۔

بِتَارِكِيٓ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وَمَا

پرېښودونکي خپل مددګاران (معبودان) ستا د وینا د وجې نه او نه یو

نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿٥٣﴾ إِنْ نَّقُولُ

مونږ ستا په خبره باور کوونکي. مونږ نه وایو

إِلَّا اعْتَرَاكَ بَعْضُ اٰلِهَتِنَا بِسُوٓءٍ ط

مګر دا خبره چه رسولې دي تا ته بعضې مددګارانو زمونږ تکلیف (مرض د ماغزو)،

قَالَ إِنِّيٓ أُشْهِدُ اللّٰهَ وَاشْهَدُوٓا

اوویل ده یقینًا زه ګواه کوم الله تعالیٰ لره او تاسو هم ګواهان شئ

أَنِّي بَرِيٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿٥٤﴾ لا

چه یقینًا زه بیزاره (جدا) یم د هغه چا نه چه تاسو ئې شریکوئ.

٥٣:- دې آیت کښې ذکر د عناد د هغه قوم دې په درې طریقو سره.
اول دا چه سره د وجود د بَيِّنَةٍ، نه هغوی انکار کوو په عناد سره
ځکه چه هر نبي له الله تعالیٰ بینات ورکړي دي او دویمه طریقه دا
چه په شرک باندې ئې اصرار کوو په دې قول سره وَمَا نَحْنُ
بِتَارِكِيٓ اٰلِهَتِنَا.
عَنْ قَوْلِكَ، کښې هم دوی اشاره کړې ده چه ستا سو په وینا باندې هیڅ
دلیل نشته. دریمه طریقه دا چه وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ، په دې
ئې نفي د ایمان په راتلونکي زمانه کښې اوکړه د پاره د رد کولو د
طمع د هود علیه السلام د ایمان د دوی نه.
٥٤:- دا هم بیان د عناد او د جهل د هغوی دې او وجه ده د ایمان
نه راوړلو یعني ستا دماغ خراب شوی دی او دا د شرک کلمه ده
چه نسبت د ضرر ورکولو غیر الله ته کوي دا عقیده ئې لرله، او دا
طریقه د جاهلانو اوس هم شته چه موحد ته وائي چه تا ته زمونږ
اولیاء (معبودانو) تکره رسولې ده او ستا دماغ ئې خراب کړې دی.
قَالَ إِنِّيٓ أُشْهِدُ اللّٰهَ، دا بیان د شجاعت د هود علیه السلام دې او

مِنْ دُوْنِهٖ فَكِيْدُوْنِيْ جَمِيْعًا ثُمَّ

سِوا دَ الله تعالىٰ نه نو چل جوړ کړئ ما ته ټول (په یو ځای) بیا

لَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۵۵﴾ اِنِّيْ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ

ما له مهلت مه راکوئ۔ یقیناً ما ځان سپارلے دے په الله تعالىٰ باندے

رَبِّيْ وَرَبِّكُمْ ۚ مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ

چه رب زما او رب ستاسو دے، نشته هیڅ ژندی سر مگر هغه (الله تعالىٰ)

اٰخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا ۚ اِنَّ رَبِّيْ عَلٰى صِرَاطٍ

نیوونکے دے تندی (ویښته) دَتندی) دَ هغے لره یقیناً رب زما په برابر

مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۵۶﴾ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقَدْ اَبْلَغْتُكُمْ

لار باندے دے۔ نو که تاسو مخ گرځوئ (نو په ما باندے گناه نشته) ځکه چه رسولی دی ما تاسو ته

استقامت دے په توحید باندے۔

وَاشْهَدُوْا اَنِّيْ بَرِيْٓءٌ، براءت عام دے عبادت نه کول او دَ هغوی (معبودانو) دَ طرف نه دَ ضرر نه رسیدلو عقیده ساتل۔

۵۵:۔ په یکنس هم بیان دَ شجاعت او دَ استقامت دَ هغه دے۔

مِنْ دُوْنِهٖ، دا جدا راوړیدے دَپاره دَ تاکید یعنی شریکان ستاسو خو الله تعالىٰ لره نشی کیدے سره دَ دے نه چه الله تعالىٰ نه کوز او عاجز دی نو څه رنگ به شریکان شی۔

فَكِيْدُوْنِيْ، دا پشان دَ قول دَ نوح علیه السلام دے چه په سورت یونس ۷۱ آیت کښ دے دلالت کوی په عدم خوف دَ هغه دَ غیر الله نه۔

۵۶:۔ دا دلیل دَ ماقبل دے یعنی توکل په الله تعالىٰ باندے مستلزم دے دَپاره دَ براءت دَ هر شرک نه۔ او دویمه جمله علت دے دَپاره دَ توکل کولو په الله تعالىٰ باندے او دَ دے مقصد دا دے چه هر څه دَ الله تعالىٰ په قبضه قدرت او تصرف کښ دی نو دَ الله تعالىٰ دَ ارادے نه په غیر هغوی هیڅ ضرر نشی دررسولے۔

تُمۡ مَّآ اُرۡسِلۡتُ بِهٖۤ اِلَیۡکُمۡ ؕ وَ یَسۡتَخۡلِفُ

هغه پیغام نه چه زهٔ را لیږلے شوے یم په هغې بانده تاسو ته، او روستو به راولی

رَبِّیۡ قَوۡمًا غَیۡرَکُمۡ ۚ وَ لَا تَضُرُّوۡنَهٗ

رب زما بل قوم ستاسو نه سوا او ضرر نهٔ شئ ورکولے هغهٔ ته

شَیۡئًا ؕ اِنَّ رَبِّیۡ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ

هیڅ ، یقینًا رب زما په هر څیز بانده

حَفِیۡظٌ ﴿۵۷﴾ وَ لَمَّا جَآءَ اَمۡرُنَا نَجَّیۡنَا

ساتنه کوونکے دے. او هر کله چه راغے حکم دَ عذاب زمونږ بچ کړو مونږ

بِنَاصِیَتِهَا ، ناصیه هغه ویښته دی چه دَ سر په مخکنۍ حصّه بانده وی او دَ عرب په محاوره کښ ناصیه نیول کنایه ده قبض کولو او دَ ذلیل کولو نه. دَ دریمے جملے یو مطلب دا دے چه الله تعالیٰ قائم دے په عدل او انصاف او مراد دَ صراط مستقیم نه عدل دے دَ دے وجے نه الله تعالیٰ موحدینو لره دَ کیدونو دَ مشرکانو نه محفوظ ساتی دویم مطلب دا دے چه الله تعالیٰ هدایت کوی نیغے لارے ته ردَ توحید لار) علی، په معنیٰ دَ الیٰ. دے دَ دے وجے نه هغه موحد لره دَ ذلت نه بچ ساتی.

۵۷ :- په دے آیت کښ بیان دَ دفع دَ عذر دَ قوم دے چه دا اونه وائی چه مونږ دَ حق نه خبر نه یو او دَ فَاِنۡ تَوَلَّوۡا، جزاء پټه ده یعنی زهٔ ملامت نه یم ځکه چه ما په تاسو بانده حجت قائم کړیدے.

فَقَدۡ اَبۡلَغۡتُکُمۡ مَّاۤ اُرۡسِلۡتُ بِهٖۤ اِلَیۡکُمۡ ، علت دَ جزاء دے.

وَ یَسۡتَخۡلِفُ رَبِّیۡ قَوۡمًا غَیۡرَکُمۡ ، دا معطوف دے په پټ لفظ بانده یعنی فیهلککم رالله تعالیٰ به تاسو هلاک کړی) او دا تخویف دنیوی دے.

حَفِیۡظٌ ، یعنی ستاسو دَ هر عمل که لوے وی او که وړوکے وی حفاظت کوونکے دے په علم او قدرت خپل سره.

هُوْدًا وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ

هود علیه السلام او هغه کسان لره چه ایمان یې راوړے وو د هغه سره په سبب د رحمت

مِّنَّا وَنَجَّيْنٰهُمْ مِّنْ عَذَابٍ غَلِيْظٍ ﴿۵۸﴾

زموږ د طرفنه او بچ کړل موږ دوی لره د عذاب سخت نه -

وَتِلْكَ عَادٌ جَحَدُوْا بِاٰيٰتِ رَبِّهِمْ

او دغه عادیان وو چه انکار یې کړے وو د آیتونو د رب خپل نه

وَعَصَوْا رُسُلَهٗ وَاتَّبَعُوْٓا اَمْرَ

او نافرمانی یې کړے وه د رسولانو د هغه نه او تابعداری یې کړے وه د طریقے

كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ ﴿۵۹﴾ وَاُتْبِعُوْا فِيْ

د هر سرکش عنادی - او پرله پسے اولیږلے شوې ورپسے په

۵۸:- د اَمْرُنَا نه مراد عذاب د سخته سیلۍ دے چه په سورة حم سجده سلا آیت او الحاقه سلا آیت کښ ذکر دے - او نَجَّيْنَا کښ اشاره ده چه په وخت د عذاب کښ اول رسول او مؤمنانو ته نجات ورکیدے شی روستو په مکذبینو باندے عذاب راځی او په لفظ د بِرَحْمَةٍ سره اشاره ده چه سبب د نجات رحمة خاصه د الله تعالى دے.

فائده :- دے آیت کښ دوه کرته نجات ذکر دے د اول نجات نه مراد نجات دے د قوم د مظالمو او مکرونو نه او د دویم نجات نه مراد نجات د عذاب دنیوی نه دے یا اول نجات د عذاب دنیوی نه او دویم نجات د عذاب اخروی نه دے.

۵۹:- وَتِلْكَ عَادٌ ، عاد په تاویل د قبیلے سره مؤنث دے او اشاره د تلك د دے وجے نه ده چه دا واقعه د اوریدونکو په ذهنونو کښ مشهوره شوی وه او په اسم اشاره سره اکثر اشاره معهود ذهنی ته کیږی او دے آیت کښ درے اسباب د عذاب ذکر کړے شوے دی اول انکار د آیاتونو د توحید نه ، دویم مخالفت د رسول چه مستلزم دے مخالفت د ټولو رسولانو لره ، دریم تابعداری او تقلید د جبار، چه د

هٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَّيَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ

دے دنیا کښ لعنت او په ورځ د قیامت هم،

اَلَآ اِنَّ عَادًا كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ؕ اَلَا

خبر شئ یقیناً عادیانو انکار کړے وؤ د رب خپل نه، خبر شئ

بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُوْدٍ ﴿٦٠﴾

تباهي ده عادیانو لره چه د هود علیه السلام قوم وؤ۔

وَاِلٰى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صٰلِحًا ۘ قَالَ

(اولیږلے وؤ موږ) ثمودیانو ته ورور د شوي صالح علیه السلام ده اُوئیل

هیڅ قانون په ځان نه مني لکه دهري کافر عټیثي، د دلیل او د قانون شرعي سره عناد او ضد کوونکے لکه عنادي کافر۔

سنه:۔ په دے آیت کښ ترقي د عذاب دنیوي او اخروي ذکر شوه یعني روستو د عذاب د سختے سیلئ نه لعنت د الله تعالیٰ او د ملائکو او د مؤمنانو د طرف نه پرروي پسے همیشه کړے شو او د هغے سبب یئے ذکر کړو چه كَفَرُوْا رَبَّهُمْ۔

قَوْمِ هُوْدٍ، کښ اشاره ده چه مراد د عاد نه اولني عادیان وؤ دویم عاد ارم وؤ۔ او لفظ د اَلَا دلالت کوي چه د دوي کفر ډیر لوے او ښکاره وؤ او د دوي عذاب هم لوے او ښکاره وؤ۔

كَفَرُوْا رَبَّهُمْ، باء، حذف ده نو معنیٰ د کفر معروف مراد ده یا مراد د دینه انکار کول دي نو باء ته ضرورت نشته۔

بُعْدًا، د رحمت خاصه د الله تعالیٰ نه لرے والے دا تباهي ده۔

يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ

اے زما قومه بندګی کوئ خاص د الله تعالیٰ نشته تاسو لره څوک

إِلٰهٍ غَيْرُهٗ ؕ هُوَ أَنْشَأَكُمْ مِّنَ الْأَرْضِ

حاجت پوره کوونکے سوا د هغه نه، هغه پیدا کړی یئ تاسو د زمکے نه

وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ

او آباد کړی یئ تاسو په دے زمکه کښ نو بخنه غواړئ د هغه نه

ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ؕ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ

بیا توبه اوباسئ هغه ته، یقیناً رب زما نزدے دے

مُّجِيبٌ ﴿٦١﴾ قَالُوا يٰصٰلِحُ قَدْ كُنْتَ

قبلوونکے دے. اُوئیل دوی اے صالح علیه السلام یقیناً ته وے

سا۶۱ :- دا دریم دلیل نقلی دے په اثبات د توحید باندے د صالح علیه السلام نه او جواب د قوم د هغه بیا دعوت دے په اِسْتَعْمَرَكُمْ، سره استعمار، د یر عمر ورکول یا اباد ول یا د عمری نه ماخوذ دے یعنی د عمر د پاره وربخل مراد دی او ذکر د شجاعت د صالح علیه السلام دے په بیان د مسئله د توحید کښ او ذکر د معجزے او تکذیب د قوم او ذکر د عذاب د قوم د هغه دے د پاره د تخویف دنیوی په دے آیت کښ پس د بیان د توحید نه دوه انعامات الهیه ذکر دی - اول نعمت د ایجاد په، أَنْشَأَكُمْ مِّنَ الْأَرْضِ، سره او مراد دا دے چه د انسانانو پیلار (آدم علیه السلام) د زمکے نه پیدا دے یا دا چه انسانان خوراک کوی او هغه د زمکے نه پیدا کیږی او د هغه خوراک نه نطفه جوړیږی یا مِنْ. په معنیٰ د فِیْ سره دے دویم نعمت د ابقاء دے په وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا، سره - بیا دوه امرونه دی استغفار او توبه او دوه صفتونه د الله تعالیٰ ذکر دی. قَرِيبٌ مُّجِيبٌ، د پاره د ترغیب مسئلے د توحید نه -

فِيْنَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هٰذَآ اَتَنْهٰنَآ

په موږ کښې امید لرلے شوے (ستا نه د خیر) مخکښې د دینه آیا ته موږ منع کوے

اَنْ نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا وَاِنَّنَا

د دینه چه بندګی اوکړو د هغه چا چه بندګی کوله زموږ مشرانو او یقینًا موږ

لَفِيْ شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ

په شک کښې یو د هغه خبرے نه چه ته بلے موږ لره هغې ته

مُرِيْبٍ ﴿۶۲﴾ قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ

کلک شک. اوئیل ده اے زما قومه خبر راکړئ ما ته

اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ

که چرے یم زۀ په ښکاره دلیل باندے د طرف د رب خپل نه

وَاٰتٰىنِيْ مِنْهُ رَحْمَةً فَمَنْ يَّنْصُرُنِيْ

او راکړے وی ما ته د طرف خپل نه رحمت (نبوت) نو څوک به ما بچ کړی

مِنَ اللّٰهِ اِنْ عَصَيْتُهٗ قف فَمَا

د الله تعالٰی (د عذاب) نه که چرے زۀ د هغه نافرمانی اوکړم نو تاسو نه

۶۲ :- مَرْجُوًّا ، غوره چه امید و نه ورپورے تعلق لری دا لپاره د دے وجے نه او ئیل چه د نبوت نه وړاندے په هغه کښې خاښته اخلاق وو لکه مسکینانو سره امداد کول د بیمارانو بیمار پرسی کول په یتیمانو باندے ترس کول اشاره ده چه چا د حق خبره نه وی کړی نو عام خلق لپاره عزت کوی او داسے خاښته اخلاق زموږ په نبی صلی الله علیه وسلم کښې هم د نبوت نه مخکښې موجود وو لکه چه په حدیث د بدء الوحی کښې بخاری ص۳ کښې ذکر دے۔

اَتَنْهٰنَآ اَنْ نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا ، اشاره ده سبب د خفګان د قوم ته چه مخالفت د نبی دے د طریقے د مشرانو د دوی نه۔

مُرِيبٍ، مراد دا دے چه زموږ شک داسے دے چه په تا باندے بدګمانئ او تا سره جګړے کولو ته رسوونکی دی.

۶۳:- په دے آیت کښ جواب دے د دے أَتَنْهَانَا، ځکه چه إِنْ عَصَيْتُهُ، نه مراد په دے آیت کښ دا دے چه نهی د شرک نه پریږدم نو دا عصیان دے او إِنْ كُنْتُ، إِنْ، دلته د شک د پاره نه دے لیکن د مخاطبینو د مائل کولو د پاره دے په إِنْ سره ذکر کړو.

بَيِّنَةٍ، نه مراد ښکاره دلیلونه عقلیه دی او رَحْمَةً، نه مراد وحی او نبوت دے.

فَمَنْ يَنْصُرُنِي مِنَ اللَّهِ إِنْ عَصَيْتُهُ، دا استفهام انکاری دے.

غَيْرَ تَخْسِيرٍ، د دے دوه معنے دی. اول دا چه تاسو په دے ویتا خپلے سره (چه د شرک نه منع مکوه) زما نقصان زیاتی کوئ ځکه چه ما لره د حق ویتا نه منع کوئ. دویمه معنی دا ده چه تاسو د مشرانو په دین سره دلیل نیسئ نو په دے سره زیاتے کوئ زما علم ستاسو په خسران او ګمراهئ باندے یعنی شرک خو سبب د خسران دے لیکن تاسو د اثبات د پاره په عمل د ابائو سره دلیل نیسئ نو ما ته اوس بنۀ علم راغے چه تاسو په خسران کښ یئ ځکه چه دا دلیل نه دے بلکه تقلید د ابائو دے.

عَذَابٌ قَرِيبٌ ﴿٦٤﴾ فَعَقَرُوهَا فَقَالَ

عذاب نژدے - نو دوی هغه او وژله نو اُوئیل هغه

تَمَتَّعُوا فِي دَارِكُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ ط

دَ ژوند مزے واخلئ په خپلو کورونو کښ درے ورځے ،

ذَٰلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوبٍ ﴿٦٥﴾ فَلَمَّا

دا وعده ده بے دروغو - نو هر کله

جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا صَالِحًا وَالَّذِينَ

چه راغے حکم دَ عذاب زمونږ، بچ کړو مونږ صالح علیه السلام او هغه چا لره

آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَمِنْ خِزْيِ

چه ایمان یې راوړے وُو دَ هغه سره په خاص رحمت زمونږ او دَ شرمندګۍ

۶۴۔ نَاقَةُ اللّٰهِ، کښ اضافت دَپاره دَ شرافت دے ځکه چه دَ هغې په پیدا کولو کښ ظاهری اسباب وو۔

فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللّٰهِ، یعنی تاسو بانـدے دَ دے دَ خوراک څه تکلیف نشته۔

فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِيبٌ، په دیکښ اشاره ده چه توهین دَ معجزے سبب دَ عذاب دنیوی دے۔

۶۵۔ فَعَقَرُوهَا، عقر اندامونو پریکولو ته وئیلے شی عقر، یو شن اوکړو لکه چه په سورة قمر ۲۹ کښ دی لیکن نور کسان په هغے بانـدے رضا وُو ځکه یې دَ جمع صیغه ذکر کړه۔

تَمَتَّعُوا، مفسر قرطبی وئیلی دی چه دا کنایه ده دَ حیات نه یعنی درے ورځے به ژوندی یئ ځکه چه اَلْمَيِّتُ لَا يَتَلَذَّذُ وَلَا يَتَمَتَّعُ بِشَيْءٍ، یعنی مړے رَدَ دنیا) په هیڅ څیز بانـدے نه مزه اخستے شی او نه فائده۔

دَارِكُمْ، مراد دَ دینه دَ دوی کلے دے یا مراد تر ینه دار دَ دُنیا دے۔

يَوْمِئِذٍ ۭ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْقَوِيُّ

دَ دغه ورځ نه، يقيناً ستا رب هغه ډير طاقت والا

الْعَزِيْزُ ﴿٦٦﴾ وَاَخَذَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا

زور آور دے. او اونيولو ظالمانو لره

الصَّيْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ

تيزے چغے نو شول دوى په كورونو كښ

جٰثِمِيْنَ ﴿٦٧﴾ كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ۭ

پرمخے پراته مړه. (فنا شول) گويا چه دوى نه وو اوسيدلى په هغے كښ،

اَلَآ اِنَّ ثَمُوْدَ كَفَرُوْا رَبَّهُمْ ۭ

خبر شئ يقيناً ثموديانو كفر كړے وو په رب خپل باندے.

ف ۱۔ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا، سره اشاره ده چه نجات دَ صالحينو دَ الله تعالى دَ رحمت دَ وجے نه دے دَ هغوى دَ عمل يا دَ زور دَ وجے نه نه دے.

وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ، يعنى هغه شرمندگى او ذلت چه لازم دے دَ عذاب سره يا دا معنى چه نجات موورکړو دَ هغه کلى نه او نجات مو ورکړو دَ عذاب دَ دنيا نه (چه شرمندگى ده).

يَوْمِئِذٍ، كښ اشاره ده ورځ دَ قيامت ته.

ف ۲ :. هر كله چه دوى په خپلو اوازونو او چغو سره دَ صالح عليه السلام بے عزتى اوكړه چه هغه پدے سورت كښ ذكر وو نو عذاب دَ صيحه ذكر شو چه مناسب دے دَ آوازونو سره او نور تحقيق په تفسير دَ سورة اعراف كښ تير شوے دے.

جٰثِمِيْنَ، پدے كښ درے حالاتو ته اشاره ده، اول دَ هيبت دَ وجے پرمخے پريوتل، دوييم دَ پاخيدلو طاقت نه لرل، دريم مړه كيدل.

ع ٨ ٦

أَلَا بُعْدًا لِّثَمُودَ ﴿٦٨﴾ وَلَقَدْ جَآءَتْ

خبر شئ هلاکت دے ثمودیانو لره۔ او یقینًا راغلی وؤ

رُسُلُنَآ إِبْرٰهِيمَ بِالْبُشْرٰى قَالُوا

ملائک زمونږ ابراهیم علیه السلام ته په زیری سره دوی اُوئیل

سَلٰمًا ۖ قَالَ سَلٰمٌ ۖ فَمَا لَبِثَ

سلام دے په تا باندے، هغه اُوئیل سلام دِ دوی په تا سو باندے نو نه وؤ حصار شوے

أَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ﴿٦٩﴾ فَلَمَّا رَآ

تردے چه راؤړ وریتے سخے وریت کړے شوے۔ نو هر کله چه اوکتے لیدل

٦٨:۔ كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا، دَ دوی دَ کلی فنا ته اشاره ده دَ دینه مخکښ لفظ فنوا یا اهلکوا پټ دے۔

كَفَرُوْا رَبَّهُمْ، دا سبب دَ عذاب دے۔ اَلَا بُعْدًا لِّثَمُوْدَ، جمله خبریه ده روستو دَ عذاب دَ هغوی نه یا جمله دعائیه ده په باره دَ قیامت کښ۔

٦٩:۔ دا څلورمه واقعه ده تعلق لری دَ رد شرك فی العلم سره چه علم غیب خاص الله تعالی لره دے ځکه چه ابراهیم علیه السلام دَ میلمنو دَ حال نه خبر نه وؤ۔

وَلَقَدْ جَآءَتْ، واو، دَ عطف دلالت کوی چه دَ ټولو قصو اصل مقصد یو دے چه اثبات دَ توحید دے او لقد تاکید یَئے دَ دے دَ پاره ذکر کړو چه په مسئله دَ علم غیب کښ دَ منکرینو ډیر شك وؤ نو دَ هغوی رد پرے واقعے سره کیږی۔ په لفظ رُسُلُنَا، سره دَ دوی دَ راتللو مقصد یَئے ذکر کړو چه خاص پیغام راوړل دی او په سورت حجر ٥١ او ذاریات ٢٤ کښ ضیف (میلمانه) ذکر کړل ځکه چه په خیال دَ ابراهیم علیه السلام کښ میلمانه وؤ۔

بِالْبُشْرٰى، زیرے دَ هلاکت دَ قوم لوط علیه السلام یا زیرے دَ ولد یعنی بشری یَئے مقصد وؤ دَ هغے نه مخکښ یَئے دَ سلام او دَ طعام ذکر

رَاٰ اَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ اِلَيْهِ نَكِرَهُمْ

لاسونه د دوی چه نه رسیدل هغه خوراک ته نو نا اشنا یې اوګڼل دوی لره

وَاَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ۚ قَالُوا

او په زړه کښ یې راغله د دوینه یره ، دوی اوئیل

لَا تَخَفْ اِنَّا اُرْسِلْنَا اِلٰى قَوْمِ لُوطٍ ۝۷۰

مه یریږه یقینًا لیږلے شوی یو مونږ قوم د لوط علیه السلام ته ۔

اوکړو او بشری یې لا نه دے ذکر کړے لیکن آیت کښ اشاره ده چه سلام کول طریقه د ملائکو او د ټولو انبیاؤ ده او سلام په پیښښ سره دلالت کوی په دوام او همیشوالی یا ندے رځکه چه جمله اسمیه ده) نو دا غوره دے د سَلٰمًا ، نه مفعول دے چه په زور سره دے نو جواب احسن شو د سلام نه او سَلٰمًا ، مفعول دے د پټ فعل د پاره یعنی سلمنا سلامًا یا مفعول دے د قالوا د پاره ۔

اَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ، اَنْ ، په معنٰی د حتی دے یعنی حتی جاء یا من لفظ پټ دے ۔

ښ :- لَا تَصِلُ اِلَيْهِ ، کنایه ده د نه خوړلو نه ۔ نَكِرَهُمْ ، ځکه چه سنت د پاره د میلمه دا ده چه زر شروع به کوی په خوراک یا ندے او دعوت به قبلوی نو دوی د دے طریقے نه خلاف اوکړو ۔

خِيفَةً ، یره د ضرر او تکلیف رسولو ۔

قَالُوا لَا تَخَفْ ، که سوال اوکړے شی چه ملائک څنګه پوهه شول د ابراهیم علیه السلام د زړه په یریدلو دا علم غیب دے ؟

جواب :- دا دے چه سورة حجر ۵۲ آیت نه معلومه ده چه ابراهیم علیه السلام پخپله ژبه د دے اظهار کړے وؤ ۔

لَا تَخَفْ اِنَّا اُرْسِلْنَا ، یعنی مونږ ستا ضرر او نقصان له نه یو راغلی او عذاب د قوم لوط علیه السلام له راغلی یو ۔ اُرْسِلْنَا ، دلالت اوکړو چه دوی ملائک وؤ او ملائک خوراک له کوی نو یره د ابراهیم علیه السلام په دے سره زائله شوه ۔

وَامْرَاَتُهٗ قَآئِمَةٌ فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنٰهَا

او ښځه دَ ده ولاړه وه نو خوشحاله شوه زيرے ورکړو مونږ هغې ته

بِاِسْحٰقَ ۙ وَمِنْ وَّرَآءِ اِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ ﴿۷۱﴾

په اسحاق علیه السلام او وروستو دَ اسحاق علیه السلام نه په یعقوب علیه السلام سره۔

اِلٰى قَوْمِ لُوْطٍ ، دا دَ دوی دَ ارسال دویم مقصد دے۔

سوال :- دَ سورة حجر او دَ ذاریات نه معلومیږی چه دَ بشارت بالولد نه او دَ ازالے دَ خوف نه وروستو ابراهیم علیه السلام دَ هغوی نه تپوس اوکړو چه ما خطبکم نو دا دَ اهلاک دَ قوم لوط خبرے ورکړو او پدے سورت کښ معلومه شوه چه لَا تَخَفْ اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمِ لُوْطٍ ، یعنی دَ خوف دَ ازالے لپاره دوی دا لفظ ویلے دے ؟

جواب :- دلته په عبارت کښ تقدیم تاخیر دے یعنی اول ئے ازاله دَ خوف په بشارت دَ ولد سره اوکړه او بیا ئے ازاله دَ خوف دَ تاکید دَپاره روستو دَ سوال دَ ابراهیم علیه السلام نه په ما خطبکم سره خبر دَ اهلاک دَ قوم لوط ورکړو۔

ملک :- وَامْرَاَتُهٗ قَآئِمَةٌ ، یعنی دَ پردے نه شاته ولاړه وه دَ پاره دَ خدمت دَ میلمنو په دلیل دَ دے قول فاقبلت امراته ( ذاریات ۲۹ ) یعنی پس دَ پردے نه مخامخ راغله هر کله چه پوهه شوه چه دوی ملائک دی۔

فَضَحِكَتْ ، دینه خندل مراد نه ده ځکه دَ حیا ناکے زنانه خندل کول په لوے مجلس کښ مناسب نه دی نو مراد دَ دینه خوشحالیدل دی۔

سوال :- سورة ذاریات ۲۸ آیت نه معلومه ده چه زیرے دَ هلک ورکړے شو نو روستو دَ هغے نه مخامخ راغله او دَ دے ځاے نه معلومیږی چه زیرے ورته روستو میلاؤ شو ؟

جواب :- دا دے چه هر کله ملائکو اول بشارت ابراهیم علیه السلام ته ورکړو لکه په سورت ذاریات ۲۸ کښ دے نو ښځے ئے دَ پردے نه شاته واوریدلو نو خوشحاله شوه خوشیال ئے دا وؤ چه دَ بلے ښځے نه به بیدائش دَ ولد کیږی نو روستو ملائکو دے ته هغه بشارت ورکړو۔

قَالَتْ يٰوَيْلَتٰٓى ءَاَلِدُ وَاَنَا عَجُوْزٌ

اُوئیل هغې هائے تعجب دے آیا زۀ به بچے زیږووم او زۀ خو بوډۍ یم

وَّهٰذَا بَعْلِىْ شَيْخًا ؕ اِنَّ هٰذَا

او دا خاوند زما دے بوډا ، یقینًا دا

لَشَىْءٌ عَجِيْبٌ ﴿۷۲﴾ قَالُوْٓا اَتَعْجَبِيْنَ مِنْ

خامخا کار عجیبه دے۔ دوی اُوئیل آیا تعجب کوې دَ

اَمْرِ اللّٰهِ رَحْمَتُ اللّٰهِ وَبَرَكٰتُهٗ

کار دَ الله تعالیٰ نه رحمت دَ الله تعالیٰ دِوی او برکتونه دَ هغه دِوی

عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ ؕ اِنَّهٗ حَمِيْدٌ

په تاسو باندے اے کورنۍ دَ ابراهیم) یقینًا الله تعالیٰ ستائیلے شوے

سوال :۔ دریم دا دے نو سبب دَ ضحك څه وو ؟

جواب ۱ :۔ دا دے :۔ مجاهد او عکرمه وائی چه ضحك په معنیٰ دَ حاضت (حیض) دے یعنی اګرچه بوډۍ وه لیکن حیض ئے شروع شو نو دا دلیل وو دَ ولادت نو سبب دَ خوشحالۍ ذکر کولو ته ضرورت نشته۔ نو زیرے دَ ولد ئے ورکړو بیا روستو مخالج راغله نو په تعجب کښ شوه۔

جواب ۲ دا دے فراء وائی آیت کښ مخکښ والے روستوالے دے۔ یعنی اول ئے بشارت ورکړو نو روستو هغه خوشحاله شوه۔

ملك :۔ یٰوَیْلَتٰیٓ ، دا کلمه په وخت دَ تعجب کښ استعمالیږی ، او دا زنانه سارا بنت هاران وه ، دَ ابراهیم علیه السلام دَ تره لور وه۔

عَجِیْبٌ ، دا عجیبه وو په اعتبار دَ عادت سره نه په اعتبار دَ قدرت دَ الله تعالیٰ سره۔

مَجِيْدٌ ﴿٧٣﴾ فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرٰهِيْمَ

لوییٔ والا دے ۔ نو هر کله چه لاړه دَ ابراهیم علیه السلام نه

الرَّوْعُ وَجَآءَتْهُ الْبُشْرٰى يُجَادِلُنَا

یره او راغے هغه ته ؛ زیرے نو بحث ئے شروع کړو زمونږ سره

فِيْ قَوْمِ لُوْطٍ ﴿٧٤﴾ إِنَّ إِبْرٰهِيْمَ لَحَلِيْمٌ

په باره دَ قوم دَ لوط علیه السلام کښ۔ یقیناً ابراهیم علیه السلام خامخا صبرناک

أَوَّاهٌ مُّنِيْبٌ ﴿٧٥﴾ يٰٓإِبْرٰهِيْمُ أَعْرِضْ

دردمن کرځیدونکے ووَ حق ته ۔ (دوی اُوئیل) اے ابراهیمه مخ واړوه

ﷺ:۔ اَمْرِ اللّٰهِ، فیصله دَ الله تعالیٰ یا قدرت دَ الله تعالیٰ رَحْمَتُ اللّٰهِ وَبَرَكٰتُهٗ، خوره دا ده چه دا جمله خبریه خبر دے، دعا نه ده۔ او دا آیت دلیل دے چه ښځه دَ سړی په اهل بیت کښ لوکښ اصل ده او دا رنګ سورة احزاب ۳۳ آیت کښ دی۔

حَمِیْدٌ، هغه ذات دے چه مخلوق ئے حمد وته کوی ښوک طوعًا او ښوک کرهًا۔

مَجِیْدٌ، مجد شرافت او عظمت ته وئیلے شی۔

ﷺ:۔ اَلْبُشْرٰی، زیرے دَ ولد او زیرے دَ هلاکت دَ قوم لوط علیه السلام، یُجَادِلُنَا، بحث کول دَ پاره دَ طلب دَ روستوالی دَ عذاب مجادله ده او هغه ذکر ده په سورة عنکبوت آیت ۳۲ کښ او مراد دَ هغے دا دے چه لوط علیه السلام په قوم کښ وجود موجود دے او په وخت دَ وجود دَ نبی کښ په قوم باندے عذاب نه راځی نو دا عذاب روستو کړے۔

ﷺ:۔ دا دلیل دے چه مجادله دَ ابراهیم علیه السلام دَ ملائکو سره په طور دَ ضد او دَ انکار سره نه ده بلکه دَ وجے دَ انابت الی الله وه۔ او ورسره حلم، او تَاَوُّه، هم وه، نو دَ حلم دَ وجے نه روستوالے دَ عذاب ئے غوختلو، او دَ تَاَوُّه دَ وجے نه نرمی ئے غوختله په عذاب کښ او دَ انابت دَ وجے نه ئے تابعداری دَ حق دَ قوم غوختله۔

عَنْ هٰذَا ۚ اِنَّهٗ قَدْ جَآءَ اَمْرُ

دَ دے نه بیشکه یقیناً راغلے دے حکم

رَبِّكَ ۚ وَاِنَّهُمْ اٰتِیْهِمْ عَذَابٌ

دَ رب ستا (په هلاکت دَ دوی سره) او یقیناً راتلونکے دے په دوی باندے عذاب

غَیْرُ مَرْدُوْدٍ ﴿۷۶﴾ وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَا

چه نه دے واپس کړے شوے. او هر کله چه راغلل ملائک زموږ

لُوْطًا سِیْٓءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ

لوط علیه السلام ته خفه شو دَ هغوی په وجه او تنګ ئے شو په دوی باندے

ذَرْعًا وَّقَالَ هٰذَا یَوْمٌ عَصِیْبٌ ﴿۷۷﴾

زړه او وئیل ئے دا ورځ سخته ده.

ملا :- دا قول دَ ملائکو دے ابراهیم علیه السلام ته. اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا، یعنی پدے مجادله کښ فائده نشته نو دا پریخودل پکار دی او روستو ئے دوه علتونه ذکر کړی دی.

غَیْرُ مَرْدُوْدٍ، کښ اشاره ده چه دَ ابراهیم علیه السلام په مجادله سره نه واپس کیږی.

ملا :- دا پنځمه واقعه ده متعلق ده دَ رد دَ شرک فی العلم سره چه علم غیب خاص دے په الله تعالیٰ پورے لوط علیه السلام دَ دے ملائکو دَ حال نه خبر نه وو او نه ئے پیژندل او قدرت ئے هم نه وو نو قوم ئے نه شو دفع کولے.

بِهِمْ، ضمیر راجع دے ملائکو ته یعنی خفه شو په راتللو دَ ملائکو سره یا ضمیر راجع دے قوم ته یعنی خفه شو دَ هغوی په بد عمل سره.

وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا، په اصل کښ اوښ په رفتار کښ خپلے مخکنئ خپے (چه ذرع ده) اوګس ے اخلی او هر کله چه په هغه باندے بار درون شی نو قدم تنګ کړی، او ذَرْعًا سینے ته وئیلے شی او بِهِمْ،

وَجَآءَهٗ قَوۡمُهٗ يُهۡرَعُوۡنَ اِلَيۡهِ ؕ

او راغے دہ ته دَ دہ قوم رازغلیدلے شو دَ دہ طرف ته،

وَمِنۡ قَبۡلُ كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ السَّيِّاٰتِ ؕ

او دَ دینه مخکښې دوی ووَ چه کول ئے ناکاره کارونه،

قَالَ يٰقَوۡمِ هٰۤؤُلَآءِ بَنَاتِىۡ هُنَّ

دهٔ اووئیل اے قومه زما دا (زنانه ستاسو) زما لونړه دی دوی

اَطۡهَرُ لَـكُمۡ فَاتَّقُوۡا اللّٰهَ وَلَا تُخۡزُوۡنِ

ښه حلالے دی تاسو لره نو اویرېږئ دَ الله تعالیٰ نه او مه شرموئ ما لره

فِىۡ ضَيۡفِىۡ ؕ اَلَيۡسَ مِنۡكُمۡ رَجُلٌ رَّشِيۡدٌ ﴿۷۸﴾

په باره دَ میلمنو زماکښې، آیا نشته ته ستاسو نه سړے هوښیار۔

ضمیر قوم ته راجع دے ملائکو ته نه دے راجع نو دا کنایه دہ تنګوالی دَ طاقت نه۔

عَصِيۡبٌ، دَ عصابۃ نه ماخوذ دے، چه دَ درد دَ وجے نه په سر باندے پټئ وتړلے شي نو اشارہ دہ سختوالی ته۔

۷۸۔ وَجَآءَهٗ قَوۡمُهٗ يُهۡرَعُوۡنَ اِلَيۡهِ، اهراع، مجهول دَ معلوم سره مستعملیږی ګویا چه دوی یو بل لره تیزی ورکوله یا شهوت دوی زغلول۔

وَمِنۡ قَبۡلُ كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ، دا سبب دَ اهراع دے۔ السَّيِّاٰتِ، اغلام بازی، میلمانه تنګول، په کاټرو ویشتل، لارے شوکول وغیره بدکارونه ئے کول۔

قَالَ، دا دَ هغوی دَ دفع کولو دَ پاره ئے اُوئیل۔ بَنَاتِىۡ، مراد دَ دینه زنانه دَ قوم دی چه هغه دَ نبی دَ پاره په منزله دَ لوټړو وی دا قول دَ مجاهد او دَ سعید بن جبیر دے۔ اَطۡهَرُ، دیکښې معنیٰ دَ تفضیل ته مراد ځکه چه اغلام بازئ کښې هیڅ طهارت نشته بلکه تاکید دَ طهارت مراد دے۔

رَشِيۡدٌ، صالح او مصلح چه منع کول کوی دَ بدئ نه۔

قَالُوا لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِي بَنٰتِكَ

دوی اُوئیل یقیناً ته به پوهیږے چه نشته مونږ لره په لونړو ستا کښ

مِنْ حَقٍّ ۚ وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيدُ ﴿٧٩﴾

څه حاجت او یقیناً ته پوهیږے په هغه څه چه مونږ غواړو.

قَالَ لَوْ أَنَّ لِي بِكُمْ قُوَّةً أَوْ آوِي

دهٔ اُوئیل ارمان دے چه ما لره وے په تاسو باندے طاقت یا پناه حاصلولے ما

إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ ﴿٨٠﴾ قَالُوا يَا لُوطُ

قبیلے کلکے ته - دوی (ملائکو) اُوئیل اے لوط

٧٩ :- حَقٍّ، په معنیٰ دَ حاجت دے یعنی شهوت او دا قول دَ دوی دَ ډیرے بے حیایئ دَ وجے نه وؤ.
مَا نُرِيدُ، یعنی طلب دَ دے میلمنو دَپاره دَ فاحشه کولو.
٨٠ :- لَوْ، یا دَ تمنا دَپاره دے یا شرطیه دے جزاء ئے حذف ده.
لَدَفَعْتُكُمْ، ضرور ما به دفع کړے وئ تاسو.
قُوَّةً، نه مراد قوت دَ بدن دے یا مددګار او مؤمنانو ملګرو دے. او
رُكْنٍ شَدِيدٍ، نه مراد قبیله او خاندان دے او دا خبره ئے دَ دے وجے نه
اوکړله چه لوط علیه السلام دَ بل ځائے نه راغلے وؤ دَ دے قوم سره
ئے هیڅ نسب شریک نه وؤ. او رکن شدید نه مراد الله تعالیٰ
نه دے ځکه چه نبی دَ الله تعالیٰ نه غفلت نه کوی او حدیث شریف
کښ دی - يَرْحَمُ اللّٰهُ لُوطًا لَقَدْ كَانَ يَأْوِي إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ، مقصد
دَ حدیث بیان دَ کمال دَ لوط علیه السلام دے په مدافعت دَ منکرینو،
دَ دینه تنقید او عیب دَ هغه نه دے مراد -

إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَنْ يَّصِلُوْٓا إِلَيْكَ

يقينًا موږ رالیږلی (ملائک) یو ستا د رب هرګز نشي رسيدلی دوی تا ته (په ضرر)

فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ اللَّيْلِ

نو بوځه کورنۍ خپله په ټکړه د شپه کښ

وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ إِلَّا

او شا ته دې نه ګوري ستاسو نه هيڅوک سِوا

امْرَأَتَكَ ۖ إِنَّهُ مُصِيبُهَا مَآ أَصَابَهُمْ ۚ

د ښځې ستا نه ، يقينًا دې ته به رسيږي هغه عذاب چه د قوم ته رسيږي،

إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ الصُّبْحُ

يقينًا نېټه د عذاب د دوی وخت د صبا دے، آيا نه دے صبا

بِقَرِيبٍ ﴿٨١﴾ فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا

نژدے . نو هر کله چه راغے عذاب زموږ او ګرځوو موږ

---

ف۸۱ :- لَنْ يَّصِلُوْٓا إِلَيْكَ ، اشاره ده چه زموږ غم مه کوه موږ خو ملائک یو موږ ته هيڅ ضرر نشي راکولے ليکن تا ته هم تکليف نشي درکولے او په دغه وخت کښ جبرائيل عليه السلام وزر د هغوی په سترګو باندے راښکلو نو سترګے يې ړندے شوے لکه په سورة قمر ۳۷ آيت کښ دی.

وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ أَحَدٌ ، يعنی د مال او سامان وغيره پرواه دې نه کوی.

إِلَّا امْرَأَتَكَ ، دا استثناء ده د اهلک نه يعنی دا مه بوځه . او پدے ښځې باندے عذاب راتلل د وجے د شرک د هغے نه وو لکه چه په سورة تحريم کښ د دے خيانت ذکر کړے دے او مراد د خيانت نه شرک دے . نو معلومه شوه چه هغه قوم کښ شرک هم وو.

أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ، يعنی لوط عليه السلام ووئيل غواړم چه دوی ژر هلاک شی نو جواب اوشو چه صبا خو نژدے دے.

عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا

بره طرف دَ کلو لاندے دَ هغے او را اوورولو مونږ په دوی باندے

حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ مَّنضُودٍ ﴿۸۲﴾

کانړی دَ پخو شوؤ ته په اورکښ پرله پسے۔

مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ ۖ وَمَا هِيَ

نخو والا وؤ په نیز دَ رب ستا او نه دؤ هغه

مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ ﴿۸۳﴾ وَإِلَىٰ مَدْيَنَ

دَ ظالمانو نه لرے۔ اولیږلے وؤ مونږ مداین ته

أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا

ورور دَ هغوی شعیب علیه السلام، اُوئیل ده اے قومه زما بندګی خاص

اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ

کړئ الله تعالیٰ لره نشته تاسو لره هیڅ حقدار دَ بندګئ سوا دَ هغه نه،

۸۲۔ أَمْرُنَا، مراد دَ دینه وخت دَ عذاب یا نفس عذاب دے۔ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً، واؤ ترتیب ته فائده کوی نو کیدے شی چه کانړی وروړل مخکښ دی او الته اړول دَ کلو روستو وی یا اړول دَ کلو مخکښ وی او بیا باران دَ کانړو وی او الله تعالیٰ قادر دے چه کانړی ئے دَ اړولو نه روستو وروړلی وی لکه چه وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ، کښ دے ته اشاره ده۔

سِجِّيلٍ، خته ده چه پخه کړے شی په اُورکښ پدیکښ اشاره وه چه په دے عذاب کښ ماده دَ اُور وه او دا خرق عادت دے چه دَ آسمان دَ طرف نه خو اوبه راځی نه اور نو اُور رانلل ډیر نا اشنا کار دے۔

۸۳۔ مُّسَوَّمَةً، دلیلی شوی دی چه لیکلے شوے وؤ په هره کټه نوم دَ کافر۔

عِندَ رَبِّكَ، دلیل دے پدے باندے چه دا کټے دَ جنس دَ زمکے نه نه وے

وَلَا تَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ إِنِّيٓ

او مه کموئ پیمانه او تله یقینًا زهٔ

أَرٰىكُمْ بِخَيْرٍ وَّإِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ

وینم تاسو لره په مالدارئ کښ او یقینًا زهٔ بریږم په تاسو باندے

عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ﴿۸۴﴾ وَيٰقَوْمِ أَوْفُوا

دَ عذاب دَ ورځے راګیروونکے نه۔ او اے قومه زما پوره کوئ

الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ وَلَا تَبْخَسُوا

پیمانه او تله په انصاف سره او مه کموئ

وَمَا هِيَ مِنَ الظّٰلِمِينَ بِبَعِيدٍ، په دے جمله کښ درے توجیهات دی،
اول دا چه هِیَ ضمیر راجع دے کټو ته او ظٰلِمِیْنَ نه مراد قوم دَ لوط دے۔
دویم دا چه ظالمین نه مراد کفارِ مکه دی او دَ هغوی مِثل نور خلق دَ دے امت نه څوک چه عمل کوی عمل دَ قومِ لوط۔
دریمه توجیه دا ده چه ضمیر دَ هِیَ راجع دے کلو دَ قوم دَ لوط ته او مراد دَ ظالمین نه کفار مکه دی۔ یعنی کلی دَ قوم لوط دَ کفار مکه ته نزدے وو دَ بحرمیت سره دَ شام په لار کښ۔
۸۴ :- دا شپږمه واقعه ده چه دلیل نقلی دے په اوله دعوهٔ دَ دے سورت باندے۔ یعنی شعیب علیه السلام بیان کړے وه مسئله دَ توحید او منع کړی یے وو قوم لره دَ خیانت دَ مالونو نه۔
إِنِّيٓ أَرٰىكُمْ بِخَيْرٍ، یعنی مالداری او فراخی دَ رزق۔
يَوْمٍ مُّحِيطٍ، دا محیط اصل کښ صفت دَ عذاب دے لیکن ده باندے زیر دے دَ وجے دَ نزدیکت دَ یوم نه چه دیته جر للجوار وائی
په دے آیت کښ دلیل دے په دے خبره چه شرک کول پیمانه او تول کښ نقصان کول دواړه سببونه دَ عذاب دی۔

النَّاسَ اَشۡیَآءَهُمۡ وَلَا تَعۡثَوۡا فِی الۡاَرۡضِ
دَخلقو ته مالونه دَ هغوی او مه گرځئ په زمکه کښ
مُفۡسِدِیۡنَ ﴿۸۵﴾ بَقِیَّتُ اللّٰهِ خَیۡرٌ لَّکُمۡ
وړانے کوونکی۔ طاعت دَ الله تعالیٰ غوره دے تاسو لره
اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ ۚ۬ وَمَاۤ اَنَا عَلَیۡکُمۡ
که تاسو خبره منونکی یئ او زۀ نه یم په تاسو باندے
بِحَفِیۡظٍ ﴿۸۶﴾ قَالُوۡا یٰشُعَیۡبُ اَصَلٰوتُکَ
نګهبان رساتونکے۔ دوی اُوئیل اے شعیبه آیا ستا دین

۸۵۔ په دے آیت کښ درے حکمونه دی۔
اول امر دے په پوره کولو دَ پیمانه او دَ تول په انصاف سره او دا حکم بالقسط دَ لَا تَنۡقُصُوۡا نه روستو دَ دے دَپاره راوړو چه انسان مکلف نه دے په زیاتی کولو سره۔ بله وجه دَ دے دا ده چه په لَا تَنۡقُصُوۡا کښ نهی وه دَ دوی دَ قبیح عمل نه صراحةً نو پس دے کښ امر بالمعروف دے په باره دَ کیل او وزن کښ۔
دویم امر په دیکښ نهی دَ بخس نه ده او مراد دَ دینه هر قسم نقصان کول دی په مالونو کښ په غلا او په غصب او په ناجائزو حیلو سره۔
دریم امر منع دَ فساد نه او مراد دَ فساد نه منع کول دَ خلقو دی دَ تابعدارئ دَ شعیب علیه السلام نه او په آیت کښ اشاره ده چه نقصان په پیمانه کښ او تول کښ فساد کول دی۔
۸۶۔ بَقِیَّتُ اللّٰهِ خَیۡرٌ لَّکُمۡ، مراد دَ دینه جائز ګټه ده په تجارت کښ یا مراد دَ دینه طاعت دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دے اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ، دَ دے شرط اوله وجه دا ده چه ثواب دَ طاعت موقوف دے په ایمان باندے۔ دویمه وجه دا ده چه دَ دۀ قوم دعویدار دَ ایمان وو۔
بِحَفِیۡظٍ، بچ کوونکے دَ زوال دَ نعمتونو دَ الله تعالیٰ ستاسو نه په سبب دَ ګناهونو ستاسو۔

تَأْمُرُكَ أَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ

حکم کوی تا ته چه پرېږدو مونږ هغه طریقه چه بندګی کوله په هغې

اٰبَآؤُنَآ أَوْ أَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ أَمْوَالِنَا

مشرانو زمونږ (یا پرېږدو) کارکول په خپلو مالونو کښې

مَا نَشٰٓؤُا ۭ إِنَّكَ لَأَنْتَ الْحَلِيْمُ

په رضا خپله سره ، یقینًا ته (په خپل ګمان) صبر ناک

الرَّشِيْدُ ﴿٨٧﴾ قَالَ يٰقَوْمِ أَرَءَيْتُمْ

او هوښیار یې . اُوئیل دهٔ اے زما قومه فکر او کړئ تاسو

إِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ

که یم زهٔ په ښکاره خبره دَ طرفه دَ رب زما نه

وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ۭ

او را کړے وی ما ته دَ خپل طرف نه نعمت ښائسته ،

٨٧:۔ قَالُوْا يٰشُعَيْبُ أَصَلٰوتُكَ، صَلٰوۃٌ ، په معنیٰ دَ مونځ دے ځکه چه شعیب علیه السلام ډیر مونځ کښ اروو یا په معنیٰ دَ دین دے او دا وینا دَ دوی په طریقه دَ استهزاء سره ده۔

أَوْ أَنْ نَّفْعَلَ ، په دیکښې درے توجیه دی۔

اول دا چه دَ دینه مخکښې لفظ دَ تنها نا پټ دے۔

دویم دا چه لفظ دَ لَا مقدار دے۔

دریم دا چه دا عطف دے په ما یعبد یا ندے دَ نترک دَ لاندے داخل دے۔ مراد دَ دوی دا وو چه مالونه زمونږ خپل دی زمونږ اختیار دے که هر قسم تصرف پکښې کوؤ۔ او دا قول دَ هغو سرمایه دارو وی چه دَ دین الٰهی پابندی نه منی۔

إِنَّكَ لَأَنْتَ الْحَلِيْمُ الرَّشِيْدُ ، دا په طریقه دَ استهزاء سره دے یا په دیکښې لفظ دَ بزعمك پټ دے۔

وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَآ اَنْهٰكُمْ

او زهٔ نه غواړم چه لاړ شم په خلاف ستاسو هغه کار کولو ته چه تاسو منع کوم

عَنْهُ ؕ اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ مَا

دَ هغې نه، زهٔ نه غواړم مګر اصلاح کول ترڅو چه

اسْتَطَعْتُ ؕ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ

طاقت لرم، او نه دے زما مدد مګر په الله تعالىٰ دے،

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ﴿۸۸﴾

خاص په هغه باندے سپارلے دے ما ځان خپل او خاص هغه ته به زهٔ ورګرځم۔

وَيٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيْٓ

اوائے قومه زما سبب دِ جوړ نشي تاسو لره دشمنئ زما سره

۸۸:۔ رِزْقًا حَسَنًا، مراد دَ دينه وحی او نبوت دے يا مراد دَ دينه حلال رزق دے اشاره ده چه شعيب عليه السلام هم مالدار وُو او جزاء دَ شرط پټه ده چه نه دی جائز ما لره خيانت په وحی دَ الله تعالىٰ کښ۔

اَنْ اُخَالِفَكُمْ، مراد دَ دينه سبقيت (وړاندے والے) دے۔ او دَ لفظ دَ اِلٰى، نه روستو لفظ دَ ارتکاب پټ دے۔ يا اُخَالِفَكُمْ په خپله معنىٰ سره دے چه مخالفت کول دی او دَ هغې نه روستو لفظ دَ اُمِيْلُ مقدر دے۔ او پدے آيت کښ ښځه اداب دی دَ پاره دَ دعوت کوونکی دَ حق۔

وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ، معنىٰ دا چه په ټولو تکاليفو کښ زهٔ خاص الله تعالىٰ ته رجوع کوم، يا مراد دا دے چه الله تعالىٰ ته رجوع ده په آخرت کښ۔ او شربينی په تفسير کښ ليکلی دی چه نبی صلی الله عليه وسلم شعيب عليه السلام ذکر کړو نو او ئيل ئے چه دے خطيب الانبياء وُو ځکه چه قوم سره ئے ښائسته مراجع کړيده۔

أَنْ يُصِيبَكُمْ مِّثْلُ مَآ أَصَابَ قَوْمَ

دَ دے خبرے چه او رسیږي په تاسو ته عذاب په شان دَ هغه چه رسیدلے دے قوم

نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَالِحٍ ۚ

دَ نوح علیه السلام ته یا قوم دَ هود علیه السلام یا قوم دَ صالح علیه السلام ته،

وَمَا قَوْمُ لُوطٍ مِّنكُم بِبَعِيدٍ ﴿٨٩﴾

او نه دے قوم دَ لوط علیه السلام ستاسو نه څه لرے .

وَاسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا

او بخنه اوغواړئ دَ رب خپل نه بیا توبه اوباسئ

إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ وَدُودٌ ﴿٩٠﴾

هغه ته ، یقیناً رب زما رحم کوونکے دے مینه کوونکے دے.

۸۹: په دے آیت کښ تخویف دنیوی دے په ذکر دَ عذاب دَ تیر شوؤ قومونو، او په آیت کښ تقدیر دَ عبارت دے.

لَا يَحْمِلَنَّكُمْ شِقَاقِيْ عَلَى تَرْكِ الْإِيمَانِ فَيُصِيبَكُمْ، اِجْرَام معنیٰ ده په جرم باندے باعث کیدل،

بِبَعِيدٍ، یو معنیٰ دا ده چه قوم دَ لوط علیه السلام ستاسو نه په زمانه کښ لرے نه دے.

دویمه معنیٰ دا ده چه وطن دَ هغوی ستاسو نه لرے نه دے.

بِبَعِيدٍ، دا لفظ په قوم باندے حمل کیدل صحیح دے ځکه چه دا مذکر او مؤنث دواړو دَپاره استعمالیږي یا لفظ دَ اهلاک دَ قوم نه مخکښ مقدر دے.

۹۰: په دے آیت کښ ترغیب دے او آیت کښ لف نشر مرتب دے یعنی استغفار غواړئ نو الله تعالیٰ به درباندے رحم اوکړي او توبه اوباسئ نو الله تعالیٰ به درسره محبت او مینه اوکړي. حدیث شریف کښ راځي شعیب علیه السلام خطیب الانبیاء وو ځکه دَ هغه په دعوت کښ دَ دعوت ټولے طریقے شته.

قَالُوْا يٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيْرًا

دوی اُووئیل اے شعیب علیه السلام نه پوهیږو موږ په ډیرو

مِّمَّا تَقُوْلُ وَاِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْنَا

هغو خبرو چه ته یې وایې او یقینًا موږ خامخا وینو تا لره په موږ کښې

ضَعِيْفًا ۚ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنٰكَ

کمزورئ او که ستا خاندان نه وے نو موږ به ته سنګسار کړے وے

وَمَآ اَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيْزٍ ﴿۹۱﴾ قَالَ

او ته نه یې په موږ باندے عزتمند۔ ده اووئیل

سلف۔ پدے آیت کښې تکذیب دے دَ طرف دَ قوم نه په طریقه دَ توهین او دَ بے ادبئ سره۔ په څلورو طریقو سره یې دَ هغه توهین کړیدے۔
اوله جمله هم دَ دوی په طریقه دَ سپکوالی ده ځکه چه دوی خو دَ هغه په ژبه باندے پوهیدل او بیا هم وائي۔ مَا نَفْقَهُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَقُوْلُ۔
دویمه جمله کښې وَاِنَّا لَنَرٰىكَ فِيْنَا ضَعِيْفًا، دَ ضعیف نه مراد دادے چه ته یواځې یې ملګرے دے نشته یا دا چه دَ دنیا په مصلحت او سیاست نه پوهیږے نو مراد دَ ضعیف نه ضعیف العقل دے لکه چه اوس هم دنیا پرست خلق حق پرستو ته وائي چه تاسو په سیاست نه پوهیږئ۔
دریمه جمله کښې وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنٰكَ، مراد دا ده چه ستا خیلوان زموږ په دین باندے دی ځکه په موږ باندے عزتمند دی۔
څلورمه جمله کښې وَمَآ اَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيْزٍ، تصریح ده چه ته موږ باندے هیڅ ګران نه یې یعنی عزتمند نه یې۔

يٰقَوۡمِ اَرَهۡطِیۡۤ اَعَزُّ عَلَيۡكُمۡ مِّنَ اللّٰهِؕ

اے زما قومه آیا زما خاندان ډیر عزتمند دے تاسو باندے د الله تعالیٰ نه،

وَاتَّخَذۡتُمُوۡهُ وَرَآءَكُمۡ ظِهۡرِيًّا

او گرځولو تاسو هغه لره روستو د ځان نه شا ته غورځولے شوے

اِنَّ رَبِّیۡ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ مُحِيۡطٌ ﴿۹۲﴾

یقینًا رب زما په هغه کارونو چه تاسو یئے کوئ راګیر وونکے دے۔

وَيٰقَوۡمِ اعۡمَلُوۡا عَلٰى مَكَانَتِكُمۡ

او اے قومه زما کار کوئ په خپله طریقه (او طاقت) باندے

اِنِّیۡ عَامِلٌ ؕ سَوۡفَ تَعۡلَمُوۡنَ مَنۡ

یقینًا زه هم کار کوونکے یم، (د دعوت) زر دے چه تاسو به پوهه شئ چه څوک دے

يَّاۡتِيۡهِ عَذَابٌ يُّخۡزِيۡهِ وَمَنۡ هُوَ

چه راځی هغه ته عذاب چه رسوا به یئے کړی او څوک دے چه

كَاذِبٌ ؕ وَارۡتَقِبُوۡۤا اِنِّیۡ مَعَكُمۡ رَقِيۡبٌ ﴿۹۳﴾

دروغژن وی، او انتظار کوئ زه هم تاسو سره انتظار کوونکے یم۔

سلا۹۲:۔ دا زورنه ده د طرف د شعیب علیه السلام نه د قوم په دریمه جمله باندے یعنی باطل پرست قوم د الله تعالیٰ لحاظ نه کوی بلکه د مخلوق لحاظ کوی او د الله تعالیٰ نه نه یریږی او د خلقو نه یره کوی۔

ظِهۡرِيًّا، منسوب دے ظهر ته او ظاء، باندے زیر د وجے د نسبت نه دے او وَرَآءَكُمۡ، په ډیر روستو والی باندے دلالت کوی۔

سلا۹۳:۔ په دے آیت کښ اعلان براءت دے د قوم نه او تخویف د عذاب دے په حکیمانه طریقه سره۔

مَكَانَتِكُمۡ، مَكَانَة، هغه حالت ته وئیلے شی چه انسان په هغے کښ په کار کولو باندے طاقت لری۔

وَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا

او هر کله چه راغے حکم دَعذاب زمونږ بچ کړو مونږ شعیب علیه السلام

وَّالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ

او هغه چا لره چه ایمان ئے راوړے وو دَ هغه په ملګرتیا کښ په وجه دَ رحمت

مِّنَّا ۚ وَاَخَذَتِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوا

زمونږ او اونیوو ظالمانو لره

الصَّيْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِيْ دِيَارِهِمْ

هیبت ناکے چغے نو شول دوی په خپلو کورونو کښ

جٰثِمِيْنَ ﴿٩٤﴾ كَاَنْ لَّمْ يَغْنَوْا فِيْهَا ؕ

پړمخے پراته (مړی). رفنا شول) لکه چه نه وو دیره په هغے (ځائے) کښ ،

سَوْفَ ، په یکښ حرف دَ فاء نه دے ذکر کړے اشاره ده چه دا استیناف بیانی دے .

وَارْتَقِبُوْا ، ارتقاب کښ مبالغه ده په نسبت دَ انتظار ځکه چه په دے کښ معنیٰ دَ حفاظت هم مراد ده سره دَ انتظار نه .

۹۴ :- په دے آیت کښ ذکر دَ نجات دَ شعیب علیه السلام او دَ مؤمنانو دے او سبب دَ هغے رحمت دَ الله تعالیٰ دے او ذکر دَ عذاب دے په منکرینو باندے .

سوال :- قصه دَ عاد او مدین کښ . وَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا ، په واو سره په قصّه دَ ثمود او قوم لوط کښ په حرف فاء سره ولی ذکر کړی دی ؟

جواب :- په قصّه دَ ثمود او قوم لوط کښ ذکر دَ وعدے دَ عذاب تیر شوے دے یعنی وعد غیر مکذوب او موعد هم الصبح نو هغه په منزله دَ سبب دے نو ځکه فاء ئے ذکر کړے ده او په قصه دَ عاد او مدین کښ ذکر دَ وعدے مخکښ نشته .

أَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ

خبرشئ تباهي ده مدين والو لره لکه چه تباه شول

ثَمُودُ ﴿۹۵﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ

ثموديان ۔ او يقيناً اوليږلو موږ موسی علیه السلام لره

بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿۹۶﴾ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ

په معجزاتو خپلو او په دليل ښکاره سره ۔ فرعون ته

۹۵:۔ په دے آيت کښ تشبيه دَ عذاب دَ قوم دَ شعيب عليه السلام ده دَ عذاب دَ ثمود سره دَ وجے دَ مشابهت دَعذاب دَ صيحه او رجفه نه په دواړو باندے يا دَ دے وجے نه چه دواړه په عرب کښ داخل وو۔

سوال :۔ په آيت ۹۴ کښ اخذ مذکر دے او په دے آيت کښ اخذت مؤنث دے ؟

جواب :۔ مذکر دَ دے وجے نه دے چه صيحه په تاويل دَ صياح سره ده ۔ دَ ابن عباس رضی الله عنهما روايت دے چه صيحه دَ ثمود دَ زمکے نه وه او صيحه دَ قوم شعيب دَ آسمان نه وه ۔

۹۶، دَ دينه اوومه واقعه ده دَ موسیٰ عليه السلام مختصر ده ځکه چه په سورة يونس کښ په تفصيل سره بيان شوه دَ دے تعلق دَ سورة دَ دويمے دعوے سره دے يعنی شجاعت دَ موسیٰ عليه السلام په مقابله دَ فرعون کښ ياد کړے۔

بِآيَاتِنَا ، آيات ، معجزات دَ موسیٰ عليه السلام ۔

وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ، خاص معجزه دَ عصاء مراد ده يا هغه رعب مراد دے چه موسیٰ عليه السلام له ورکړے شوے وو او فرعون ترينه يره کوله ۔

وَمَلَإِيهٖ فَاتَّبَعُوْٓا اَمْرَ فِرْعَوْنَ

او مشرانو دَ قوم دَهغه ته نو روان شو هغوی په طریقه دَ فرعون پسے

وَمَآ اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيْدٍ ﴿۹۷﴾

او نه وه طریقه دَ فرعون هیڅ فائدے والا۔

يَقْدُمُ قَوْمَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

وړاندے به ځی دَ قوم خپل ته په ورځ دَ قیامت

فَاَوْرَدَهُمُ النَّارَ ؕ وَبِئْسَ الْوِرْدُ

نو ورننه باسی دوی اور ته او ناکاره ګودر دے دغه

الْمَوْرُوْدُ ﴿۹۸﴾ وَاُتْبِعُوْا فِیْ هٰذِهٖ

چه تلل ورته کیدے شی۔ او پر له پسے کیږی په دوی پاندے په دے دُنیا کښ

لَعْنَةً وَّيَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ بِئْسَ

لعنت او په ورځ دَ قیامت هم ناکاره دے

۹۷:۔ پدے آیت کښ دَ هغوی لوے خباثت ذکرشوے دے چه په مخالفت دَ موسیٰ علیه السلام کښ ئے دَ فرعون تابعداری کوله۔ مراد دَ اَمْرَ۔ نه طریقه او دین دے۔

وَمَآ اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيْدٍ، دا رد دے دَ قول دَ فرعون چه سورة مؤمن ۲۹ آیت کښ دے یعنی دعوی دَ رُشد او دَ ارشاد ئے کوله۔

۹۸:۔ دا تخویف اخروی دے۔ يَقْدُمُ قَوْمَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ، او جزاء دَ جنس دَ عمل نه وی یعنی کله چه دنیا کښ دَ قوم مقتدا وؤ نو په ورځ دَ قیامت به هم دا سے وی۔

اَلْوِرْدُ، ګودر دَ اوبو ته ورتلو شی لیکن جهنم ته ئے ورد تهکمًا وئیلے دے۔

الرِّفْدُ الْمَرْفُوْدُ ﴿٩٩﴾ ذٰلِكَ مِنْ اَنْبَآءِ

نعمت ور کړے شوے ۔ دا چه (ذکر شو) بعضے د خبرونو

الْقُرٰى نَقُصُّهٗ عَلَيْكَ مِنْهَا قَآئِمٌ

د کلو نه دی بیانوو موږ دا په تا باندے بعضے د هغے نه ولاړ (شته) او بعضے نه (رنګ) ځای

وَّحَصِيْدٌ ﴿١٠٠﴾ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ ظَلَمُوْٓا

او تور دل دول کړے شوی دی ۔ او ظلم نه دے کړے موږ په دوی باندے او لیکن ظلم کوؤ دوی

اَنْفُسَهُمْ فَمَآ اَغْنَتْ عَنْهُمْ اٰلِهَتُهُمُ

په خپلو ځانونو باندے نو لرے نه کړو د دوی نه مددګارانو د دوی

الَّتِيْ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ

کوم چه دوی رابلل سوا د الله تعالیٰ نه هیڅ (مصیبت)

لَّمَّا جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ ؕ وَمَا زَادُوْهُمْ

هر کله چه راغے عذاب د رب ستا ، او زیاتی نه کړو دوی لره

۹۹ :- دا د عذاب دنیوی او اخروی دواړو ذکر دے ۔ په دنیا کښ لعنت د طرف د الله تعالیٰ او د ملائیکو او د مؤمنانو د طرف نه دے او لعنت نه پس رفد تهکمًا ویلے دے ځکه چه رفد مدد ته ویلے شی او لعنت نه په اصل کښ رفد نشی ویلے ۔

۱۰۰ :- دا آیت متعلق دے د ټولو واقعاتو مخکښو سره ۔

قَآئِمٌ ، موجود دے لکه مصر د فرعونیانو او آبادئ د ثمودیانو په غرونو د مدائن صالح کښ او کلی د عادیانو او قوم لوط فنا شوی دی ۔

غَيْرَ تَتْبِيْبٍ ﴿۱۰۱﴾ وَكَذٰلِكَ اَخْذُ رَبِّكَ

سوا دَ تباهۍ ته. او دغه شان نيول دَ رب ستا دي

اِذَآ اَخَذَ الْقُرٰى وَهِىَ ظٰلِمَةٌ ؕ

هر کله چه نيسي کلو لره او هغوی ظلم کوونکي وي،

اِنَّ اَخْذَهٗٓ اَلِيْمٌ شَدِيْدٌ ﴿۱۰۲﴾ اِنَّ

يقيناً نيول دَ هغه درد ناک سخت دي. يقيناً

فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ

په دیکښې شته خامخا عبرت هغه چا لره چه يريږي دَ عذاب

الْاٰخِرَةِ ؕ ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوْعٌ ۙ

دَ آخرت نه، دا داسې ورځ ده چه جمع به کړيشي

لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُوْدٌ ﴿۱۰۳﴾

دپاره ئې ټول خلق او دا داسې ورځ ده چه گواهي به اوکړيشي په هغې کښې.

سلنا :- دا آيت هم متعلق دے دَ مخکنو واقعاتو سره او په دیکښې ئې سبب دَعذاب دَ هغوی ذکر کړيدے يعني شرک او رد دے په شرک دَ تصرف باندے يعني دغه ټولو قومونو دَ الله تعالیٰ نه سوا نور معبودان او واکداران نيولي وو ليکن دَعذاب په وخت کښې هغوی دَ دوی هيڅ امداد اونه کړو بلکه دَ هغوی دَ دے نه تباهي ئې زياته شوه.

وَمَا زَادُوْهُمْ، سبب دَ دے زيادت عبادت دَ دغه معبودانو وو او معبودانو ته نسبت په زادوهم کښې نسبت مجازي دے. او داسې په سورة احقاف سلا آيت ۲۸ کښې راځي.

سلا ۱۰۲ :- په دے آيت کښې تخويف دَموجودو خلقو ته او سبب دَعذاب ئې ذکر کړے دے چه هغه ظلم دے او مراد دَ هغې نه شرک او کفر دے.

سلا ۱۰۳ :- په دیکښې اشاره ده چه خوف دَعذاب دَ آخرت سبب دَعبرت

وَمَا نُؤَخِّرُهٗٓ اِلَّا لِاَجَلٍ مَّعْدُوْدٍ ﴿۱۰۴﴾

او نه روستو کوو دا مګر نیټې لره پورې.

يَوْمَ يَاْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ۚ

هغه ورځ چه راشي (رنیټه) خبرې به نه شي کولے هیڅ نفس مګر په حکم د الله تعالیٰ سره

فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَّسَعِيْدٌ ﴿۱۰۵﴾ فَاَمَّا

نو څوک به د دوی نه بد بخت وي او څوک به نیک بخت وي. نو

الَّذِيْنَ شَقُوْا فَفِي النَّارِ لَهُمْ

هغه کسان چه بد بخت وي نو دوی به په اور کښ وي دوی لره

فِيْهَا زَفِيْرٌ وَّشَهِيْقٌ ﴿۱۰۶﴾ خٰلِدِيْنَ

په په هغې کښ اسویلي او هیتر اروي - همیشه به وي دوی

اخستلو دے د دنیا د عذابونو نه او په یکښ انتقال دے ذکر د تخویف اخروي ته، په دے آیت کښ د آخرت دوه نومونه ذکر کړے دي اول یوم مجموع، دویم یوم مشهود یعني شهادتونه به په هغے کښ قائم شي نو په اصل کښ مشهود فیه دے.

۱۰۴:- اشاره ده چه د قیامت راتلل د الله تعالیٰ په اختیار کښ دي او د هغې د پاره اجل مقرر دے.

۱۰۵:- په دے آیت کښ ذکر د هیبت د قیامت دے او دا سے په سورة نباء ۳۸ کښ هم ذکر دے - او تقسیم د خلقو دے دوه قسمونو ته اول شَقِيٌّ، او دا دوه قسمه دے کافر مشرک هغه اعلیٰ شقی دے او مؤمن ګنهګار هغه ادنیٰ شقی دے - او دویم سَعِيْدٌ، نیک بخت خلق.

۱۰۶:- فَاَمَّا الَّذِيْنَ شَقُوْا فَفِي النَّارِ...، په یکښ تخویف اخروي دے پورے دلے ته،

شَقِيٌّ، هغه دے چه نافرماني د الله تعالیٰ او د رسول نه يې کړے وي

فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ

په هغې کښې څو پورې چه وي آسمانونه او زمکه (دَ هغه وخت)

اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ؕ اِنَّ رَبَّكَ

مګر هغه کسان چه اوغواړي رب ستا، یقیناً ستا رب

فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ﴿۱۰۷﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ

کوُونکے دَ هغه کار دے چه اوغواړي۔ او هغه کسان

سُعِدُوْا فَفِي الْجَنَّةِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا

چه نیک بخت کړے شوي دي نو (دَ اول نه) په داخلیږي په جنت کښې همیشه به وي په هغې کښې

مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ اِلَّا

تر څو پورے چه وي آسمانونه او زمکه (دَ هغه وخت) مګر

یا فاسق وي یا مشرک او کافر وي۔

زَفِيْرٌ، ساه راښکلو ته وائي په وخت دَ غم او دَ افسوس کښې او شَهِيْقٌ، دغه ساه ویستلو ته وائي چه په زور سره وي۔ او دا دواړه آوازونه دَ خرو په آواز کښې ښکاره موجود وي۔ دا رنګ زفیر آواز دَ مرئ دے او شهیق آواز دَ سینې دے او زفیر سخت آواز دے او شهیق په دمه آواز دے او دا ټول دلالت کوي په ډیر غم باندے۔

مسئله:- آسمانونه او زمکه دَ قیامت مراد دي په دلیل دَ آیت سورة ابراهیم ۴۸ او هغه آسمانونه او زمکه همیشه به وي۔

اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ، نه مراد مؤمنان ګنهګار دي چه معاف نه شي، او جهنم ته به داخل کړي شي وخت دَ پاره او بیا به بیئے را اوباسي نو دا دَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا، نه استثناء ده۔ یا دَ دینه مراد نور قسمونه دَ عذاب دَ جهنم دي سوا دَ اور نه لکه زمهریر او خوراک وڅښاک په جهنم کښې۔ نو دا دَ النار نه استثناء ده۔

اِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ، کښې اشاره ده چه په الله تعالیٰ څوک

مَا شَآءَ رَبُّكَ ؕ عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوْذٍ ﴿۱۰۸﴾

هغه کسان چه او غواړی ستا رب، بخشش دے بے انتها۔

فَلَا تَكُ فِيْ مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ

تو مه کیږه په شک کښ د وجے د هغے نه چه بندګی کوی

هٰٓؤُلَآءِ ؕ مَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا كَمَا يَعْبُدُ

دا کسان، دوی بندګی نه کوی مګر په شان د هغے چه بندګی کوله

اٰبَآؤُهُمْ مِّنْ قَبْلُ ؕ وَاِنَّا لَمُوَفُّوْهُمْ

مشرانو د دوی د دینه مخکښ، او یقیناً موږ به پوره ورکوؤ دوی ته

اعتراض نشی کولے او نه د هغه د ارادے نه خلاف کیدے شی۔

۱۰۸:- پدے آیت کښ بشارت دے۔ سُعِدُوْا، د مجهول په صیغه سره اشاره ده چه سعادت صرف په فضل د الله تعالیٰ سره حاصلیږی۔

اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ، د دینه مراد هغه ګنهګار مؤمنان دی چه معاف نکړے شی نو هغوی به د ابتداء نه جنت ته داخل نکړے شی څه وخت روستو به ئے داخل کړی نو دا استثناء ده د دے لفظ نه فَفِی الْجَنَّةِ، ای يَدْخُلُوْنَ فِی الْجَنَّةِ اِبْتِدَاءً اِلَّا الْمُؤْمِنِيْنَ الْعُصَاةَ۔ یعنی نیک بخت خلق به د اول سر نه جنت ته داخلیږی مګر ګنهګار مؤمنان۔

عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوْذٍ، کښ اشاره ده چه د اِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ دا مطلب نه دے چه جنت نه د داخلیدو نه روستو به بیا راوځی یعنی څوک چه یو ځل جنت ته داخل شی نو بیا به تر ینه بهر نه راوځی۔ او دا ښکاره دلیل دے چه جنت او اهل جنت باندے فنا نه راځی۔ او دا حکم د جهنم والو هم دے۔

نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوصٍ ﴿۱۰۹﴾ وَلَقَدْ

برخه دَ دوی چه هیڅ نیمګړے به نه وي . او یقینًا

اٰتَيْنَا مُوسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ

ورکړے وو مونږ موسٰی علیه السلام ته کتاب (تورات) نو اختلاف اوکړے شو

فِيهِ ۗ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ

په هغې کښ، او که نه وے تیبتیه (دَ عذاب) چه مخکښ مقرر شوے وه دَ طرف دَ

رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۚ وَإِنَّهُمْ لَفِي

رب ستا نه خامخا فیصله به شوے وه په مینځ دَ دوی کښ، او یقینًا دوی خامخا په

شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴿۱۱۰﴾ وَإِنَّ كُلًّا

شک دی دَ دینه چه کلک شک دے . او یقینًا هر یو دَ دوینه

۱۰۹ :- هرکله چه ویره دَ مشرکینو او بشارت دَ مؤمنینو ذکر شو نو دَ هغه نتیجه دا شوه چه شرک باطل دے دَ هغې په بطلان کښ شک مه کوئ - دَ آیت دوه مطلبه دی . یو دا چه په توحید کښ شک مه کوه دَ وجے دَ عبادت دَ مشرکینو غیر الله لره ځکه چه دَ دوی دا عبادت دَ دوی دَ مشرانو په شان بے دلیله دے صرف دَ تقلید په طور سره دے نو عبارت داسے دے (فَلَا تَكُ فِيْ مِرْيَةٍ فِي التَّوْحِيْدِ مِنْ اَجْلِ مَا يَعْبُدُ هٰؤُلَاۤءِ) -

دویم دا چه شک مه کوه په بطلان دَ عبادت کولو دَ غیر الله کښ نو مِمَّا په معنیٰ فِيمَا سره دے او مَا مصدریه دے -

وَاِنَّا لَمُوَفُّوْهُمْ ، دا جواب دَ سوال دے هرکله چه دا شرک باطل او بے دلیله کار دے نو دے مشرکانو ته به روزی او مالونه وغیره ته ملاوین لے ؟

جواب :- په دنیا کښ دَ دوی حصه ده په طریقه دَ ابتلاء به دوی ته ورکیدے شی یا دَ نصیب نه مراد حصه دَ دوی ده دَ عذاب نه -

۱۱۰ :- دا جواب دَ بل سوال دے چه دا شرک باطل او بے دلیله دے

لَمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ

هر کله (چه پوره نه به کړیشي په ورځ د قیامت) نو پوره به ورکړي دوی ته رب ستا (بدله)

أَعْمَالَهُمْ ۚ إِنَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ

د عملونو د دوی، یقیناً الله تعالیٰ د دوی په عملونو

خَبِيرٌ ﴿١١١﴾ فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ

خبردار دے۔ ټینګ اوسه (په دین) لکه څنګه چه حکم شوے دے تا ته

وَمَنْ تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا ۚ

او هغه څوک (هم) چه ګرځیدلي دي (الله تعالیٰ ته) ستا په تابعداري کښ او د حد نه مه تیریږئ

نو دوی ته عذاب ولے نه راځي ؟

د جواب حاصل دا دے چه دا سے بني اسرائیلو په کتاب د الله کښ اختلاف کړے وو څو مشرک شول او څوک موحد لیکن عذاب تر پنه روستو شوے وو د وجے د حکمت الهیه نه۔

وَإِنَّهُمْ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ۔ یو معنیٰ دا ده چه دغه بني اسرائیل د وجے د اختلاف نه په خپل کتاب کښے شکیان شول۔

دویمه معنیٰ دا ده چه دغه بني اسرائیل د دے اختلاف د وجے نه په قرآن کښ شک کوونکي شول، یعني اختلاف سبب د شک دے۔

سلا :- دا جواب د یل سوال دے هر کله چه دوی له عذاب په دنیا کښے ورنکړے شو نو آیا دوی به معاف وي ؟

جواب :- په ورځ د آخرت به هر یو له پوره عذاب او جزاء ورکیدیشي۔ (ترکیب) کلاً، اسم دے د اِنَّ د پاره او لَمَّا شرطیه دے شرط ئے پټ دے یعني یُبْعَثُنَّ او لَيُوَفِّيَنَّهُمْ ئے جزاء ده شرط سره د جزاء نه خبر دے د اِن د پاره۔ او په یل قراءت کښ لَمًّا په تنوین سره دے په معنیٰ د جمیعًا نو تاکید دے د کلاً او لیوفینهم خبر دے د اِنّ د پاره۔

إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١٢﴾

یقیناً الله تعالیٰ په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ لیدونکے دے۔

وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا

او مه کږیږئ هغه کسانو ته چه ظلم ئې کړے دے

فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن

نو او به رسیږی تاسو ته اور او نه به وی تاسو لره سوا

۱۱۲:۔ خلاصه: دَ دے آیت نه تر آخره دَ سورت پوره دریم باب دے خلاصه ئې دا ده چه په یکښې تشجیع او تسلی ده رسول صلی الله علیه وسلم او دعوت کوونکو ته په پنځو امورو سره دے او امر او دوه نواهی، بیا سبب دَ عذاب بیان کړے شو، بیا حکم دَ عذاب دَ روستو کیدلو بیان شو بیا زجر او تخویف دے، بیا فائدے دَ قصو دَ انبیاؤ بیان شوے ده بیا براءت او آخری آیت خلاصه دَ سورت ده۔

تفسیر:۔ په دے آیت کښې اول امر دَ استقامت دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او بیا امت ته او بیا نهی ده دَ طغیان نه ځکه چه طغیان منافی دَ استقامت دے۔ او استقامت دَ الله تعالیٰ په ټولو حکمونو باندے پوره عمل کول دی په داسے طریقه چه دَ هغے نه یو خوا بل خوا نه اوړی،

كَمَا أُمِرْتَ، کښې دا فائده ده چه استقامت دَ الله تعالیٰ دَ امر په مطابق پکار دے دَ پاره دَ دے چه په شرک او بدعت او ناروا کارونو پوخ او دریدل دَ دینه بهر شی هغه استقامت شرعیه نه دے هغے ته ضد او تعصب ویلے شی۔ او استقامت شرعی ډیر ګران کار دے دَ دے وجے نه دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه (شیبتنی سورة هود واخواتها) زه سورة هود او دَ دے پشان سورتونو بوډا کړم۔

فائده:۔ هر کله چه صحابه او نورا امتیان په استقامت کښې نبی ته

دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ اَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنْصَرُوْنَ ﴿۱۱۳﴾

دَ الله تعالىٰ نه هيڅوک. بيا کوم ملګري دوستان بيا به مدد نشي کولې تاسو سره.

وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا

او پابندي کوه دَ مونځونو په دواړه طرفونو دَ ورځې کښې او په اولنې ساعتونو

مِّنَ الَّيْلِ ؕ اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ

دَ شپې کښې، يقيناً ښه عملونه بوځي

السَّيِّاٰتِ ؕ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ ﴿۱۱۴﴾

بدو لره، دا نصيحت دے دَ پاره دَ نصيحت قبلوونکو.

نشي رسيدلے دَ دے وجے نه هغه يې په طريقه دَ عطف سره ذکر کړل او طغيان نه مراد دَ حد شرعي نه تجاوز کول دي او هغه په شرک او په بدعت او ظلم سره کيږي نو دَ هغې نه يې منع اوکړه.

۱۱۳:- پدے آيت کښې په استقامت پاندے دَ باقي پاتې کيدلو دَ پاره منع اوکړه دَ ميلان کولو نه ظالمانو ته او دا دريم ادب دَ داعي دے او دَ دينه مراد دا دے چه مشرکانو مبتدعينو او دهريانو او دنيا پرستو اشرارو سره شرکت په مجلسونو کښې او مخالطت او دوستانه مه کوئ دا سبب دَ عذاب الٰهي دے.

وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا، رکون، نه مراد دا دے چه ظالمانو طرف ته داسے مائيل شي چه دَ هغوي دَ ګناه اثر په تا کښې ښکاره شي او دَ هغوي دَ ګناه تائيد اوکړے شي ځکه چه رکون دلالت کوي په تقويت پاندے.

۱۱۴:- پدے آيت کښې امر دَ مونځونو کولو دے په پنځه اوقاتو کښې او دَ هغې دوه فائدے يې بيان کړيدي او دا څلورم ادب دے.

طَرَفَيِ النَّهَارِ، طرفين، دَ ورځې نه مراد صبا او ماز يګر دے او ماسپخين پکښې هم داخل دے ځکه چه طرف دلته نصف ته وئيلے کيدے شي. او زُلَفًا، کښې ماښام او ماسخوتن داخل دي.

وَاصْبِرْ فَإِنَّ اللهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ
او صبر کوه تو یقیناً الله تعالی نه بربادوی ثواب
الْمُحْسِنِينَ ﴿۱۱۵﴾ فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُونِ
د خائسته عمل کوؤنکو. نو ولې نه وؤ د هغه پیړو نه
مِنْ قَبْلِكُمْ أُولُوا بَقِيَّةٍ يَنْهَوْنَ
چه ستاسو نه مخکښ وے پوهے والا خلق چه منع ئے کوله
عَنِ الْفَسَادِ فِي الْأَرْضِ إِلَّا قَلِيلًا
د گناهونو نه په زمکه کښ مګر لږ کسان

زلف نزدیکت ته وائی یعنی هغه حصّے د شپے چه ورځے ته نزدے وی اول دا چه نمر پټ شی هغه ماښام دے دویم دا چه شفق پټ شی دا ماسخوتن دے۔

إِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ، په دیکښ اوله فائده ذکر کوی هغه دا چه مونځونه په خائسته طریقه کولو سره گناهونه معاف کوی او د گناهونو نه بچ کول کوی او د بدو صفتونو او نومونو نه ساتنه کوی۔

ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ، دا دویمه فائده ده چه مونځ کوئ دا ذکر دے او د نصیحت د پاره مجموعه ده او د یاداشت د الله تعالی د پاره ذریعه ده او ذَٰلِكَ، ماقبل ته په تاویل د مذکورسره راجع دے۔

مسئله:۔ په دے آیت کښ پنځم ادب ذکر دے او هرکله چه دا ټول صفتونه په انسان کښ جمع شی نو هغه ته محسن وائی۔ د دے وجے نه په المحسنین سره ئے ختم کړو۔

مِّمَّنْ أَنْجَيْنَا مِنْهُمْ ۚ وَاتَّبَعَ

دَ هغه کسانو نه چه بچ کړل مونږ هغوی دَ دوی نه ، او او لګيدل

الَّذِينَ ظَلَمُوا مَا أُتْرِفُوا

هغه کسان چه ظلم ئے کړے وو (په مینه) دَ هغه مال کښ چه مست کړی شوی وو

فِيهِ وَكَانُوا مُجْرِمِينَ ﴿١١٦﴾ وَمَا كَانَ

په هغے کښ او دوی وو جرمونه کوونکی . او نه دے

رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرَىٰ بِظُلْمٍ

ستا رب چه هلاک کړی کلو والا په وجه دَ ظلم دَ هغوی

وَأَهْلُهَا مُصْلِحُونَ ﴿١١٧﴾ وَلَوْ شَاءَ

او حال دا چه اوسيدونکی دَ هغے اصلاح کوونکی وی - او که غو ښتلے

۱۱۶ ۔ هر کله چه تیر شوے آیاتونو کښ دَ دعوت کوونکی ذمه واری ئے ذکر کړه نو په دے آیت کښ دَ دعوت دَ پریخودلو ناکاره نتیجه ذکر کوی چه سبب دَ عذاب دے یعنی په تیر شوے قومونو عذابونه دَ دے وجے نه راغلل چه دَ هغوی هوښیارو خلقو نهی عن المنکر نه کوله او کومو لږو کسانو چه کوله هغه الله تعالٰی دَ دوی نه بهر ویستل دَ عذاب نه وړاندے۔
أُولُوا بَقِيَّةٍ ، په معنٰی دَ خیر او فضل (علم) او اصحاب الرای دے۔
وَاتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا ، دا دویم سبب دَ عذاب دے۔
أُتْرِفُوا ، اتراف ، په مالداریٔ کښ دَ حد نه ور تیریدلو ته وئیلے شی مراد تری نه دُنیا پرستی او تکبر کول دی او هغه سبب دے دَ پاره دَ جرمونو۔
۱۱۷ ۔ په دے آیت کښ ئے دَ دعوت کولو فائده ذکر کړه څکه چه مصلحین نه مراد دعوت دَ حق کوونکی دی یعنی عادت الهیه جاری دے چه څو پورے په یو کلی کښ دعوت کوونکی موجود وی نو هغه کلی له دَ هغوی دَ شرک وغیره په وجه باندے عذاب نه ورکوی داسے په سورة انعام ۱۳۱ کښ هم تیر شوی دی۔

رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَّاحِدَةً

ستا رب خامخا گرځولے په يو دين خلقو لره يوه دله

وَّلَا يَزَالُوْنَ مُخْتَلِفِيْنَ ﴿۱۱۸﴾ إِلَّا مَنْ

او هميشه به دوی اختلاف کوونکی وی۔ مګر هغه څوک

رَّحِمَ رَبُّكَ ؕ وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ ؕ

چه ستا رب په هغوی رحم وکړی او د دے دپاره ئے دوی پيدا کړی دی،

وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَئَنَّ

او پوره شويده فيصله د رب ستا خامخا به ډک کړم

جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِيْنَ ﴿۱۱۹﴾

جهنم لره د پيرياتو نه او انسانانو نه په يو ځائے۔

نو د وَأَهْلُهَا مُصْلِحُوْنَ، نه مراد بعض اهل دی يعنی دعوت کوونکی د حق او بعضو مفسرينو ليکلی دی چه مراد د اهل نه کافران دی او مراد مصلحون نه اصلاح کول د معاملاتو دی يعنی دا چه صرف په شرک باندے عذاب استيصالی نه ورکوی تر دے پورے چه هغوی ظلمونه شروع کړی۔

۱۱۸:- په دے آيت کښ اشاره ده دے ته چه د مصلحينو کار د الله تعالیٰ د مشيت نه يغير فائده نشی ورکولے هر کله چه الله تعالیٰ اراده نه ده کړے چه ټول خلق په يو دين جمع شی د دے وجے نه خلق په مختلفو دينونو او ډلو کښ تقسيم شوی دی او مراد د دے اختلاف نه اختلاف د باطل پرستو دے په کودتی کښ چه هره ډله په باطله باندے وی۔

۱۱۹:- د دينه مراد مؤمنان مؤحدين دی چه په دوی کښ اختلاف د عقيدے او اصولی اختلاف نشته او فرعی اختلاف په حقيقت کښ اختلاف نه دے بلکه وسعت او فراخی ده۔

إِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ، مراد د رحمت نه توفيق د هدايت او د

وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنْبَآءِ الرُّسُلِ

او هر يو لره بيانوؤ موږ په تا باندے دَ خبرونو دَ رسولانو نه.

مَا نُثَبِّتُ بِهٖ فُؤَادَكَ ۚ وَجَآءَكَ

هغه چه کلکوؤ په هغے سره زړه ستا او راغلے دے تا ته

فِىْ هٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَّذِكْرٰى

په دے قصّو کښ حق بيان او نصيحت او ياداشت

لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۰﴾ وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ

دَ پاره دَ مؤمنانو. او اوايه هغه کسانو ته

حق دے.

وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ، اشاره ده اختلاف او رحمت دواړو ته يعنى څوک يے دَ اختلاف دَ پاره او څوک يے دَ رحمت دَ پاره پيدا کړيدى او په دے کښ اشاره ده تقدير ته.

لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ، يعنى بغير دَ جن او انس نه په کښ بل څه نه اچوى.

لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ، دا تفسير دَ کلمة دے او دا دليل دے چه دَ جهنم او دَ جنت دَ پاره دَ انسانانو او دَ جنانو تقدير دَ وړاندے نه شوے دے او په دے کښ ډير احاديث صحيح راغلى دى.

او مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ، نه مراد هغه مختلفين دى چه په حق کښ اختلاف کړے دے او هر يو په باطل دين باندے دے.

ښلا.- هر کله چه مخکښ آيت کښ اختلاف او بيا تخويف بيان شو نو په دے آيت کښ دفع دَ عذر دَ خلقو کوى په راليږلو دَ رسولانو سره او په دے آيت کښ يے دَ قِصّو دَ رسولانو څلور فائدے بيان کړى دى.

مَا نُثَبِّتُ بِهٖ فُؤَادَكَ، اوّل تثبيت دَ زړه په ذکر دَ مصائبو دَ انبياؤ سره.

لَا يُؤْمِنُوْنَ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ط

چه ایمان نه لري عمل کوئ تاسو په خپله طریقه باندے،

اِنَّا عٰمِلُوْنَ ﴿١٢١﴾ وَانْتَظِرُوْا ج اِنَّا

یقینًا مونږ هم عمل کوؤ په خپلے طریقے سره. او انتظار کوئ مونږ

مُنْتَظِرُوْنَ ﴿١٢٢﴾ وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ

هم انتظار کوؤنکی یو. اوخاص الله تعالٰی لره دے (علم او اختیار) د پټو څیزونو د آسمانونو

وَالْاَرْضِ وَاِلَيْهِ يُرْجَعُ الْاَمْرُ

او د زمکے اوخاص هغه ته کرځولے به شی کارونه

كُلُّهٗ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ط

ټول نو بندګی کوه خاص د الله تعالٰی او ځان اوسپاره په هغه باندے،

دویم. وَجَآءَكَ فِيْ هٰذِهِ الْحَقُّ، یعنی توحید او صحیح عقیدے او اعمال.
دریم وَمَوْعِظَةٌ، یعنی تخویف او زجر د منهیا تو نه.
څلورم ذِكْرٰى، یعنی آداب او طریقے د دعوت کولو او نور نصیحتونه اخستل
او هر کله چه په دے سورت کښ دا قصے تیرے شوے وے نو ځکه یئے دلته
د هغے فائدے ذکر کړے.
١٢١. ١٢٢. روستو د تفصیلی بیان نه او د فائدو د قصو نه اعلان د
براءت دے.
مَكَانَتِكُمْ. طریقے ته وائی یا تمکن او طاقت ته وئیلے شی.
وَانْتَظِرُوْا. مراد د دینه انتظار د عاقبت د هر عمل دے.

وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿۱۲۳﴾ ع

او نه دے ستا رب غافل دَ هغه عملونو نه چه تاسو ئې کوئ۔

س۱۲۳۔ په دے آیت کښ اعاده دَ مقاصدو دَ دے شورت ده په اولو دوارو جملو کښ رد دَ شرک فی العلم او شرک فی التصرف دے په دریمه جمله کښ رد دَ شرک فی العبادت دے په څلورمه جمله کښ تشجیع ده او په پنځمه جمله کښ تسلی ده۔

(تمت سورة هود)

سورة یوسف مکیة | بسم الله الرحمن الرحیم | ایاتها ۱۱۱ رکوعاتها ۱۲

خاص په نوم د الله تعالی امداد غواړو په شروع کولو کښ چه رحمن او رحیم دے

الٓر قف تلک ایت الکتب

الله تعالی د دے په مراد ښه پوهیږی ، دا آیتونه د دا سے کتاب دی

بسم الله الرحمن الرحیم

سورة یوسف

ربط ۱ :- ربط د سورة یوسف د سورة هود سره دا دے چه په سورة هود کښ ذکر د مصیبتونو د پردو خلقو د طرف نه په دعوت کوؤنکی د توحید باندے وؤ- او په دے سورت کښ ذکر د مصیبتونو دے د ورونړو د طرف نه په داعی د توحید باندے۔

ربط ۲ :- دا سورت تفصیل او تفسیر دے د آخری آیت د سورة هود په ذکر د حالاتو د یعقوب علیه السلام او یوسف علیه السلام او ورونړه د هغه۔

دعوی د سورت :- د دے سورت درے دعوے دی۔ اوله دعوی دا چه ثابتول د توحید دی په پنځو طریقو سره۔

اوله طریقه :- رد د شرک په علم کښ ، یعنی چه یعقوب علیه السلام عالم نه وؤ د ځامنو په مکرونو او نه په حال د یوسف علیه السلام په کوهی کښ ، او نه په جیل کښ ، او نه په حال د عزت او اقتدار کښ د ۸ آیت نه تر ۱۸ پورے ۔ او په ۹۵ آیت او ۸۷ آیت کښ۔

دویمه طریقه :- د رد د شرک دے په تصرف کښ چه یعقوب علیه السلام هیڅ ضرر نه شو دفع کولے نه د یوسف علیه السلام نه او نه د نورو ځامنو نه ۱۸ ، ۲۱ ، ۳۹ ، ۴۰ ، ۶۷ ، ۱۰۱ ۔

دریمه طریقه رد د شرک دے په بندګۍ کښ ۴۰ آیت ۔

څلورمه طریقه رد دے په ټولو اقسامو د شرک باندے ۱۰۶ ، ۱۰۸ ۔

الْمُبِيْنِ ① اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا

چه صفا صفا بیان کوی. یقینًا مونږ نازل کړی دے دا کتاب په واضحه ژبه

لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ② نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ

دپاره ددے چه تاسو پوهه شئ. مونږ بیانوو په تا باندے

پنځمه طریقه ذکر دَ پنځلس اسماء حسنیٰ دَ الله تعالیٰ دے.

دویمه دعوی :- رښتونوالے دَ رسول ثابتول دی په دوؤ طریقو سره.

اوله طریقه، په ذکر دَ وحی سره دے نبی علیه السلام ته ۳ آیت کښ.

دویمه طریقه داچه نبی علیه السلام حاضر ؤ طرته ووَ ۱۰۲ آیت کښ.

دریمه دعوی :- تسلی ورکول دی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په بیان دَ صبر دَ یعقوب علیه السلام او دَ یوسف علیه السلام په تفصیل دَ دے واقعے سره او په آیت ۱۱۱ کښ هم.

خلاصه دَ سورت :- تمهید تر اووم آیت (۷) پورے دے اول رښتونوالے دَ قرآن دپاره دَ ترغیب ۱، ۲ کښ. دویم ذکر دَ صدق دَ رسول ۳ کښ. او دریم ذکر دَ سبب دَ واقعے دَ یوسف علیه السلام دے چه هغه خوب لیدل دَ هغه دی او دَ پلار دَ طرف نه دَ هغے ادب او دَ هغے نتیجے ذکر کول دی په ۴، ۵ او ۶ کښ.

تفسیر :- ۱ :- په دے آیت کښ بیان دَ صدق دَ کتاب الله دے، او مراد په اَلْمُبِيْنِ، سره دا دے چه پخپله هم واضح دے او وضاحت کوونکے دے دَ حق او دَ باطل، او تِلْكَ، کښ اشاره ده دے سورت ته.

۲ :- په دے آیت کښ هم ذکر دَ صدق دَ قرآن دے په دریو طریقو سره. اول داچه الله تعالیٰ نازل کړی دے اَنْزَلْنٰهُ. دویم داچه جمع کړے شوی دے قُرْءٰنًا، ځکه چه قرآن مجموع ته وائی او دا رنګ لوستلو دپاره دے او دریم داچه واضح بیان والا دے عَرَبِيًّا، ځکه چه عربی په اصل کښ واضح ته وائی او په دے

أَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ

دیر ښائسته بیان په دے وجه چه موږ وحی شروع کړیده تا ته

هٰذَا الْقُرْاٰنَ ۖ وَاِنْ كُنْتَ مِنْ قَبْلِهٖ

دَ دے قرآن اګرچه ته وے دَ دے دَ راتلو نه مخکښ

لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ ۝۳ اِذْ قَالَ يُوْسُفُ

دَ بے خبرو نه ۔ هرکله چه اُوئیل یوسف علیه السلام

آیت کښ ذکر دَ فائدے دَ انزال دَ قرآن دے په لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ، سره، مراد دَ دے دا دے چه ځان پوهه کړئ په حقانیت دَ قرآن او په معنیٰ دَ ده او په حکمتونو دَ ده ۔

قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا، دا دلیل دے پدے خبره باندے چه په قرآن کښ عجمی الفاظ نشته ځکه که عجمی پکښ وے نو معلومه به شی چه الله تعالیٰ پدغه ځائے کښ دَ عربی لفظ نه عاجز وو او دَ عجز نه خو الله تعالیٰ پاک دے او کوم چه دَ ابن عباس رضی الله عنهما روایت دے چه قسطاس، سجل وغیره الفاظ عجمی دی دَ هغے مقصد دا دے چه دا الفاظ دَ عربو نه عجمو زده کړل او بیا عربو نه استعمالول او په عجمو کښ مشهور شول ۔

ع۳ ۔ پدے آیت کښ بیان دَ صدق دَ رسول دے او دیته احسن القصص پدے وجه وائی چه پدے قصّه کښ حکمتونه او احکام او مسائل بے شماره دی ۔ او دَ بعضے تفصیل دا دے ۔

دَ عقیدے مسائل پکښ دا دی ۔ ع۱ انبیاء علیهم السلام غیب دان نه دی ۔ ع۲ دوی دَ خپل اولاد نه او دَ بل چا نه هم هیڅ تکلیف نشی دفع کولے ۔ ع۳ دَ الله تعالیٰ دَ قضاؤ دَ قدرت څوک مقابله نشی کولے ۔ ع۴ دَ عام مشرکینو تردید په رد دَ شرک فی العبادت ع۵ شرک فی الاسماء والصفات، ع۶ شرک فی التصرف ۔ ع۷ شرک فی الربوبیت سره ۔ ع۸ او اختلاط دَ شرک ایمان بربادوی ۔

دَ عمل صالح مسائل پکښ دا دی : ع۹ صبر کول ۔ ع۱۰ دَ الله تعالیٰ

# لِاَبِیْهِ یٰۤاَبَتِ اِنِّیْ رَاَیْتُ اَحَدَ عَشَرَ

خپل پلار ته اے پلاره یقیناً ما اولیدل (په خوب کښې) یوولس

نه مدد غوختل، ع۱۱ په معصیت باندے مصیبت غوره کول ع۱۲ دَ معصیت نه په الله تعالیٰ سره پناه غوختل۔ ع۱۳ دَ معصیت نه تیختنه کول۔ ع۱۴ دَ خپل ځان نه بدنامه دفع کول ع۱۵ دَ الله تعالیٰ په خودلے شوے تدبیرونو عمل کول ع۱۶ دَ صالح اولاد سره محبت کول او دَ هغه حتی الوسع حفاظت کول۔

ناکاره اعمال او دَ هغے ناکاره نتیجے پکښې دا ذکر دی ع۱۷ حسد کول او عاقبت ئے ناکامی، ع۱۸ دَ پلار سره کین او مکر کول، ع۱۹ پلار ته دروغ بهانے کول۔ ع۲۰ دَ ورور سره کین کول ع۲۱ ورور ته تکلیف ورکول او په هغه باندے ظلم کول ع۲۲ دَ ښځو مکرونه کول دَ نارینو سره ع۲۳ او په کورنۍ کښې یو بل باندے طعنو ته وتیل ع۲۴ دَ پردۍ سره عشق کول ع۲۵ او دَ هغه نه دَ بدکارۍ طلب اوکوشش کول، ع۲۶ په دروغه باندے ژړا کول ع۲۷ دَ چا دَ دهوکه کولو دَ پاره حیلے جوړول ع۲۸ آزاد خلق خرڅول۔

نیک اخلاق پکښې دا دی:۔ ع۲۹ دَ مولیٰ سره ښه اخلاق چلول او دَ هغه احسانات منل، ع۳۰ دَ هغه په کور کښې دَ خیانت کولو نه ځان بچ کول، ع۳۱ عفت کول، ع۳۲ دَ جیل دَ ملګرو سره احسانونه کول ع۳۳ هغوی ته دَ حق دعوت ورکول ع۳۴ خطائی کوونکو ته معافی کول ع۳۵ په تقسیم کښې دَ خیانت نه ځان بچ کول ع۳۶ دَ غیر مجرم دَ سزا نه ځان ساتل ع۳۷ مجرم مخالف ته ملامته کول ع۳۸ دَ هغه دَ پاره استغفار غوختل۔

مختلف احوال او اقسام دَ اشیاؤ:۔ ع۳۹ خوبونه لیدل او دَ هغے اقسام ع۴۰ دَ کین ونو اقسام ع۴۱ دَ محبت کولو اقسام۔ ع۴۲ دَ ژړا کولو اقسام ع۴۳ دَ نفس اقسام ع۴۴ دَ عقل والو اقسام، بشر، ملک شیطانان ع۴۵ دَ آبادو اقسام مصر، بدو، غیابت الجب ع۴۶ دَ قیمتونو اقسام ثمن، بضاعه، دراهم۔ ع۴۷ دَ لوښو اقسام سقایه،

كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ

ستوري او قمر او سپوږمۍ او ما لیدل

لِيْ سٰجِدِيْنَ ﴿۴﴾ قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ

دوی ما ته سجده کوونکي وو - او ویل هغه اے بچیه مه بیانوه

صواع ، وعاء ، کیل - ۴۸ دَ رڼړا والا اشیاؤ اقسام ، شمس ، قمر کواکب.

دَ عدد بعض اقسام : ۴۹ سبع ، احد عشر ۵۰ دَ حیواناتو اقسام ذئب ، بقر ، طیر ، بعیر ۵۱ دَ خوراک څښاک دَ څیزونو اقسام. خبز ، خمر ، سنبلات - ۵۲ دَ قافلو انتظام ، سیارة ، وارد. ۵۳ :- دَ اوقاتو ذکر غد ، عشاء .

دَ سیاست او دَ تاریخ ذکر :- ۵۴ ملك - ۵۵ عزیز ۵۶ وزیر خزائن ۵۷ طریقه دَ تقسیم دَ راشن - ۵۸ دَ خپلوانو سره احسان کول ۵۹ سبب دَ انتقال دَ بنی اسرائیلو دَ شام نه مصر ته -

دَ دیته علاوه نور هم ډیر حکمتونه او فائدے چه په تدبر سره معلومیږي - او دَ الله تعالیٰ دَ حکمتونو انتها نشي کیدلے -

لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ ، دا دلیل دے چه علم دَ نبي صلی الله علیه وسلم په ذریعه دَ قرآن او دَ وحی سره دے بله ذریعه نه وه -

۳ :- په دے آیت کښ ذکر دَ خوب لیدلو دَ یوسف علیه السلام دے چه هغه سبب دَ روستو واقعے او گرځیدو - لفظ دَ رَاَيْتُ ، دوه کرته استعمال دے - اول متعلق دے دَ ذات دَ ستورو سره او دویم متعلق دے دَ هغوی دَ حال سره -

اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا ، په یولس ستورو کښ اشاره ده ورونړو دَ یوسف علیه السلام ته ځکه چه ستوري کښ رڼا کمه وی نو دا رنګے په دوی کښ پس دَ توبے ویستلو نه لږ نور دَ هدایت راغلے وو -

او په وَالشَّمْسَ کښ اشاره ده پلار ته ، لکه څنګه چه رڼړا دَ

رُءْيَاكَ عَلٰٓى اِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ

داخوب دِ وروڼو ته نو هغه چل به جوړ کړي ستا د ضرر دپاره

كَيْدًا ۭ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوٌّ

چل ، یقیناً شیطان د انسان دپاره دشمن

مُّبِيْنٌ ۝ وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ

ښکاره دے ۔ او دغسے به غوره کوی تا لره ستا رب

شمس کامله وی نو دغه رنګ نور د نبوت کامل دے۔

او په وَالْقَمَرَ، کښې اشاره ده موږ د یوسف علیه السلام ته لکه څنګه چه رنړا د سپوږمۍ درمیانه وی نو دغه رنګ نور د ولایت د مور د یوسف علیه السلام درمیانه وو، او بعضو علماؤ برعکس وئیلی دی ځکه چه شمس مؤنث دے او قمر مذکر دے لیکن دلته اعتبار په باره د رنړا کښې دے نه په اعتبار د الفاظو سره نو اول قول غوره دے۔

ف:۔ په دے آیت کښې ادب خودل دی یوسف علیه السلام ته په باره د خوب د هغه کښې چه دا خوب پټ اوساته۔ او په یکښې اشاره ده دے ته چه یعقوب علیه السلام په تعبیر د دے خوب باندے پوهه شوے وو او په دے آیت کښې ډیرے فائدے دی۔

فائده ۱:۔ بعضے خوبونه پټ ساتل پکار دی۔

فائده ۲:۔ په هر مسلمان باندے لازم دی چه خپل مسلمان ورور له تنبیه ورکړی دپاره د ځان بچ کولو د ضرر نه۔

فائده ۳:۔ هرکله چه د یو انسان نه ویره کیدے شی په باره د یو ضرر کښې نو د هغے ذکر کول بل چا ته جائز دی او دا غیبت نه دے۔ ځکه چه په یکښې مقصود بالذات توهین د هغه سړی نه دے بلکه تنبیه نورو ته مقصد دے۔

فائده ۴:۔ وروڼه د یوسف علیه السلام انبیاء نه وو ځکه چه حسد کول او مکرونه کول کبیره ګناهونه دی۔ او انبیاء علیهم السلام

وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ

او ښائي به تا ته دَ حقیقت دَ خبرو ته ر دَ مخکنو انبیاؤ او دَ وحي نه)

وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ آلِ

او پوره به کړي خپل احسان په تا باندې او په اولاد

يَعْقُوبَ كَمَا أَتَمَّهَا عَلَىٰ أَبَوَيْكَ

دَ یعقوب علیه السلام باندې لکه چه پوره کړې یې احسان ستا په پیکونو

مِنْ قَبْلُ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ

دَ دینه مخکښې چه ابراهیم او اسحاق علیهم السلام وو،

إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝٦ لَقَدْ كَانَ

یقینًا ستا رب په هرڅه پوهه او حکم والا دے. په تحقیق سره شته

دَ ګناهونو نه پاک دي او پدے باندے تفسیر ابن کثیر او تفسیر قرطبي تصریح کړے ده.

سے:- پدے آیت کښې تسلي ورکول دي دَ یعقوب علیه السلام یوسف علیه السلام ته په درے څیزونو سره.

اول څیز:- اجتباء او مراد په اجتباء سره غوره کول دَ یوتن دي دَپاره دَ لویو کارونو چه هغه دعوت دَ توحید دے او صبر دے په تکالیفو.

دویم څیز:- تعلیم دے دَ تاویل الاحادیث. په تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ، کښې دوه تفسیره دي اول دا چه مراد دَ دینه تعبیر دَ خوبونو دے په ذریعه دَ وحي سره او دا معجزات دي، دویم دا چه مراد دَ دینه دلیلونه دَ توحید او واقعات دَ امتونو مخکنو دي.

دریم څیز:- اتمام دَ نعمت دے او مراد دَ دینه وحي او نبوت دے او مراد په آل یعقوب سره بني اسرائیل دي ځکه چه په هغوی کښې ډیر پیغمبران رالیږلی شوي دي.

# لَقَدْ كَانَ فِيْ يُوْسُفَ وَاِخْوَتِهٖٓ اٰيٰتٌ لِّلسَّآئِلِيْنَ ⑦

پہ قصہ دَ یوسف او دَ ورونړو دَ هغه کښې عبرتونه دَ تپوس کوونکو دَ پاره۔

وَكَذٰلِكَ ، دَ پاره دَ تشبیه ده مشبه به دغه خوب دے چه بیان شو یا کاف په معنیٰ دَ لام تعلیلیه سره دے۔

اٰیٰتٌ ، دا دلیل دے چه دَ اب په تیکو تو بانندے اطلاق کیږی یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم علیهم السلام۔

ف:۔ پدے آیت کښې اشاره ده هغه فائدو ته چه موجود دی په واقعه دَ یوسف علیه السلام کښې۔

په اٰیٰتٌ لِّلسَّآئِلِيْنَ ، کښې دوه تفسیره دی اول تفسیر دا دے چه مراد دَ سائلین نه دَ مکے مشرکان دی ځکه چه هغوی دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس کړے وو په خود نه دَ یهودیانو سره چه دَ بنی اسرائیلو اصلی وطن شام وو نو دَ موسیٰ علیه السلام په وخت کښې په مصر کښې څنګه اوسیدل۔

نو حاصل دَ جواب دا دے څنګه چه ورونړو دَ یوسف علیه السلام دَ حسد دَ وجے نه یوسف علیه السلام لره دَ ملک نه او ویستو او په کوهی کښې دے ورته پاتے شو او بیا بادشاهۍ ته اورسیدو او بیا ورونړو ته یے معافی اوخوښته او هغه اوفرمائیل چه لَا تَثْرِيْبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ ، او دوی دَ هغه تابع شو۔ نو دا رنګے په مکے والا دا نبی دَ کلی نه اوباسی او په غار کښې به درے شپے کوی او بیا به دا نبی غالب کیږی او دوی به ترینه معافی غواړی۔ او هغه به جواب کوی چه لا تثریب علیکم الیوم او دوی به دَ هغه تابع شی او هم دغسے په فتح مکه کښې اوشول۔

دویم تفسیر دا دے چه مراد دَ سائلین نه هغه خلق دی چه تحقیق کوی په واقعه دَ یوسف علیه السلام کښې او دَ هغے نه عبرتونه او حکمتونه او ډیرے مسئلے رااوباسی۔

إِذْ قَالُوا لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ

هر کله چه دوی اُوئیل خامخا یوسف او دَ هغه ورور (بنیامین) زیات خوښ دے

إِلَىٰ أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ

زمونږ پلار ته زمونږ نه او مونږه پوره ډله یو،

إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٨﴾

یقیناً زمونږ پلار خامخا په ساده ګئ ښکاره کښ دے۔

ف:۔ دَ دے آیت نه قصه دَ یوسف علیه السلام تفصیلاً شروع کیږی او هغه په دولس مقاماتو تقسیم ده اول مقام تر آیت ۱۸ پورے دے۔

خلاصه :۔ پدے مقام کښ ذکر کیږی مکرونه کول دَ خامنو دَ پلار سره په یاره دَ یوسف علیه السلام کښ په پنځو طریقو سره۔ اول غائبا نه مشوره کول، دویم دَ پلار مخامخ دَ مکر خبرے کول، دریم په کوهی کښ ورغورځول، څلورم په دروغه ژړا کول، او پنځم په قمیص په دروغه وینه لګول، او پدے ټولو کښ ابتلاء ده په یعقوب علیه السلام او په یوسف علیه السلام باندے۔

تفسیر :۔ پدے آیت کښ طعن کول دَ خامنو دی په یعقوب علیه السلام باندے په زیات محبت کولو دَ یوسف او دَ هغه دَ ورور سره۔ او حکم کول دی په پلار باندے دَ یقینی غلطئ۔ او دا دواړه ګناهونه کبیره دی۔ زیات محبت دَ یعقوب علیه السلام دَ یوسف علیه السلام سره دَ وجے دَ هغه خوب نه وو چه هغے دلالت کوو دَ یوسف علیه السلام په کمال باندے۔ او مراد دَ ضلال نه ضلال دَ دین نه دے ځکه چه نبی ته دَ دینی ګمراهئ نسبت کول کفر دی لکه قرطبی او مدارک لیکلی دی بلکه مراد دَ دنیا غلطی دَ تدبیر او ساده ګئ ده او دا تفسیر قرطبی ذکر کړیدے پدے آیت کښ دلیل دے چه حسن انسان سره دَ پلار په بے عزتئ کولو اماده کوی۔

اِقْتُلُوْا یُوْسُفَ اَوِاطْرَحُوْهُ اَرْضًا

او وژنئ یوسف علیه السلام لره یا یئ اوغورځوئ یو ملک ته

یَّخْلُ لَكُمْ وَجْهُ اَبِیْكُمْ وَتَكُوْنُوْا

توخالي به شي تاسو ته مخه د پلار ستاسو او شئ به تاسو

مِنْ بَعْدِهٖ قَوْمًا صٰلِحِیْنَ ﴿۹﴾

د دیته روستو قوم (خلق) نیکان (توبه به اوکړئ) -

قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوْا

اُوئیل یو ویونکي د دوئ نه مه وژنئ

یُوْسُفَ وَاَلْقُوْهُ فِیْ غَیٰبَتِ الْجُبِّ

یوسف لره او واچوئ هغه لره په ژور د کوهي کښې

یَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّیَّارَةِ اِنْ كُنْتُمْ

او به موندي هغه لره بعضې قافلې والا که تاسو

ف :- په دے آیت کښې ذکر د مشورے د ورونړو د یوسف علیه السلام دے د پاره د ورکولو د یوسف علیه السلام د پاره د دے چه حاصل کړي دوي مینه او توجه د پلار خپل ، په دے آیت کښې دلیل دے په دے خبره چه په باطله طریقه سره جائز څیز حاصلول غلط کار دے دویم دلیل دے په دے خبره چه گناه کول په دے اراده سره چه وروستو به توبه اوباسم جائز نه دي۔
وَجْهُ ، په معنیٰ د توجه دے یا په معنیٰ د ذات دے۔
مِنْ بَعْدِهٖ ، ضمیر قتل او طرح (غورځول) ته راجع دے اودا دلیل دے چه حسد انسان لره په قتل د بل انسان بلکه د ورور او د هغه په ورکولو باندے اماده کوي۔

فٰعِلِيْنَ ⑩ قَالُوْا يٰۤاَبَانَا مَا لَكَ

داسے کوڼکی یئ (نو اوکړئ) - دوی اوئیل اے پلاره زمونږ څه وجه ده چه ته

لَا تَاْمَنَّا عَلٰى يُوْسُفَ وَاِنَّا لَهٗ

په مونږ باندے اعتبار نه کوے په باره د یوسف کښ او یقینًا مونږ د ده

لَنٰصِحُوْنَ ⑪ اَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا

خامخا خیر خواه یو. دے اولیږه زمونږ سره صبا

سند :- په دے آیت کښ یئ ذکر کړے ده رائے د مشر ورور د یوسف علیه السلام چه قتل کول ډیر ظلم دے او بل ملک ته بوتلل ګران کار دے نو فیصله یئ اوکړه په دریمه خبره چه د لارے په غاړه په یو کوهی کښ یئ دا سے اوغورځوئ چه مړ نه شي او واپس هم نه شي راوتلے او یو قافلے والا به یئ ځان سره بوځي.

فِيْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ، جُب، کوهی ته وائي، غَيٰبَتِ، ډډ کمر ته وائي، غیابه هر پټ ځائے ته هم وئیلے شي مراد د دینه دا دے چه په او بو سره د کوهی په بیخ کښ کمر اوخوړلے شي او ډډ جوړ شي چه د نظر نه پټ وی او د او بو نه بره وی.

او يَلْتَقِطْهُ، دلالت کوی په مسائلو د لقیط او لقطه باندے چه د هغے تفصیل په کتابونو د حدیث او فقهې کښ موجود دے.

او دا دلیل دے چه حسد انسان لره په تکلیف ورکولو خپل ورور ته اماده کوی.

سلد :- په دے آیت کښ بیان د مکر د دوی دے د پلار مخامخ.

او وَاِنَّا لَهٗ لَنٰصِحُوْنَ، دلالت کوی په دے خبره چه دوی یقینًا دروغژن وو - د دے وجے نه یئ زیات تاکید ونه کول دا دلیل دے چه حسد انسان لره په دروغو وئیلو اماده کوی. ابن اسحاق وئیلی دی چه د دوی دا کار په ډیرو ګناهونو باندے مشتمل وو صله رحمی قطع کول، نافرمانی د مور او پلار، په وړوکی شفقت

يَّرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَإِنَّا لَهُ لَحٰفِظُوْنَ ﴿١٢﴾

چه خوراک اوکړي او لوبې اوکړي او یقینًا مونږ ده خاطر څوکۍ کوونکي یو.

قَالَ إِنِّيْ لَيَحْزُنُنِيْٓ أَنْ تَذْهَبُوْا

او وئیل پلار یقینًا خفه کوئ ما لره تاسو چه بوځئ زمانه

بِهٖ وَأَخَافُ أَنْ يَّأْكُلَهُ الذِّئْبُ

دے او بیریږم چه او به خوري ده لره شرمخ

وَأَنْتُمْ عَنْهُ غٰفِلُوْنَ ﴿١٣﴾ قَالُوْا

او تاسو به د ده نه تا خبره یئ. او وئیل دوی

نه کول، په امانت کښې غدر کول، د حهد نه خلاف کول دروغ وئیل دا ټول د حسد نتیجه وه.

۱۲:- په دے آیت کښې طلب کول د دوی دي یوسف علیه السلام لره د پلار نه د پاره د دے چه صحرا ته ئے بوځي.

يَرْتَعْ، رتع په اصل کښې خوړیدلو ته وئیلے شي یعنی د صحرا میوے کرکنړے، مما نړے وغیره خوړل مراد دی.

وَيَلْعَبْ، کښې اشاره ده چه مباح لوبے کول په شرع کښې جائز دی. او په دیکښې د دوی حیله ذکر ده چه په څه سره خپل مقصد حاصل کړي.

وَإِنَّا لَهُ لَحٰفِظُوْنَ، دا هم دروغ وائي او وعده کوی په نیت د عذر سره.

۱۳:- په دے آیت کښې ذکر د حزن د یعقوب علیه السلام دے په جدائي د یوسف علیه السلام او ذکر د خوف د هغه دے په هلاکت د یوسف علیه السلام په دے احتمال سره چه شرمخ به ئے اوخوري ځکه چه صحرا کښې شرمخان ډیر وو، دا دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام بانددے هم حزن او خوف د دنیا راځي او دا د اسبابو د لاندے وی.

لَىِٕنۡ اَكَلَهُ الذِّئۡبُ وَنَحۡنُ

که چیرې اوخوړو دې شرمخ | او حال دا چه موږ

عُصۡبَةٌ اِنَّاۤ اِذًا لَّخٰسِرُوۡنَ ﴿۱۴﴾ فَلَمَّا

پوره ډله یو نو یقیناً موږ به دغه وخت تاوانیان یو. | نو هرکله چه

ذَهَبُوۡا بِهٖ وَاَجۡمَعُوۡۤا اَنۡ يَّجۡعَلُوۡهُ

دوی هغه لره بوتلو او یخه اراده ئې اوکړه چه | واچوی هغه لره

فِىۡ غَيٰبَتِ الۡجُبِّ‌ۚ وَاَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡهِ

په ډډ دَ کچه کوهی کښې | او وحی اوکړه موږ هغه ته

لَـتُنَـبِّـئَـنَّـهُمۡ بِاَمۡرِهِمۡ هٰذَا وَهُمۡ

خامخا خبر به ورکړې دوی ته (یو ورځ) دَ دوی دَ دې کار او دوی

سلا :- په دې آیت کښې تاکید کول دی دَ وروڼو دَ یوسف علیه السلام په باره دَ حفاظت دَ هغه کښې او دا جواب دے دَ دویم قول دَ یعقوب علیه السلام او دَ اول قول جواب ئې ځکه اونکړو چه بوتلل دَ هغه خو خامخا دَ دوی عزم او اراده وه هغه خو دوی ضرور کولو۔

وَنَحۡنُ عُصۡبَةٌ ، عصبه ، کلک جماعت ته وئیلے شي چه کم از کم لس کسان وی۔ او دوی هم سوا دَ بن یامین نه لس وو۔

لَّخٰسِرُوۡنَ ، کښې اشاره ده چه موږ ګډے بیزے په صحرا کښې څروؤ او شرمخان نشو دفع کولے نو بیا خو به ډیر تاوان والا شو خو دا سے نه ده نو دَ ورور نه خامخا ضرر دفع کولے شو۔

لَا يَشْعُرُونَ ﴿۱۵﴾ وَجَآءُوٓ أَبَاهُمْ

او راغلل دوی پلار ته | ته پوهیدل۔

عِشَآءً يَّبْكُونَ ﴿۱۶﴾ قَالُوا يٰٓأَبَانَآ

دَ ماښام په تیاره کښ ژړا بړې کوله۔ دوی اُوئیل اے پلاره زمونږه

۱۵:۔ په دے آیت کښ ذکر دے دَ اتفاق کولو دَ وروڼرو دَ یوسف علیه السلام په غورځولو دَ هغه په کوهی کښ، نو دا دلیل دے په دے خبره چه اتفاق دَ ډیرو کسانو سره گناه کول نه جائز کیږی۔
فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهٖ، دَ شرط جزاء محذوف ده یعنی فَعَلُوا بِهٖ مَا فَعَلُوا (اوکړه دوی هغه سره هغه څه چه اوکړل ئے) او مفسرینو ذکر کړی دی چه په غار دَ کوهی کښ دننه ورځے وو۔
وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ، مراد دَ وحی نه وحی دَ نبوت نه مخکښ او دیته ارهاص وائی یا دا وحی حقیقتًا وه او دا غوره قول دے۔
وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ، په دیکښ دوه توجیه دی۔ اوله توجیه دا ده چه دا وروڼره نه پوهیدل په وحی دَ یوسف علیه السلام او په لوئے والی دَ مرتبے دَ هغه۔
دویمه توجیه دا ده چه دوی به نه پیژنی یوسف علیه السلام لره کله چه هغه دوی له خبر ورکوی په مکرونو دَ دوی په راتلونکی زمانه کښ۔
۱۶:۔ په دے آیت کښ بیان دَ بل مکر دَ دوی دے دَ پلار خپل سره په دوؤ طریقو باندے اول په تاوخته راتللو دَ دوی په نسبت دَ نورو ورځو دَ دے دَ پاره چه په تیاره کښ دَ دروغو دَ ژړا پته او نه لږی او چه پلار ته معلومه شی چه دوی دَ دے واقعے دَ وجے نه بے وخته کړیدے او دویم په دروغ سره ژړا کول، او علماؤ وئیلی دی دا دلیل دے په دے خبره چه ژړا دَ یو کس دلیل نه وی دَ هغه په صدق باندے، کیدے شی چه دا ژړا دَ مکر وی ځکه چه ژړا لس قسمه ده او ابن قیم په زاد المعاد ص۱۸۲ کښ ذکر کړیدی اول قسم ژړا دَ رحمت او دَ نرمئ دَ زړه۔ دویم قسم ژړا دَ

إِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوسُفَ

يقيناً موږ تلي وو منډې مو وهلې او پرېخودلې وو موږ يوسف لره

عِنْدَ مَتَاعِنَا فَأَكَلَهُ الذِّئْبُ ج

دَ خپل سامان سره نو اوخوړو هغه لره شرمخ

وَمَا أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا وَلَوْ كُنَّا

او نه يې ته باور کوونکې زموږ په خبره اګر چه موږ

صٰدِقِيْنَ ⑰ وَجَاءُوْ عَلٰى قَمِيْصِهٖ

رشتيا وايو. او (راګوړلې) راوړه دوی دَ هغه په قميص باندې

ويرې او دَ خشيت دَ وجې نه. دريم قسم ژړا دَ محبت او شوق دَ وجې نه. څلورم ژړا دَ خوشحالۍ دَ وجې نه. پنځم قسم ژړا دَ فرياد دَ وجې دَ درد او مرض نه. شپږم قسم ژړا دَ حزن او غم دَ وجې نه. اووم قسم ژړا دَ بزدلۍ او کمزورۍ والي دَ زړه نه. اتم قسم ژړا دَ منافقت او رياء چه سترګو کښې اوښکې راځي او زړه يې سخت وي او خلقو ته دَ ځان خشوع ښکاره کوي. نهم قسم دَ اجرت او دَ مزدورۍ ژړا لکه دَ ويرګرو ښځو. اولسم قسم ژړا دَ موافقت دَ وجې نه چه څوک اوويني چه هغه ژاړي نو دے هم ورسره اوژاړي او سبب ورته نه وي معلوم.

مسئله. په دے آيت کښې تسلي ورکول دَ دوی دی پلار خپل ته په دروغو بهانو سره.

نَسْتَبِقُ، دلالت کوي په جواز دَ استباق په شرع کښې چه هغه دَ اسونو وي يا دَ اوښانو يا په خپلو خپو باندې وي او په غشو ويشتلو کښې هم استباق په حديث کښې وارد دے. په هغه شرطونو سره چه په حديث کښې ذکر دي او مراد دَ استباق نه په دے ځائے کښې مقابله کول دي په تيزه منډه وهلو کښې.

مَتَاعِنَا، يعنې په وخت دَ لوبو کولو او استباق کولو کښې زياتي جامې

بِدَمٍ كَذِبٍؕ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ
وینه دَ دروغو ، پلار اُوئیل بلکه جوړه کړیده
لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًاؕ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ
تاسو ته ستاسو نفسو تو غه خبره ، نو صبر ښائسته زښهٔ دے) مالره
وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ ⑱
او خاص دَ الله تعالیٰ نه مدد غوښتلے شي په مقابله دَ دغه خبرو چه تاسو وایئ۔

اُوستلے شي او یو ځائے کښې کیخودلے شي تو دغه متاع مراد دے۔
وَمَا اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لِّنَا وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ ، دا تاکید هم دلالت کوی دَ دوی په دروغو باندے ځکه پلار ئے تر دغه وخت پورے دوی له جواب ورکړے نه وۇ او دوی دَ ځان نه اُوئیل چه ته زمونږ خبره نه منې۔
۱۸۔ پدے آیت کښې ذکر دَ مکر دَ دوی دے په بله طریقه سره چه دوی یو ښاروے ذبح کړو او دَ هغه وینه ئے په قمیص دَ یوسف علیه السلام اولګوله لیکن قمیص ئے شلولے نه وۇ نو پدے وجه یعقوب علیه السلام په خپل فراست سره پوهه شو چه که یوسف علیه السلام شرمخ خوړلے وے نو قمیص به ئے ورله شلولے وے نو ځکه ئے اوفرمائیل بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا۔
فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ، صبر جمیل دے ته وائی چه په وخت دَ مصیبت کښې مخلوق ته شکایت نه کوی اګرچه الله تعالیٰ ته تضرع او عاجزی کوی او دا دلیل دے پدے خبره چه صبر کول په مصیبتونو باندے سنت دے دَ ټولو انبیاؤ علیهم السلام۔
وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ ، دا رد دے په شرک فی الاستعانت باندے یعنی دَ الله تعالیٰ نه سوا دَ بل چانه مدد غوښتل دَپاره دَ مصیبت لرے کولو یا حاجت پوره کولو شرک دے۔ او دا رنګ په سورة انبیاء ۱۱۲ آیت کښې ذکر دی او مبتداء او خبر دواړه معرفه دی دلالت کوی په حصر باندے۔

وَجَآءَتۡ سَيَّارَةٌ فَأَرۡسَلُوۡا وَارِدَهُمۡ

او راغله یوه قافله نو دوی اولیږلو مشکی خپل

فَأَدۡلٰى دَلۡوَهٗ ؕ قَالَ يٰبُشۡرٰى هٰذَا

نو زوړند کړه هغه خپله بوقه، نو ویے وئیل زیے ملګرو، تاسو یا نه زیری دے دا

غُلٰمٌ ؕ وَأَسَرُّوۡهُ بِضَاعَةً ؕ وَاللّٰهُ

خو یو غلام دے، او پټ ئے اوساتلو هغه د تجارت په خیال، او الله تعالی

عَلِيۡمٌۢ بِمَا يَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۹﴾ وَشَرَوۡهُ

ښه پوهه دے په هغه چه دوی ئه کول۔ او خرڅ کړو دوی هغه

ربط:۔ دَ دے آیت نه دویم مقام دے تر ۲۲ آیت پورے۔
خلاصه:۔ په دے آیت کښ ذکر دَ نورو مکرونو او ظلمونو دَ هغوی دے دَ یوسف علیه السلام سره په غلام جوړولو او خرڅولو دَ هغه سره لیکن دَ دے ابتلاء سره ذکر دَ احسان دَ الله تعالی دے په عزت ورکولو سره یوسف ته په کور دَ عزیز مصر کښ او په تمکین سره په زمکه کښ۔
تفسیر:۔ په دے آیت کښ ذکر دَ سبب دَ راوتلو دے دَ یوسف علیه السلام دَ کوهی نه او ابتلاء ده په یوسف علیه السلام په غلام کرځولو سره۔
سَيَّارَةٌ، قافله چه دَ مدین نه مصر طرف ته روانه وه۔
فَأَرۡسَلُوۡا وَارِدَهُمۡ، وارد یو تن وو یا په معنی دَ جنس دے وارد هغه شخص وی چه ملګرو دَ پاره اوبه راوړی۔
قَالَ، دَ دیته مخکښ لفظ پټ دے۔ فَتَشَبَّثَ بِهٖ يُوۡسُفُ راوختلو په هغه رسئ پورے یوسف)
يٰبُشۡرٰى، اصل معنی دا ده چه اے خوشحالی راشه دا دِ وخت دے۔ بل قول دا دے چه بشرٰی دَ هغه دَ ملګری نوم وو۔
هٰذَا غُلٰمٌ، دا قول په عادت دَ تاجرانو سره دے چه هغوی

وَشَرَوۡهُ بِثَمَنٍۭ بَخۡسٍ دَرَٰهِمَ مَعۡدُودَةٍ

په قیمت بے کاره (حرامے) روپئ لږ د شمار

وَكَانُواْ فِيهِ مِنَ ٱلزَّٰهِدِينَ ۝٢٠

او دوی وو په هغه کښ د بے رغبتو نه -

کوم خیز او موښ نو د تجارت د پاره یے استعمالوی -

وَأَسَرُّوهُ، په دیکښ دوه تفسیره دی اول دا ده پټ اوساتلو وروڼرو د یوسف علیه السلام حال د یوسف علیه السلام لره او وے گرځوؤ هغه لره مال د تجارت - دویم دا چه پټ کړو یوسف علیه السلام لره مشکی او ملګرو د هغه د نورو کسانو نه د پاره د ګټې کولو.

ستا - په وَشَرَوۡهُ بِثَمَنٍ، کښ درے معنے دی - اوله معنیٰ دا ده چه خرڅ کړه وروڼرو د یوسف علیه السلام هغه لره او وو دوی په دغے پیسو کښ بے رغبته ځکه چه حرامے یے ګڼړلے - دویمه معنیٰ دا ده چه خرڅ کړو مشکی او ملګرو د هغه یوسف علیه السلام لره په مصر کښ او وو دوی په یوسف علیه السلام کښ بے رغبته ځکه چه ګمان کوؤ دوی چه دا نافرمان مرئے دے - دریمه معنیٰ دا ده چه واخستو یوسف علیه السلام لره مشکی او ملګرو د هغه په آخری معنیٰ سره شراء په معنیٰ د اشتراء ده -

د بَخۡسٍ، دوه معنے دی - ۱ ناقص - ۲ حرام دلته دویمه معنیٰ غوره ده ځکه چه خرڅول د حر (آزاد) حرام دی -

مَعۡدُودَةٍ، هغے ته وئیلے شی چه شمار یے آسان وی او دا کنایه ده د لږ نه -

وَكَانُواْ فِيهِ مِنَ ٱلزَّٰهِدِينَ، د زهد په صله کښ فی راځی په معنیٰ د عدام رغبت دے او فِيهِ ضمیر راجع دے یوسف علیه السلام ته کله چه ضمیر وارد او د هغه ملګرو ته راجع شی، پدے آیت کښ دلیل دے پدے مسئله باندے چه غبن قیمت والا خیز په لږو پیسو اخستل جائز دی په شرط د رضا د طرفینو او په شرط د دهوکے نه کولو - یا ضمیر د فِيهِ راجع دے پیسو ته

وَقَالَ الَّذِي اشْتَرٰهُ مِنْ مِّصْرَ

او اوئیل هغه سړي چه واخستلو ئے دے دَ مصر والو نه

لِامْرَاَتِهٖٓ اَكْرِمِيْ مَثْوٰىهُ عَسٰٓى اَنْ

ښځې کور والا ته دَ دَه دَ اوسیدلو په عزت سره خیال سا ته کیدیشي چه

يَّنْفَعَنَآ اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا ؕ وَكَذٰلِكَ

مونږ له نفع راکړي یا ئے دَ ځوے په ځائے او نیسو او دغسے

مَكَّنَّا لِيُوْسُفَ فِي الْاَرْضِ ۡ وَلِنُعَلِّمَهٗ

ځائے ورکړو مونږ یوسف له په زمکه (دَ مصر) کښ او چه اوښایو ده ته

مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ ؕ وَاللّٰهُ غَالِبٌ

دَ حقیقت دَ خبرو ته ، او الله تعالیٰ زور آور دے

عَلٰٓى اَمْرِهٖ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ

په خپل کارونو باندے او لیکن ډیر خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗٓ

نه پوهیږي ـ او هر کله چه دے اورسید لو ځوانۍ خپلې ته

کله چه ضمیر فاعل ورورو دَ یوسف ته راجع شي ـ یا ضمیر وارد او ورور خلقو ته راجع دے او وجه دَ زهد دا ده چه الله تعالیٰ دَ دغه خلقو په زړونو کښ دَ یوسف سره محبت او عشق نه پیدا کولو دَدے دَ پاره چه دَ دغه خلقو دَ بد عملونو نه محفوظ شي ـ

ملا: پدے آیت کښ ذکر دَ احسان دَ الله تعالیٰ دے په یوسف علیه السلام باندے په عزت ورکولو سره ـ او نوم دَ اخستونکي قطفیر وو ـ او مشهور وو په عزیز مصر سره او دے وزیر خزانه او مشر وزیر دَ مصر وو ـ او نوم دَ ښځې دَ ده راعیل وو او مشهوره په زلیخا سره وه ـ

# اٰتَیْنٰهُ حُکْمًا وَّعِلْمًا ؕ وَکَذٰلِکَ

| نو ورکړو موږ ده ته د فیصلو (قوت) او پوهه د دین، او د غسې |
|---|

مَثْوٰىهُ، منزل ته وئیلے شي او مراد خوراک څښکاک او ځائے د دیره کیدلو دے۔
عَسٰۤى اَنْ یَّنْفَعَنَاۤ، چه خرڅ ئې کړو نو ډیره ګټه به اوشي یا دا چه بنده خدمت ته به کوي ځکه چه د خائست د صورت نه دلیل نیولے کیږي په حسن اخلاق باندے۔
اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا، دا بناء دے په عادت د خلقو چه پردے ځوے دخپل ځوي په ځائے اونیسي د وجے د مینے نه او ده ته متبنیٰ وائي۔ په دیکښې اشاره ده چه د عزیز مصر اولاد د دے نه ئو ته وو۔
وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا، كَذٰلِكَ، لکه چه بچ کړو الله تعالیٰ ده لره د قتل او کوهي نه نو دا رنګ د دے مراد دا دے چه عزیز مصر پدے باندے مهربان شو نو د هغه د مهربانئ په وجه سره په مصر کښې د یوسف علیه السلام عزت پیدا شو۔ او په کور د عزیز مصر کښې په عزت او خوشحالئ سره اوسیدلو۔
وَلِنُعَلِّمَهٗ، دا معطوف دے په پټ لفظ باندے یعنی (لِنُكْرِمَهٗ وَلِنُعَلِّمَهٗ مِنْ تَاْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ) د دے دوه معنے په تفسیر د سلا کښې تیر شوي دے۔
وَاللّٰهُ غَالِبٌ عَلٰۤى اَمْرِهٖ، په دیکښې رد دے د شرک فی التصرف امره ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته او مراد تری نه ټول کارونه دي چه الله تعالیٰ ئې اراده اوکړي نو څوک ئې نشي منع کولے یا ضمیر راجع دے یوسف علیه السلام ته او مراد تری نه تمکین د یوسف علیه السلام دے اګر چه ورونړو ذلیل کوو لیکن الله تعالیٰ ورله عزت ورکړو۔
وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ، دا دلیل دے پدے خبره چه الله تعالیٰ نه سوا هیڅوک په غیب باندے نه پوهیږي

نَجۡزِی الۡمُحۡسِنِیۡنَ ﴿۲۲﴾ وَرَاوَدَتۡهُ الَّتِیۡ

بدله ورکوو موږ خاښته عمل کوونکو ته.او دهوکه کوله ده لره هغه ښځې

او دا په تفسیر قرطبي کښ ذکر دے۔
۲۲۔ دَ دے آیت نه دریم مقام دے تر آیت ۲۹ پورے۔
خلاصه:۔ په یکښ ذکر دَ بیلے ابتلاء دَ یوسف علیه السلام دے۔ په سبب دَ ښځے دَ عزیز مصر سره۔ دَ هغې طلب کول او دروازے بندول او یوسف علیه السلام ته دعوت دَ فحاشئ ورکول او کلکه اراده کول او په هغه پسے منډه وهل دَ هغه قمیص شلول او په هغه باندے تهمت لګول۔
بیا ذکر دَ احسان دَ الله تعالیٰ دے په یوسف علیه السلام باندے دَ هغه په پاکلمنئ ښکاره کولو سره په فیصله کولو دَ یو شاهد سره۔
تفسیر:۔ په دے آیت کښ ذکر دَ احسانانو دَ الله تعالیٰ دے په یوسف علیه السلام باندے په نبوت ورکولو سره او په علم ورکولو دَ دین سره۔
اَشُدَّهٗ، بلوغ ته وئیلے شی او بعضو وئیلی دی چه دَ اتلس کالو نه تر دیرش پورے اشد وی او اشد یے جمع ځکه ذکر کړے ده چه په ځوانئ کښ ټول قوتونه مضبوط شی۔
اٰتَیۡنٰهُ حُکۡمًا وَّعِلۡمًا، مراد دَ حکم نه نبوت دے چه په سبب دَ هغې سره فیصلے کوی یا مراد پدے سره صرف قوت دَ فهم دے دَ فیصلو کولو۔ او عِلۡمًا، بناء په اول باندے تاکید دے او بناء په دویم باندے تعمیم بعد التخصیص دے۔
وَکَذٰلِکَ نَجۡزِی الۡمُحۡسِنِیۡنَ، هر کله چه مراد دَ حُکۡمًا نه نبوت وی نو اعتراض وارد یږی چه حاصل معنیٰ دَ دے جملے دا شوه چه نبوت دَ احسان په جزا کښ ملاویږی او حال دا دے چه دَ اهل سنت والجماعت په نیز باندے نبوت کسبي څیز نه دے یعنی دَ یو کسب او محنت په ذریعه سره نه حاصلیږی۔ نو جواب دا دے چه نَجۡزِی، په معنیٰ دَ بدله

هُوَ فِيْ بَيْتِهَا عَنْ نَّفْسِهٖ وَغَلَّقَتِ

چه دَ هغې په کور کښې وو دَ ده دَ نفس په باره کښې او بند کړے

الْاَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ؕ قَالَ

ټول دروازے او اُوئیل یې دلته راشه تاته وایم، هغه اوئیل

مَعَاذَ اللّٰهِ اِنَّهٗ رَبِّيْۤ اَحْسَنَ

پناه غواړم په الله تعالیٰ سره یقیناً هغه زما پالنه کوی خائسته کړے

مَثْوَايَ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۳﴾

ځائے دَ اوسیدلو زما، یقیناً نشی بچ کیدے ظالمان -

ورکولو سره نه دے بلکه په معنیٰ دَ کفایت سره دے ځکه چه لسان العرب لیکلی دی چه جزی په معنیٰ دَ کفی سره راځی نو معنیٰ دا شوه رتو دغسے موتږ پوره نعمت ورکوو انبیاء علیهم السلام ته) او انبیاء دَ نبوت نه مخکښې محسنین دی، او که چرے مراد دَ حُکمًا نه پوهه دَ دین او دَ فیصلو وی نو دَ اشُدَّ نه مراد منتها او ځوانی ده یعنی چه ځوانی کښې یې احسان سره دعمل نه کړے وی نو په هغې سره حکم او علم ملاویږی.

۲۳:- پدے آیت کښې ذکر دَ ابتلاء دے دَ یوسف علیه السلام په سبب دَ ښځې په دریو طریقو سره.

اوله طریقه : وَرَاوَدَتْهُ، مراوده کول، مراد دَ مرواده نه په ټګئ او چالاکئ سره ځان ته مائله کول دی. بعضے مفسرینو وئیلی دی چه هغې ښځې دَ ده دَ ویښتو صفت اوکړو نو هغه جواب ورکړو چه په مرګ سره دا دَ انسان نه اول دوریږی بیا هغې دَ سترګو صفت اوکړو نو هغه اُوئیل چه په قبر کښې دا اول په مخ باندے راپهیږی بیا هغې اُوئیل چه ستا دا مخ ډیر خائسته دے نو هغه اوئیل چه دا هم دَ خاورو دَ پاره دے دا ټولے حیلے کول دېته مراوده وئیلے شی.

وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهٖ ۚ وَهَمَّ بِهَا ج

او يقيناً هغې پوره اراده اوکړه په يوسف عليه السلام او اراده به کړې يوسف هغه ددې نيځې

لَوْلَآ اَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ ط

که نه وے ليدلے (يوسف عليه السلام) دليل دَ رب دَ طرف نه،

كَذٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوْٓءَ

دغسې (اوساتلے موټر دے) دَ دے دَپاره چه وا اړوُ دَ ده نه بدکار

وَالْفَحْشَآءَ ط اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا

او بے حيائي ، يقيناً دَ دے دَ بندګانو زموږ نه

دويمه طريقه :- وَغَلَّقَتِ الْاَبْوَابَ ، دروازے بندول ، او دروازے ئې جمع ځکه ذکر کړے دی چه دَ هغه مکان ډيرے دروازے وے ، او راګيرول دَيوتن هله کيږي چه ټولے دروازے بندے کړے شي.

دريمه طريقه : وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ، دعوت ورکول وُ يوسف عليه السلام له ځان طرف ته -

هَيْتَ لَكَ ، دا اسم دے په معنیٰ دَ تعال او اقبل سره او مجاهد وئيلي دي چه دا عربي کلمه ده استعماليږي دَپاره دَ تيزئ ورکولو په څه کار باندے -

قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ ، دا دليل دے پدے خبره چه پيغمبران دَ ګناه او دَ مصيبت نه په بچ کيدلو کښ الله تعالیٰ ته محتاج دي.

اِنَّهٗ رَبِّيْٓ ، مراد دَ دينه الله تعالیٰ دے . يا مراد دَدے نه عزيز مصر دے او معلومه شوه چه دَ رب اطلاق په غيرالله باندے جائز دے پدے شرط چه مطلق نه وي او اضافت عامه نه وي لکه رب العالمين او رب الناس ځکه دا خاص دي په الله تعالیٰ پورے - اَلظّٰلِمُوْنَ ، پدې کښ اشاره ده چه خيانت کول په کور دَ مولیٰ کښ او بدکاري کول ظلم دے -

# الْمُخْلَصِينَ ﴿٢٤﴾ وَاسْتَبَقَا الْبَابَ

چه بچ ساتلے شوے دی۔ او دواړو منډه کړه دروازے ته

سالا:- په دے آیت کښ اول ذکر دے دَ کلکے ارادے دَ زليخا په باره دَ يوسف عليه السلام کښ او بيا ئے ذکر کړيں ے سبب دَ پاکدامنئ دَ يوسف عليه السلام او عصمت دَ هغه۔

وَلَقَدْ هَمَّتْ بِهٖ، تحقيق والا وئيلے دی چه هَمْ دوه قسمه دے اول هَمْ ثابت چه هغه په معنیٰ دَ عزم سره دے او په هغے کښ قصد او اختيار دے او دا هَمْ دَ زليخا وو په دليل دَ هغه چه په مخکښ آيت کښ ذکر شول رمراوده او دروازے بندول او آواز ورکول) او په دليل دَ لام او قد سره۔ او دويم هَمْ عارض دے په زړه کښ بے اختياره تيريدل او هغه ګناه نه دے يو قول دَ مفسرينو دا دے چه هَمْ دَ يوسف عليه السلام پدے معنیٰ سره دے او دويم قول دا دے چه هَمْ دَ يوسف عليه السلام په معنیٰ دَ عزم سره دے ليکن معلق دے په لَوْلَا أَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ، پورے يعنی دَ وجے دَ ليدلو دَ برهان دَ رب نه هَمْ ئے نه دے کړے په يکښ غوره قول دا دے چه يوسف عليه السلام دَ وجے دَ ليدلو دَ برهان نه هَمْ ئے نه دے کړے۔ او دليل پدے باندے روستونئ جمله ده۔ نو دا لفظ چه لَوْلَا أَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ، دے په معنیٰ کښ وړاندے دے په هَمَّ بِهَا باندے۔ او مراد دَ برهان نه علم او شريعت دے چه ذکر شوے دے په سالا کښ او کوم تفسيرونو کښ چه دَ هَمْ په باره کښ ليکلی دی چه ازار بند ئے پرانستلو او تړ دے شو۔ او دَ برهان په باره کښ وئيلی دی چه دَ اصورت دَ يعقوب عليه السلام وو۔ يا آواز ورته اوشو نو دا ټول اسرائيليات دی او دَ دے آيت دَ راتلونکو جملو او دَ رب دَ زَادَ دَ ثنے او دَ شهادت دَ شاهد نه مخالف دی محققينو مفسرينو پدے باندے رد کړيں ے۔

السُّوْٓءَ، مراد دينه هَمْ او ګناه صغيره دے۔

وَقَدَّتْ قَمِيصَهُ مِن دُبُرٍ وَّأَلْفَيَا

او اوشلولو (ردے يئے) قميص د ده دَ شا دَ طرف نه او ادمونډلو

سَيِّدَهَا لَدَا الْبَابِ ۚ قَالَتْ مَا

دواړو خاوند دَ ښځے دَ دروازے سره ، دے اوئيل نشته

جَزَآءُ مَنْ أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوٓءًا

سزا دَ هغه چاچه غواړي ستا دَ كور والا سره بد كاري

إِلَّآ أَن يُسْجَنَ أَوْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٢٥﴾

سِوا دَ دينه چه جيل ته كړيشي يا دردناك عذاب -

الْمُخْلَصِينَ ، په دے كښ اشاره ده چه انبياء عليهم السلام په عصمت كښ الله تعالىٰ ته محتاج دي -

ف٢٥ :- په دے آيت كښ دَ زليخا دَ طرف نه درے مكرونه ذكر دي. اول منډه وهل په يوسف عليه السلام پسے تر دروازے پورے او دَ يوسف عليه السلام دَ دينه تيختنه كول دَ پاره دَ بيج كيدلو - او دويم مكر قميص شلول دَ دے دَ شا دَ طرف نه ، دا دليل دے چه يوسف مخكښ زور كولو دَ بيج كيدلو دَ پاره او ښځے وروسته راخكلو ځكه قميص اوشليدلو - او دريم مكر بد تاړي لګول دي په هغه باندے چه ده اراده كړيده دَ بدئ او بيا هغے تجويز پيش كولو په باره دَ سزا دَ هغه كښ دَ پاره دَ دے چه په هغه باندے جرم ښكاره شي -

وَأَلْفَيَا سَيِّدَهَا ، مراد دَ سيد نه خاوند دے او دا دليل دے چه دَ سيد اطلاق دَ الله تعالىٰ نه سِوا په بندګانو هم كيديشي -

لَدَا الْبَابِ ، الباب ئے مفرد ذكر كړے دے ځكه چه وتل دَ يو دروازے نه كيديشي - الابواب ئے جمع ذكر كړے وو ځكه چه دَ راګيرولو دَ پاره ټولے دروازے بندول پكار وي -

قَالَ هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَّفْسِي

هغه اوئيل دے ښځے دهوكه كولم زۀ زما دَ نفس په باره كښ

وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ أَهْلِهَا إِنْ

او فيصله اوكړه يو فيصله كوونكي دَ ټبر دَ ښځے نه كه چرے

كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ

قميص دَده شليدلے وي دَ مخے دَ طرف نه

فَصَدَقَتْ وَهُوَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿۲۶﴾

نو دا ښځه رشتيا وائي او دے دَ دروغژنو نه دے.

سـ۲۶ :- په دے آيت كښ بيان دَ صفائي دَ يوسف عليه السلام دے چه پيش كړے يئے وۀ دَ پاره دَ ځان خپل او دَ طعن دفع كولو دَ پاره صفائي پيش كول واجب وي - بيا په دے آيت كښ ذكر كړے شو يوه فيصله دَ حاكم.

وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ أَهْلِهَا، شَاهِدٌ ، صحيح قول دا دے چه دا يو عاقل بالغ او هوښيار سړے وو او فيصله يئے په انصاف سره كړے وه او مراد دَ شهادت نه فيصله كول دي نه چه گواهي كول دي - او هغه روايت چه ذكر كړے دے مفسرينو په باره دَ شاهد كښ چه دا يو وړوكے بچے وو او گويا شو نو هغه روايت صحيح نه دے ځكه چه كوم روايت امام بخاري راوړيدلے په باره دَ گويا كيدلو دَ وړو بچو كښ نو په هغے كښ دَ دے شاهد تذكره نشته بلكه هغه درے دي عيسىٰ عليه السلام او جريج او ځوئے دَ يوے ښځے په بني اسرائيلو كښ.

وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ

او كه قميص دَ ده شليدلے وى دَ شا دَ طرف نه

فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۷﴾

نو دا بنځه دروغ واۍ او دے دَ رشتينو نه دے۔

فَلَمَّا رَأٰ قَمِيصَهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ

نو هر كله چه اوليدو ده قميص دَ هغه شليدلے وُو دَ شا دَ طرف نه

قَالَ إِنَّهُ مِنْ كَيْدِكُنَّ ط إِنَّ

أووئيل يقيناً دَا ستا مكر دے ، يقيناً

كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ ﴿۲۸﴾ يُوسُفُ أَعْرِضْ

مكر ستاسو لوئے وى ۔ اے يوسف مخ واړوه

۲۷:۔ دا هم جزء دے دَ فيصلے دَ حاكم نه او دا فيصله په اعتبار دَ امارا تو سره ده چه زمونږ شريعت كښ هم دَ هغے مثالونه شته دے۔

۲۸:۔ په دے كښ دليل دے په عصمت دَ يوسف عليه السلام په صحيح علامت ښكاره كيدلو سره او په دے آيت كښ تصريح ده په مكرونو كولو دَ زليخا باندے۔

فائده:۔ په دے آيت كښ ذكر شول چه مكر دَ زنانو لوئے دے او په سورة النساء ۷۶ كښ دى چه مكر دَ شيطان كمزورے دے نو دَ دريته سوال پيدا كيږى چه آيا دَ زنانو مكر دَ شيطان دَ مكر او چل نه لوئے دے؟

جواب:۔ مكر دَ شيطان په مقابله دَ تدبير دَ الله تعالىٰ كښ كمزورے دے۔ او مكر دَ زنانو لوئے دے په مقابله دَ مكر دَ نارينو كښ۔

عَنْ هٰذَا ۜسکتہ وَاسْتَغْفِرِيْ لِذَنْۢبِكِ ۚۖ

دَ دے خبرے نه (د خوړولو) اوائے ښځے ته. بخښنه اوغواړه دَ ګناه خپلے ته

اِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِئِيْنَ ﴿۲۹﴾ وَقَالَ

یقینًا ته دَ خطاکارو نه یې - او اوئیل

نِسْوَةٌ فِي الْمَدِيْنَةِ امْرَاَتُ

زنانو (ښځو) په ښار کښ چه ښځه

الْعَزِيْزِ تُرَاوِدُ فَتٰىهَا عَنْ نَّفْسِهٖ ۚ

دَ عزیز غولوي خپل مریي لره په باره دَ نفس دَ هغه کښ

قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ۭ اِنَّا لَنَرٰىهَا

یقینًا مینه دَ هغه چاپیره شوې ده دَ زړه دَ دینه، یقینًا وینو موږ دے لره

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۰﴾ فَلَمَّا سَمِعَتْ

په خطایئ ښکاره کښ. نو هر کله چه واوریدو دے ښځے

ﻫ۲۹:- په دے آیت کښ حکم دے یوسف علیه السلام ته دَ پټ ساتلو دَ دے واقعے او حکم دے زلیخا ته په معافي غوښتلو دَ یوسف علیه السلام نه یا دَ خاوند خپل نه یا دَ الله تعالٰی نه ځکه چه دوي منونکي وو دَ الله تعالٰی سره دَ شرک نه، او غصه نه کول دَ عزیز مصر زلیخا ته دَ وجے دَ کموالي دَ غیرت نه وو - او دا سے مدارک کښ لیکلي دي ځکه چه لازم په اعتبار دَ فیصلے سره دا وه چه هغه ښځے ته سزا ورکړے شوے.

ﻫ۳۰:- دَ دے آیت نه خلورم مقام دے تر ۳۵ پورے -

خلاصه:- په دے مقام کښ ذکر دَ څلورو مکرونو دے.

اول مکر دَ عامو ښځو دے دَ زلیخا سره په طعن ولګولو سره په هغے باندے. دویم مکر دَ زلیخا دے دَ ښځو سره.

دریم مکر دَ ټولو ښځو دے دَ یوسف علیه السلام سره.

بِمَكْرِهِنَّ أَرْسَلَتْ إِلَيْهِنَّ

طعن دَ هغوی نو جواب یې اوکړلو په هغوی پسې

وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَأً وَّآتَتْ

او تیار یې کړو هغوی لره ځائے دَ تکیا لګالو او ورکړه

كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّينًا

هرې یوې ته دَ هغوی نه چاړه

وَّقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ۚ فَلَمَّا

او اُوئیل یې (یوسف) ته رااوځه دوی ته نو هرکله چه دوی

رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ وَقَطَّعْنَ

هغه اولیدلو نو دیر لوے یې اوګڼړلو (په خاشت کښ) او زخمي کړل دوی

څلورم مکر دَ دوی دے په مجبوره کولو دَ یوسف علیه السلام په جیل سره۔

تفسیر:- پدے آیت کښ طعن دَ زنا تو دے په زلیخا باندے په لسو طریقو سره۔

اول داچه دَ دے خاوند شته۔ دویم داچه خاوند یې عزیز مصر دے۔ دریم داچه دے ښځے طلب کړیدے۔ څلورم داچه په طلب کښ یې مبالغه او کوشش کړیدے۔ پنځم داچه طلب یې دَ غلام نه کړیدے۔ شپږم داچه تصریح یې کړیده په وخت دَ طلب کښ دَ نفس دَ هغه۔ اووم محبت کول دَ هغه سره۔ اتم دَ محبت داخلیدل دَ زړه پردے ته چه هغے ته شغف وائی۔ نهم داچه په غلطۍ کښ ده۔ اولسم داچه غلطي یې واضحه ده۔

قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ، شغف ، په اصل کښ پردے دَ زړه ته وئیلے شی یعنی محبت دَ یوسف علیه السلام دَ دے ښځے دَ زړه په پرده کښ داخل شوید ے او دننه زړه ته رسیدلے دے۔ دا دَ عشق اوچته مرتبه ده دا لسے مراتب دَ محبت ابن قیم په الجواب الکافی کښ لیکلی دی۔

أَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا
لاسونه خپل او دوی اُوئیل پاکی ده الله تعالی لره
هٰذَا بَشَرًا ۖ إِنْ هٰذَا إِلَّا مَلَكٌ
دا خو بشر نه دے، نه دے دا مګر ملک (فرښته)
كَرِيمٌ ﴿۳۱﴾ قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِي
غرتمند دے۔ اُوئیل دے ښځے تو دا هغه کس دے چه تاسو

ملا ۔ په دے آیت کښں ذکر دے د دفع کولو د زلیخا ، طعن د زنانولره د خپل ځان نه۔ او ښکاره کول د خپل عذر دی په محبت د هغه کښں۔
فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ ، مکریے د دے وجے نه اوئیل چه دوی دا خبرے ذریعه ګرځوله د پاره د بیدا ولو د یوسف علیه السلام یا د زلیخا یا د دے وجے نه چه دا غیبت وو او غیبت هم پټ وی پشان د مکر کولو۔
وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَأً ، مراد د دینه تکیاګانے او بالختونه دی یا مراد ترینه خوراک دے چه په حالت د تکیه کښں خوری او د دینه په حدیث د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښں ضمنًا منع راغلے ده یعنی نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه زه په تکیه لګولو سره خوراک نه کوم - بل قول دا دے چه متکاء هر هغه خوراک ته وئیلے شی چه په چاړه یا ندے پریکولے کیږی۔
سِكِّينًا ، په چړو یا نډ ے خوراک کول د هغے زمانے تهذیب ګڼړلے کیدلو۔
أَكْبَرْنَهُ ، یعنی هیبت زده شوے د هغه د ظاهری حسن او جمال نه سره د حسن د نبوت او خائسته اخلاقو نه او حدیث صحیح کښں راغلی دی چه یوسف علیه السلام لره شطر (نیم) حسن ورکړے شوے وو۔
وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ، مراد د قطع نه زخمی کول دی په وجه د حیرانیدلو د دوی حسن د یوسف علیه السلام نه ، یا معنی حقیقی مراد ده۔

لُمْتُنَّنِي فِيهِ ۭ وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ

زهٔ ملامته کولم د ده په باره کښ، او یقیناً ما د ده غلول کول

عَنْ نَّفْسِهٖ فَاسْتَعْصَمَ ۭ وَلَئِنْ لَّمْ

په باره د نفس د ده کښ نو ده ځان ساتلے دے (زما نه)، او که او نه کړو

يَفْعَلْ مَآ اٰمُرُهٗ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُوْنًا

دهٔ هغه کار چه زهٔ ورته حکم کوم نو خامخا جیل ته به دننه کړیشی او شی به دے

مِّنَ الصّٰغِرِيْنَ ﴿٣٢﴾ قَالَ رَبِّ السِّجْنُ

د بے عزتو نه. او ویل یوسف اے ربه جیل

وَقُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ، دا کلمه عادتاً استعمالیږی، په وخت د تعجب کښ په معنیٰ د سبحان الله او معاذ الله سره دا دلیل دے چه دوی د الله تعالیٰ پاکوالے منلو او حاش دلته مصدر دے په معنیٰ د لرے والی او مراد تربنه پاکوالے دے.

اِنْ هٰذَآ اِلَّا مَلَكٌ كَرِيْمٌ، دا تشبیه ورکول په پاکدامنئ کښ دی یعنی چه د ملائکو پشان پاک دے. یا دا تشبیه په حسن کښ ده اګرچه ملائک دوی نه دی لیدلی لیکن مشهور دی ملائک په حسن کښ لکه چه شیطان مشهور دے په بد شکلئ کښ.

۳۲:- په دے آیت کښ اول ملامت کول د زلیخا دی زنا نو لره په بدل د هغوی د لعن کښ او بیا تصریح د زلیخا په عصمت د یوسف علیه السلام باندے او بیا دباؤ کول دی په هغه باندے په قید کولو او ذلیل کولو سره د پاره د خپل مقصد حاصلولو.

فَاسْتَعْصَمَ، س او تا د ډیرے مبالغے دی په عصمت کښ.

مِنَ الصّٰغِرِيْنَ، اشاره ده چه جیل کښ به د ده هیڅ لحاظ نشی کیدلے د وجے د دینه چه زما غلام دے بلکه ذلیل به کړے شی.

أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِيٓ إِلَيْهِ ۚ

زیات خوښ دے ما ته د هغه کار نه چه دا بلیږی ما بلی هغه ته

وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ

او که تا ز ما وا نهړول د دوی مکرونه

أَصْبُ إِلَيْهِنَّ وَأَكُن مِّنَ الْجَٰهِلِينَ ﴿٣٣﴾

کوږ به شم دوی ته او شم به د ناپوهه خلقو نه ۔

فَاسْتَجَابَ لَهُۥ رَبُّهُۥ فَصَرَفَ عَنْهُ

نو قبوله کړه د ده دعا رب د ده نو او ګرځوی ئے د ده نه

۳۳ :- په دے آیت کښ ذکر د غوره کولو دے د یوسف علیه السلام قید سره د پاره د بچ کیدلو د دے زنانو نه او احتیاج پیش کول دی الله تعالیٰ ته د ګناه نه په بچ کیدلو کښ۔

او کَیْدَهُنَّ ، کښ اشاره ده چه دغه ټولو زنانو د یوسف علیه السلام نه مطالبه کړے وه د ځان د پاره یا سفارش ئے کړے وو د زلیخا د پاره۔ جیل ئے د دے وجے نه خوښ کړلو چه معلومه شوه چه د دے ګناه نه د بچ کیدلو بله لار نشته بغیر د جیل نه او دا عادت د صالحینو دے چه مصیبت غوره کوی په مقابله د معصیت کښ ، بیا هر کله چه جیل هم کافی نه دے د بچ کیدلو د پاره بغیر د مدد د الله تعالیٰ نه د دے وجے نه ئے اُوئیل وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ إِلَيْهِنَّ وَأَكُن مِّنَ الْجَٰهِلِينَ۔

فائده :- د دے آیت نه معلومه شوه چه کله یو انسان مبتلی شی په مصیبت او په معصیت سره نو لازم ده چه مصیبت غوره کړی په مقابله د معصیت کښ۔

كَيْدَهُنَّ ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۳۴﴾

مکر دَ هغوی ، یقیناً الله تعالیٰ هرڅه آوری او په هرڅه پوهه دے۔

ثُمَّ بَدَا لَهُمْ مِّنْ بَعْدِ مَا رَاَوُا

بیا هغوی ته (دا مصلحت) ښکاره شو روستو دَ لیدلو

الْاٰيٰتِ لَيَسْجُنُنَّهُ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۳۵﴾

دَ دلیلونو دَ پاکدامنئ دَ هغه نه چه دے جیل ته واچوی ترڅه وخته پورے۔

۳۴ :- په دے آیت کښ ذکر دَ قبولیت دَ دعا دَ یوسف علیه السلام دے په بچ کولو سره دَ مکر دَ زنانو نه۔

فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ، دَ دینه معلومه شوه چه مقصد دَ هغه دَ جیل نه دَ ګناه نه بچ کیدل وو۔

۳۵ :- ثُمَّ بَدَا لَهُمْ ، دَ دے فاعل پټ دے یعنی الرای۔

لَيَسْجُنُنَّهُ ، دَ هغې تفسیر دے۔

الْاٰيٰتِ ، نه مراد دلیلونه او علامات دَ عصمت دَ یوسف علیه السلام دی چه هغه مخکښ بیان شول۔ اول معاذ الله وئیل، دویم تیخته کول دروازے ته ، دریم قمیص شلیدل دَ شا دَ طرف نه، څلورم فیصله کول دَ شاهد ، پنځم اقرار دَ عزیز مصر، شپږم اقرار دَ زلیخا دَ ټولو زنانو په مخ کښ ، اووم دُعاء دَ یوسف علیه السلام۔

په دے مِّنْ بَعْدِ مَا رَاَوُا الْاٰيٰتِ ، کښ اشاره ده جیل ته لیږل دَ یوسف علیه السلام دَ پاره دَ ښتولو دَ دے واقعے وو۔ نه دَ وجے دَ دے نه چه هغه څه جرم صادر شوے وو او نه متهم وو په جرم سره۔

وَ دَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ ؕ قَالَ

او ورننوتل دَ ده په وخت کښې جیل ته دوه زلمی (خدمتګاران)، او وئیل

اَحَدُهُمَآ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَعْصِرُ خَمْرًا ۚ

یو دَ هغوی نه یقیناً ما ځان لیدلو خوب کښې چه دَ انګورو نه شراب نچوړوم

وَقَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَحْمِلُ

او اُوئیل بل تن یقیناً ما ځان لیدلو خوب کښې چه اوچتوم

فَوْقَ رَاْسِيْ خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ

په سر باندے ډوډئ خوری مارغان

مِنْهُ ؕ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ اِنَّا نَرٰىكَ

دَ هغے نه، خبر راکړه مونږ ته په تعبیر دَ دے خوب یقیناً مونږ وینو تا لره

مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳۶﴾ قَالَ لَا يَاْتِيْكُمَا

دَ ښه کارکوونکو نه۔ او وئیل یوسف علیه السلام نه به راځی تاسو ته

ملـــ۔ دَ دے آیت نه دَ یوسف علیه السلام دَ واقعے پنځم مقام دے تر ملـــ۴۲ پورے۔

خلاصه :- په دے کښې ذکر دے دَ حال دَ یوسف علیه السلام په جیل کښې او دعوت دَ هغه رسالت ته په معجزه ښکاره کولو سره او دعوت توحید ته په رد دَ شرک سره تفصیلاً بیا بیان دَ تعبیر دَ خوب دَ ملګرو دے۔

تفسیر :- په دے آیت کښې ذکر دَ دوؤ خادمانو دَ بادشاه دے چه جیل ته داخل شوی وو او دَ دے نه دا هم معلومه شوه چه جیل والا درے قسمه دی۔ اول قسم هغه چه جرم ئے کړے وی۔ دویم قسم هغه چه په هغه باندے تهمت دَ جرم وی۔ دریم قسم هغه چه نه پرے تهمت وی او نه جرم وی صرف ظلماً قید کړے شوے وی۔ دَ اول مثال نانبائی دَ بادشاه وؤ او مثال دَ دویم قسم ساقی دَ بادشاه وؤ

طَعَامٌ تُرْزَقٰنِهٖٓ اِلَّا نَبَّاْتُكُمَا

خوراک چه درکیدیشي دخوراک دپاره مګر زه به تاسو

بِتَاْوِيْلِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّاْتِيَكُمَا ؕ

دهغې دحقیقت نه خبرکړم مخکښې دراتللو د هغې نه تاسو ته،

ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِيْ رَبِّيْ ؕ اِنِّيْ

دا تاسو ته چه وایم د هغې وجې نه دی چه رب زما ماته خودلے دی، یقیناً زه

تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ

جدا یم د هغه قوم نه چه ایمان نه لري

بِاللّٰهِ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۷﴾

په الله تعالیٰ او دوی د آخرت نه منکر دی۔

او مثال د دریم قسم یوسف علیه السلام وؤ۔

فَتَیٰنِ، دا دواړه پدے بن تام شوی وؤ چه دوی د بادشاه د قتل دپاره په خوراک یا څښاک کښی بادشاه ته زهر اچولے دی نو دواړه ئے حوالات کښی واچول او د دوی مقدمه شروع وه چه معلومه شي چه کوم یو مجرم دے۔

قَالَ اَحَدُهُمَآ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ، ظاهره داده چه دوی دا خوبونه په حقیقت کښی لیدلے وؤ۔

اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ، دا صفت د هغه په ۲۲ کښی تیر شوے دے او دا دلیل پدے خبره چه یوسف علیه السلام مشهور وؤ په جیل کښی په ښو اخلاقو سره او پدیکښی اشاره ده چه تعبیر دخوب د هغه چا نه طلب کول پکار دی چه صالح او هوښیار وی۔

۳۷:۔ پدے آیت کښی بیان د معجزے د یوسف علیه السلام دے چه هغه خبر ورکول دی د بعضے مغیباتو نو نه په سبب د تعلیم د الله تعالیٰ سره په دلیل د دے قول سره مِمَّا عَلَّمَنِيْ رَبِّيْ، او دا تعلیم وحی ده بیا په آیت کښی اظهار د عقیدے د یوسف علیه السلام

وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَآءِیْۤ اِبْرٰهِیْمَ

او زهٔ تابع یم دَ دین دَ مشرانو خپلو چه ابراهیم

وَاِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ ؕ مَا كَانَ لَنَاۤ

او اسحاق او یعقوب علیهم السلام دی، جائز نه دی مونږ لره

اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَیْءٍ ؕ ذٰلِكَ

چه شریک کړو دَ الله تعالیٰ سره هٔخه شے، دا (توحید)

مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عَلَیْنَا وَعَلَی النَّاسِ

فضل دَ الله تعالیٰ دے په مونږ باندے او په خلقو باندے

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا یَشْكُرُوْنَ ﴿۳۸﴾

لیکن ډیر خلق احسان دَ الله تعالیٰ نه منی۔

دے په براءت دَ هغه سره دَ مشرکانو نه، چه هغه مصر والا وو پداغه وخت کښ۔

اِنِّیْ تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ، دَ ترک نه مراد عراض او براءت کول دی داسے نه چه مخکښ دے په هغه دین کښ وو او بیا ئے پریخودلو ځکه چه انبیاء علیهم السلام هر وخت معصوم وی۔

۳۸:- او په دے آیت کښ اظهار دَ یوسف علیه السلام دے ملت خپل لره اجمالاً په دے لفظ سره چه مِلَّةَ اٰبَآءِیْۤ اِبْرٰهِیْمَ وَاِسْحٰقَ وَیَعْقُوْبَ، او دا درے واړه انبیاء په هغه وخت کښ شام، فلسطین، مصر، عرب کښ مشهور وو په دین دَ حنیفیت سره او دا دلیل دے چه اتباع دَ اباؤ (چه انبیاء دی) په دلیل کښ پیش کول بکار دی او تفصیلاً په دے لفظ سره مَا كَانَ لَنَاۤ اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَیْءٍ، او دا دلیل دے په دے خبره چه توحید، دین دَ ټولو انبیاؤ علیهم السلام دے۔

مِنْ شَیْءٍ، په دے لفظ کښ ډیر تعمیم دے ځکه چه لفظ شَیْءٍ

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ ءَاَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُوْنَ
اے ملګرو په جیل کښې آیا دَ بندګۍ حقداران چه جدا جدا وي

خَيْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۳۹﴾
ښه دي (دَ پاره دَ بندګۍ) او که الله تعالیٰ چه یو دے او زور آور دے.

عام دے او په سیاق دَ نفی کښې دے نو رعموم غواړي او حرف دَ من هم دَ تاکید دَ عموم دَ پاره دے نو دا شامل دے بتانو، اونو، ګټو، دربارونو، اولیاؤ، پیرانو، قبرونو، ملائکو او پیریانو ټولو ته.

وَعَلَى النَّاسِ، یعنی تعلیم دَ توحید دَ الله تعالیٰ ټولو انسانانو ته کړے دے په فطرت پیدا کولو سره یا په دعوت دَ انبیاؤ علیهم السلام سره.

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ، لویه ناشکري شرک کول دي.

س۳۹ :- روستو دَ تمهید نه دعوت ورکوی جیل والو ته.

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ، په دے لفظ کښې شفقت او نرمي ده یعنی زهٔ ستاسو دَ ملګرتیا حق ادا کوم. په لفظ دَ سجن کښې اشاره ده چه صرف دَ جیل ملګري ئے وو دَ دین ملګري نه وو او ابوبکر رضی الله عنه دَ نبي صلی الله علیه وسلم سره په دین کښې ملګرے وو دَ دے وجے نه ئے په سورة توبه ۴۰ آیت کښې ویلي دي لِصَاحِبِهٖ او فِي الْغَارِ ئے مخکښې ذکر کړے دے نو قول دَ شیعه ګانو باطل دے چه معنوي لصاحبه قیاس کوي په یصاحبي السجن باندے او وائي چه په دیکښې هیڅ خوره والے دَ ابوبکر رضی الله عنه نشته (خذلهم الله تعالیٰ) یصاحبي السجن صاحبين تثنیه ده تو یوه "یاء" دَ (متکلم) دَ ثقل دَ وجے نه حذف ده. په دے آیت کښې رد دے په شرک دَ ربوبیت باندے په طریقه دَ الزام دَ حجت.

مُّتَفَرِّقُوْنَ، یو معنیٰ دا ده چه دَ جدا جدا حاجتونو دَ پاره مقرر کړے شوي دي.

مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اَسْمَآءً

تاسو بندګي نه کوئ سوا د الله تعالیٰ نه مګر د داسې نومونو

سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ

چه ایښي دي هغه تاسو او مشرانو ستاسو

مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ؕ

نه دے رالیږلے الله تعالیٰ په دے باندے هیڅ دلیل ،

اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ؕ اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا

نه دے واک اختیار مګر صرف د الله تعالیٰ دے، حکم ئې کړیدے چه بندګي به نه کوئ

اِلَّآ اِيَّاهُ ؕ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ

بغیر د هغه نه دا دین پوخ دے ( په دلیلونو سره )

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۰﴾

لیکن ډیر خلق نه پوهیږي .

دویمه معنیٰ دا ده چه د دوی په مرتبو کښ فرق دے په نیز د مشرکانو .

خَيْرٌ ، نه مراد دا دے چه د استحقاق د عبادت او ربوبیت د پاره لائق دے .

اَلْوَاحِدُ ، یوه معنیٰ دا ده چه په ذات او صفاتو کښ یو دے مثال او شبیه نظیر ئې نشته . دویمه معنیٰ دا ده چه یو اځې حقدار د بندګئ دے .

اَلْقَهَّارُ ، په هرڅه او په هر کار باندے زورآور دے او نور معبودان ټول عاجز دي .

۴۰ ، هر کله چه توحید د ربوبیت مستلزم دے توحید د الوهیت لره نو پدے آیت کښ تفصیلاً رد دے په شرک فی العبادة او په شرک فی الحکم باندے او مراد د اسماؤ نه هغه اسماء ئې

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ اَمَّآ اَحَدُكُمَا

اے ملگرو دَ جیل هرچه ستاسو دا یوتن دے ربه په شی

فَيَسْقِيْ رَبَّهٗ خَمْرًا ۚ وَاَمَّا الْاٰخَرُ

نو څښکوی به په مولا خپل باندے شراب او هرچه دا بل دے

فَيُصْلَبُ فَتَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْ رَّاْسِهٖ ؕ

نو دے به پهانسی کړیشی نو خوری به مارغان دَ دهٔ دَ کپرئ نه ،

قُضِيَ الْاَمْرُ الَّذِيْ فِيْهِ

فیصله کړے شویده (دَ مخکښ نه) دَ دغه کار چه تاسو دَ هغے په باره کښ

صفتی دی چه مشرکانو مشهور کړی دی خپل معبودان په هغه سره لکه مشکل کشا او غوث اعظم او دَ یادو ذمه وار وغیره او دا سے په سورة اعراف ۷۱ کښ ذکر کړی دی او په هغے کښ لفظ دَ نزل دے

مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ، نو په لفظ دَ ما انزل او دَ ما نزل کښ اشاره ده چه کومه وحی الله تعالیٰ په یوځل رالیږلے ده او یا ئے لږه لږه رالیږلے ده، نو په هغے دواړو کښ دلیل نشته مشرکانو لره او دا سے په سورة نجم ۲۳ کښ هم شته۔

اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ، حکم دوه قسمه دے.حکم تکوینی یعنی نظام دَ عالم چلول او تصرف کول۔

دویم حکم تشریعی حکمونه دَ عباداتو او امر و نهی او حلال او حرام جوړول نو دَ دے دواړو قسمونو اختیار صرف دَ الله تعالیٰ سره دے امر په معنیٰ دَ حکم کولو دے یا مراد امر بالتوحید او حاصل دَ توحید الا تعبدوا ..... آه دے۔

تَسْتَفْتِيٰنِ ﴿۴۱﴾ وَقَالَ لِلَّذِىْ ظَنَّ

تپوسنه کول ـ او اُوئیل یوسف هغه یو تن ته چه پوهه وُ

اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِىْ عِنْدَ

یوسف چه دے به بچ کیږی دَ دے دواړو ته یاد کړه زما دا حالات په وړاندے

رَبِّكَ ز فَاَنْسٰهُ الشَّيْطٰنُ ذِكْرَ رَبِّهٖ

دَ مولی خپل ، نو هیر کړه دَ هغه نه شیطان یاداشت ورکول مولی خپل ته

فَلَبِثَ فِى السِّجْنِ بِضْعَ سِنِيْنَ ﴿۴۲﴾ ع

نو حصار شو یوسف په جیل کښ غو کاله ـ

۵ ع ۷ ۱۵

سلا ـ په دے قصه کښ احسن طریقه دَ دعوت ذکر شویده چه هر کله دغه کسانو دَ خپل مقصد دَ پاره یوسف علیه السلام ته رجوع اوکړه او حاجت مند شول نو یوسف علیه السلام ورته اول دَ توحید او رسالت دعوت ورکړو او پس دَ بیان دَ توحید او دَ رسالت نه بیان دَ تعبیر دَ خوب دَ ملګرو دَ یوسف علیه السلام دے چه په هغے کښ دَ یو نجات ذکر دے ، او دَ بل سزا ، او په لفظ دَ قُضِىَ الْاَمْرُ، کښ اشاره ده چه دا تعبیر دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه یقینی دے نو په خوب کښ لیدل دَ سر دپاسه مارغان ډوډئ خوری دَ دے تعبیر دا شو چه دَ هغه دَ سر مازغه خوری او خوب اکثر دَ تمثیلاتو نه وی ـ

سلا :- په دے آیت کښ بیان دَ دے خبرے دے چه یوسف علیه السلام یوه ذمه واری اوسپارله هغه کس ته چه نجات موندونکے وُ هغه ذمه واری دا وه چه زما دا دین او زما حال ته چه دَ هغے نه خبر شوے بادشاه ته اورسوه ـ

او مقصد په یکښ تبلیغ دَ دین توحید وُ بادشاه ته ، لیکن شیطان دَ هغے ملګری نه تبلیغ دَ مسئلے او بیان دَ حال دَ یوسف علیه السلام هیر کړو ـ او دا سبب شو دَ دے چه

وَقَالَ الْمَلِكُ إِنِّيٓ أَرَىٰ سَبْعَ
او ووئيل بادشاه يقيناً ما ليدلے (په خوب کښ) اووه
بَقَرَٰتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ
غواګانے څربے چه خوری هغے لره اووه
عِجَافٌ وَسَبْعَ سُنۢبُلَٰتٍ خُضْرٍ
نرے او اووه وږی شنه
وَأُخَرَ يَابِسَٰتٍ ۖ يَٰٓأَيُّهَا الْمَلَأُ
او نور (اووه) اوچ شوی ، اے دربار والو
أَفْتُونِي فِي رُءْيَايَ إِن كُنتُمْ
تعبير راکړئ ماته زما د دے خوب که يئ تاسو

يوسف عليه السلام په جيل کښ ډيره موده تيره کړه ، او په هغه موده کښ اختلاف دے د مفسرينو چه اووه کاله يا دولس کاله او يا څوارلس کاله وو۔

لِلَّذِي ظَنَّ أَنَّهُ نَاجٍ مِّنْهُمَا ، ضمير د ظن راجع دے ساقی ته يا راجع دے يوسف عليه السلام ته او ظن په معنی د يقين دے ځکه چه تعبير د نبی په وحی سره وی۔

اذْكُرْنِي عِندَ رَبِّكَ ، مراد د دينه د جيل ټول حالت دے چه په هغه کښ معجزه او توحيد ټول داخل دی۔

فَأَنسَاهُ الشَّيْطَٰنُ ذِكْرَ رَبِّهِ ، صحيح دا ده چه ضمير راجع دے ساقی ته په قرينه د وَادَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ ۴۵ کښ۔

لِلرُّءْيَا تَعْبُرُوْنَ ﴿٤٣﴾ قَالُوْٓا اَضْغَاثُ

دَ خوب تعبير ويستونكې - هغوى اُوئيل دا ګډ وډ

اَحْلَامٍ ۚ وَمَا نَحْنُ بِتَاْوِيْلِ الْاَحْلَامِ

خوبونه دي او موږ نه يو په تعبير دَ داسې خوبونو

بِعٰلِمِيْنَ ﴿٤٤﴾ وَقَالَ الَّذِيْ نَجَا

پوهيدونكې - او اُوئيل هغه تن چه جيل نه وتلې وؤ

سـ٤٣ :- دَ دے آيت نه شپږم مقام دے تر آيت سـ٥٧ پورے -
خلاصه :- پدے مقام کښ بيان دَ خوب دَ بادشاه دے - بيا عجز دَ نورو خلقو دے دَ هغې دَ تعبير نه ، او تعبير دَ يوسف عليه السلام دے دَ هغې خوب سره دَ تدبير بيا نولو نه - بيا اظهار دَ پاكدامنۍ دَ يوسف عليه السلام دے په اقرار دَ ټولو زنانو او په اقرار دَ زليخا دَ بادشاه په وړاندے بيا وتل دَ هغه دي دَ جيل نه او مقرر كول دي دَ بادشاه هغه لره په انتظام دَ خزانو دَ مصر، سره دَ عزت نه -
تفسير :- پدے آيت کښ تفصيل دَ خوب دَ بادشاه دے او تعبير طلب كول دي دَ خپل مشورے والو نه - او هركله چه تعلق دَ قحط دَ غلو او خاروؤ سره وي دَ دے وجے نه په دے خوب کښ بادشاه دا دواړه څيزونه اوليدل -
تَعْبُرُوْنَ ، تعبير تفسير دَ خوب ته وئيلے شي ګويا چه دَ ظاهر نه باطن ته عبور كيږي او تاويل عام دے -
سـ٤٤ :- پدے آيت کښ بيان دَ عجز دَ اهل شورٰى دے دَ تعبير دَ خوب نه او تسلي وركول دي بادشاه ته چه ستا خوب تعبير ته محتاج نه دے ، ځكه چه ګډ وډ خوب دے -
اَضْغَاثُ ، جمع دَ ضغث ده هغه پنډ دَ خشاک ته وئيلے شي چه ګډ وډ لرګي (راوچ او شنه) پکښ موجود وي نو ګډ وډ خوب ته هم وئيلے شي -

مِنْهُمَا وَادَّكَرَ بَعْدَ اُمَّةٍ اَنَا

دَ هغه دوؤ نه او یاد ئې کړه روستو دَ ځه مودے نه زه به

اُنَبِّئُكُمْ بِتَاْوِيْلِهٖ فَاَرْسِلُوْنِ ﴿۴۵﴾

تاسو خبر کړم په تعبیر دَ دے خوب سره نو ما او لیږئ.

يُوْسُفُ اَيُّهَا الصِّدِّيْقُ اَفْتِنَا

اے یوسف اے ډیر رشتینیه تعبیر راکړه مونږ ته

فِيْ سَبْعِ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ يَّاْكُلُهُنَّ

په باره دَ اووؤ غواګانو څربو کښې چه خوری هغے له

سَبْعٌ عِجَافٌ وَّسَبْعِ سُنْۢبُلٰتٍ خُضْرٍ

اووه ډنګرے او اووه اوږی شنه

وَّاُخَرَ يٰبِسٰتٍ لَّعَلِّيْٓ اَرْجِعُ اِلَى النَّاسِ

او نور اوچ دَ پاره دَ دے چه واپس لاړشم خلقو ته

اَلْاَحْلَامِ . باطل خوبونه یا عام خوبونه مراد دی. الله تعالی دغه خلق عاجز کړل دَ تعبیر دَ خوب دَ بادشاه نه دَ پاره دَ دے چه دوی رجوع او کړی یوسف علیه السلام ته.

۴۵ :- په دے آیت کښې ذکر دَ هغه ساقی دے چه پیغام دَ یوسف علیه السلام ئې هیر کړے وؤ او اوس ورته وریاد شو نو اراده ئې او کړه چه دَ هغه ملاقات پیښیده او کړی او تعبیر ترینه طلب کړی دَ دے وجے نه فَاَرْسِلُوْنِ ، سره ئې ځائے او طرف دَ یوسف علیه السّلام ذکر نه کړو دَ پاره دَ دے چه بل څوک او نه لیږی.

لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٤٦﴾ قَالَ تَزْرَعُونَ

دَ دے دَپارهٔ چه هغوی پوهه شي ۔ اُوئیل یوسف کرونده به کوئ

سَبْعَ سِنِينَ دَأَبًا فَمَا حَصَدْتُمْ

اووه کاله پیرله پسے نو هغه چه تو کړئ تاسو

فَذَرُوهُ فِي سُنْبُلِهِ إِلَّا قَلِيلًا

نو پریږدئ هغه په وږو خپلو کښ مګر لږ

مِمَّا تَأْكُلُونَ ﴿٤٧﴾ ثُمَّ يَأْتِي مِنْ بَعْدِ

دَ هغه نه چه خورئ تاسو ۔ بیا به راشي روستو

ذَٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ

دَ دینه اووه کالونه سخت او به خوري هغه (غله) چه تاسو مخکښ جمع کړې وی

سلا۴ ۔ په دے آیت کښ پیش کول دَساقي دی خوب دَ بادشاه یوسف علیه السلام ته دَپاره دَ تعبیر ۔ او لفظ دَ الصِّدِّيقُ، دلیل دے په دے باندے چه دے ساقي یوسف علیه السلام صادق موندلے وو ۔

يَعْلَمُونَ ، چه پوهه شي په تعبیر دَ خوب یا پوهه شي په مرتبه دَ یوسف علیه السلام باندے ۔

سلا۷ ۔ په دے آیت کښ ذکر دَ تعبیر دَ سَبْعِ بَقَرٰتٍ سِمَانٍ او وَسَبْعِ سُنْبُلٰتٍ خُضْرٍ، دے سره دَ تعلیم دَ تدبیر نه او دا نبوی تعبیر دے او حسن خلق دَ یوسف علیه السلام دا دے چه دغه سړی ته ئے هیڅ ملامتیا ورنکړله ۔

تَزْرَعُونَ، دا خبر په معنیٰ دَ امر دے ۔

دَأَبًا ، داب عادت ته وئیلے شي یعنی تورکله چه څه رنګه کروندے کوئ پرله پسے نو اووه کاله نور هم دا سے اوکړی ۔ او په وږو کښ بریخودل دَپاره دَ دے چه چینجو او مرغو وغیره نه بچ پاتے شي ۔

لَهُنَّ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تُحْصِنُونَ ﴿۴۸﴾

هغې لره مګر لږ د هغې نه چه تاسو تخم د پاره ساتئ.

ثُمَّ يَأْتِي مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ

بیا به راشي روستو د دینه دا سې کال چه په هغې کښې به

يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ﴿۴۹﴾

بارانونه اوشي په خلقو باندې او په هغې کښې به میوې نچوړوئ.

۴۸:- په دې کښې بیان د تعبیر د سَبْعٌ عِجَافٌ وَأُخَرَ يَابِسَاتٍ دې.
يَأْكُلْنَ، فتاکول مراد دی او نسبت د اکل کلونو ته په طریقه د توسیع د کلام دې او دینه مجاز هم وئیلې کیږي.
فائده :- دا واقعه دلالت کوي په دې خبره چه خوب لیدل د کافر هم ریختیني کیدې شي او د دې خوب په صداقت کښې معجزه د یوسف علیه السلام ده.
تُحْصِنُونَ، احصان بچ ساتلو ته وئیلې شي یعني د آینده کال د تخم کرلو د پاره بچ اوساتئ.
۴۹:- په دې آیت کښې خبر ورکول دی د هغه څیز چه نه وو په خوب د بادشاه کښې او په دې کښې دلیل دې په فضیلت او په نبوت د یوسف علیه السلام.
وَفِيهِ يَعْصِرُونَ، عصیرونه رجوس ویستل د انګورو وغیره نه او د زیتون نه او کونزلو او شرشم نه تیل ویستل.
يُغَاثُ، مراد د دې هغه بارانونه دی چه په هغې سره قحط ختمیږي دا سې باران ته غیث وئیلې شي.

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ ۚ فَلَمَّا

او اوئيل بادشاه راولئ ماته دغه سړے نو هر كله چه

جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ

راغے استاذے اوئيل هغهٔ (يوسف عليه السلام) واپس شه مولا خپل ته

فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي

نو تپوس اوكړه د هغه نه څه حال دے د هغه زنانو

قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ۚ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ

چه زخمی كړل دوئ هغوی لاسونه خپل، يقيناً زمارب د هغوی په مكر باندے

عَلِيمٌ ﴿٥٠﴾ قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَاوَدْتُنَّ

پوهه دے. اوئيل بادشاه (زنانو ته) دا څه واقعه ده ستاسو چه غولولو تاسو

يُوسُفَ عَن نَّفْسِهِ ۚ قُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ

يوسف لره د هغه د نفس په باره كښ، دوی اوئيل پاكی ده الله تعالی لره

ف۵: په دے آيت كښ طلب كول د بادشاه دی يوسف عليه السلام لره د پاره د ملاقات او د پاره د راويستلو د جيل نه ليكن يوسف عليه السلام شرط اولګوؤ په بادشاه باندے د تحقيق كولو د تيرے شوے واقعے د پاره د دے چه د بدنامئ نه پاك شی مخكښ د شروع كولو د دعوت نه خلقو ته. او دا اجتهاد ووُ د يوسف عليه السلام. او زموږ د نبی صلی الله عليه وسلم اجتهاد دا ووُ چه تلوار او كړيشی په دعوت د توحيد كښ. نو د دے وجه نه نبی كريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلی دی لَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ مَا لَبِثَ يُوسُفُ لَأَجَبْتُ الدَّاعِيَ ركه زهٔ ايسار وے په جيل كښ څومره موده چه ايسار ووُ يوسف عليه السلام نو ما به د داعی خبره قبوله كړے وے).

مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ، يعنی په څه وجه سره دوی خپل لاسونه زخمی كړے ووُ د دا سے ښځو ذكر ئے څكه اوكړو چه دوی

مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ ؕ قَالَتِ

نه یو خبر شوے مونږ په هغه باندے د هیڅ نقصان ، او ویل

امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ الْـٰٔنَ حَصْحَصَ

ښځې د عزیز اوس په ډاګه شو

الْحَقُّ ۫ اَنَا رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ

حق ما ده غلول کول په باره د نفس د ده کښ

وَاِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۵۱﴾ ذٰلِكَ

او یقینًا دے د رشتینو نه دے. (دا ئے ځکه اقرار اوکړو)

لِيَعْلَمَ اَنِّىْ لَمْ اَخُنْهُ بِالْغَيْبِ

چه پوهه شی دے چه یقینًا ما هیڅ نقصان د ده پټی شا نه دے کړے

وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِىْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ ﴿۵۲﴾

او یقینًا الله تعالیٰ نه کامیابوی مکر د خیانت کرو.

په اصل کښ ګواهانے دی په عصمت د یوسف علیه السلام په قول د زلیخا باندے چه فاستعصم ۳۲ آیت دے او د ګواه نه تپوس کول ضروری دی.

۵۱:- په دے آیت کښ شهادت د زنانو دے سره د زلیخا نه په پاکی امنځ د یوسف علیه السلام د بادشاه په مخکښ.

قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ ، خطب ، غټے واقعے ته وئیلے شی یعنی په تاسو باندے څه باعث اوسبب وو چه تاسو د یوسف علیه السلام نه مطالبه کوله.

۵۲:- دا هم داخل دے په قول د زلیخا کښ او مراد ئے دا دے چه په وخت د غائب والی د یوسف علیه السلام کښ ما د هغه په باره کښ هیڅ خیانت نه دے کړے په بهتان وئیلو سره او نه په دروغه سره په هغه باندے.

وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِىْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ ، دلیل دے په دے خبره چه زلیخا اقرار کوونکے وه په الله تعالیٰ لیکن شرک ئے کوو.

وَمَآ اُبَرِّئُ نَفْسِىْ ۚ اِنَّ النَّفْسَ

او زهٔ دَ خپل ځان پاکی نه وایم یقیناً نفس

لَاَمَّارَةٌۢ بِالسُّوْٓءِ اِلَّا مَا رَحِمَ

ډیر خودونکے دَ بدیٔ دے مګر هغه څوک چه رحم اوکړی

رَبِّىْ ؕ اِنَّ رَبِّىْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۵۳﴾

رب زما په هغه باندے، یقیناً رب زما بخښنه کوونکے رحم کوونکے دے۔

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُوْنِىْ بِهٖٓ اَسْتَخْلِصْهُ

او اوئیل بادشاه راولئ ما ته دے چه خاص ئے کړم دَ پاره دَ (کار)

لِنَفْسِىْ ۚ فَلَمَّا كَلَّمَهٗ قَالَ اِنَّكَ

ځان نو هر کله چه خبرے اوکړے دَ هغه سره اوئیل بادشاه یقیناً ته

۵۳۔ دا هم داخل دے په قول دَ زلیخا کښ۔

فائده ۱:۔ بعضو مفسرینو دا دواړه آیتونه قول دَ یوسف علیه السلام ګرځولے دی۔ لیکن دا صحیح نه ده ځکه چه یوسف علیه السلام تر دغه وخته پورے دَ جیل نه راوتلے نه وو۔ او هم دارنګ ذکر کړیدی ابن کثیر او قرطبی او شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمهم الله وغیره۔

فائده ۲:۔ په دے آیت کښ اشاره ده چه نفس درے قسمه دے په اعتبار دَ صفاتو سره یعنی یو نفس دے او په درے صفتونو سره تقسیم دے۔

اول قسم، اماره بالسوء دے او دا صراحتًا ذکر دے۔ او دویم قسم، نفس لوامه دے هغے ته اشاره ده په لفظ دَ غفور سره۔ او دریم قسم، نفس مطمئنه دے هغے ته اشاره ده په لفظ دَ رحیم سره۔

اِلَّا مَا، په معنیٰ دَ من سره دے۔

رَحِمَ، مراد دَ رحمت نه عصمت دے۔

۵۴:- پدے آیت کښ طلب کول دَ بادشاه دی یوسف علیه السلام لره په دوییم ځل- لیکن هر کله چه معلومه شوه بادشاه ته پاکدامنی دَ یوسف علیه السلام او علم او صبر دَ هغه نو زیات یے کړو دا لفظ چه استخلصه لنفسی، دَپاره دَ عزت او اکرام دَ هغه- او هر کله چه هغه راغے او ورسره خبرے اوشوے نو دَ هغه دَ خبرو تاثیر اوشو په بادشاه باندے نو هغه یے دَ ځان سره په اقتدار او مکانت کښ شریک کړو-

۵۵:- پدے آیت کښ یوسف علیه السلام تعین کړے دے دَ منصب مناسب پس دَ هغے نه چه بادشاه ده ته عام مکانت اوسپارلو او یوسف علیه السلام دَ ځان دَپاره دَ اول نه طلب دَ مرتبے نه دے کړے نو پدے آیت سره دلیل نیول دَ هغه چا دَپاره صحیح نه دی چه دَ ځان دَپاره اقتدار طلب کوی ځکه چه په صحیح حدیث سره ثابت دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ طلب دَ امارت نه منع فرمائیلے ده-

انی حفیظ علیم، دا ذکر دَ علت دے دَپاره دَ تخصیص دَ منصب، دا تزکیه دَ نفس نه ده ځکه چه الله تعالیٰ دَ تزکیے دَ نفس نه منع فرمائیلے ده او که تزکیه شی نو هم انبیاء علیهم السلام دَپاره جائز ده په قرینه دَ دے قول دَ الله تعالیٰ "هو اعلم بمن اتقی" روستو دَ دینه چه فلا تزکوا انفسکم او دا په سورة نجم ۳۲ کښ راغے او بله وجه دا ده چه په هر نبی باندے اصلاح او خیرخواهی دَ خپل قوم واجب ده نو هغه دَ دے وجے نه کار دَ خزانو دَ ملک خوښه کړو-

وَكَذٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ ۚ

او دغسې ورکړې وو موږ یوسف (علیه السلام) ته په زمکه کښې ځائے

يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ ۚ نُصِيبُ

دیره یې نیوله دَ هغې نه چې کوم ځائے به یې خوښه وه ، رسوؤ موږ

بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَّشَاءُ وَلَا نُضِيعُ

خپل رحمت هغه چاته چې اوخواړو او نه برباد وؤ موږ

أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٦﴾ وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ

بدله دَ خاستنه عمل کوؤنکو ۔ او خامخا بدله دَ آخرت

خَيْرٌ لِّلَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا

غوره ده هغه چالره چې ایمان یې راوړے وی او

سلاله ۔ پدے آیت کښ ذکر دَ انعام دَ تمکین دے په یوسف علیه السلام باندے پس دَ صبر کولو دَ هغه نه په مصیبتونو باندے ۔ وَكَذٰلِكَ، کښ تیر شوے نعمتونو ته اشاره ده دَ کوهی او دَ جیل نه راویستل او دَ بادشاه په زړه کښ دَ هغه عزت اچول ۔ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ، په آیت سلا کښ دَ دے تمکین دَ پاره یو ذریعه ذکر کړے وه یعنی په کور دَ عزیز مصر کښ ځائے ورکول او پدے آیت کښ په زمکه دَ مصر کښ تمکین مراد دے دَ دے وجے نه ورپسے یې اوفرمائیل ۔ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ، پدیکښ عام بشارت دے هغه چاته چې صبر اوکړی په مصیبتونو او ځان بچ کړی دَ ناروا کارونو نه ۔

يَتَّقُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَجَآءَ اِخْوَةُ يُوْسُفَ

تقوٰی لری ۔ او راغلل وروڼه دَ یوسف علیه السلام

فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ

نو داخل شول هغه ته نو هغه او پیژندل او دوی

لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿٥٨﴾ وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ

هغه لره نا اشنا گنړونکی وو ۔ او هرکله چه تیار کړو هغه دوی لره

بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُوْنِيْ بِاَخٍ لَّكُمْ

سامان دَ سفر دَ دوی اوئیل هغه راولئ ما ته ورور ستاسو

مِّنْ اَبِيْكُمْ ۚ اَلَا تَرَوْنَ اَنِّيْۤ اُوْفِي

چه ستاسو دَ پلار نه دے آیا تاسو نه گورئ چه زهٔ پوره ورکوم

٥٧ :۔ هرکله چه ذکر شو، انعام دنیوی په تیر شوی آیت کښ نو ذکر یې کړو په دے آیت کښ اجر دَ آخرت دَ پاره دَ تزهید فی الدنیا۔

خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، په یکښ اشاره ده چه خیر دَ آخرت صرف په ایمان او تقوٰی سره حاصلیږی او خیر دَ دنیا عام دے مومن او غیر مؤمن دواړو دَ پاره دے۔

فائده :۔ محققینو مفسرینو لیکلی دی چه عزیز مصر مړ شو او یا دَ خپل منصب نه معزول کړے شو او دَ هغه په ځائے یوسف علیه السلام مقرر کړیشو او بادشاه دَ مصر ایمان راوړو۔ او دَ زلیخا سره نکاح دَ یوسف علیه السلام او دَ هغے دوباره ځوانیدل ثابت نه دی په صحیح روایت سره۔

٥٨ :۔ دَ دے آیت نه اووم مقام دے تر آیت ٦٨ پورے۔

خلاصه :۔ په یکښ ذکر دَ راتللو دَ وروڼو دَ یوسف علیه السلام دے په اول ځل او سبب جوړول دَ یوسف علیه السلام دی دویم ځل راتللو ته په طلب کولو دَ ورور خپل چه نوم دَ

اَلْكَيْلَ وَاَنَا خَيْرُ الْمُنْزِلِيْنَ ﴿٥٩﴾ فَاِنْ

| نو که | میلمستیا ورکوونکے یم۔ | بنه | او زۀ | راشن |
|---|---|---|---|---|

لَّمْ تَاْتُوْنِيْ بِهٖ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ

| راشن | نو نشته ستاسو | هغه لره | وستوء | را نۀ | تاسو |
|---|---|---|---|---|---|

هغه بنیامین وو۔ او په واپس کولو دَ قیمت دَ هغوی هغوی ته۔ او بیا تعلیم دَ پلار دے ځانمو ته دَ طریقے دَ دویم ځل دَ تللو دَ پاره دَ دفع دَ ضرر۔

هر کله چه زمانۀ قحط شروع شوه او اثر دَ قحط کنعان ته اورسیدو او یوسف علیه السلام دَ غلے لوے سټاک (ذخیره) جمع کړے وو او په مصر کښ یوسف علیه السلام په ښه تدبیر سره تقسیم دَ غلے شروع کړے وو او دَ یو شخص دَ پاره چه حاضر به وو یو کیل غله په مناسب قیمت مقرر وه نو دا خبر یعقوب علیه السلام ته اورسیده او نو هغه لس ځامن را اولیږل۔

تفسیر:۔ په دے آیت کښ دَ هغوی راتلل ذکر دی او هر کله چه په یوسف علیه السلام کښ فراست دَ نبوت موجود وو نو دوی ئے او پیژندل۔ او دَ ورونړو دَ یوسف فراست کم وو او دا ئے په خیال کښ نه راتلل چه یوسف علیه السلام به دے مقام ته رسیدلے وی نو دوی هغه او نه پیژندلو اگرچه هغه سره مخاطب شوی وو۔

۵۹ :۔ هر کله چه دوی دَ یوسف علیه السلام نه دَ غائب ورور دَ پاره چه هغه بنیامین وو حصّه طلب کړه نو هغه ورته اُوئیل چه چونکه غائب ته حصه نه ملاویږی نو هغه ورور ستاسو حاضر کړئ او دَ هغه دَ حاضرولو ترغیب ئے ورکړو په دے جملے سره اَلَا تَرَوْنَ اَنِّیْۤ اُوْفِی الْكَیْلَ وَاَنَا خَیْرُ الْمُنْزِلِیْنَ ۔

مِنْ اَبِيْكُمْ ، یعنی دوی ورته وئیلی وو چه هغه زمونږ علاتی ورور دے مور ئے زمونږ نه جدا ده۔

وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ ، تجهیز، په اصل کښ دَ مسافر

عِنْدِیْ وَلَا تَقْرَبُوْنِ ﴿۶۰﴾ قَالُوْا

زما سره او مه نزدے کیږئ زما وطن ته ۔ اووئیل دوی

سَنُرَاوِدُ عَنْهُ اَبَاهُ وَاِنَّا لَفٰعِلُوْنَ ﴿۶۱﴾

په غولو سره به یئے طلب کوؤ د پلار نه او یقیناً مونږ به دا کار کوؤ ۔

د پاره سامان تیاروِل دی د دے وجے نه د مړی تیاری کولو نه تجهیز تکفین وئیلے شی او تاوے چه د پلار د کوره رخصتیګی هغے ته سامان ورکولو ته هم جهیز وئیلے شی ۔

مسئله :- په دے آیت کښ هم ترغیب ورکول دی د هغه په حاضرولو د ورور سره په ډیر تاکین او تخویف سره ۔ او هغه دا دے چه که تاسو دے حاضر نه کړو نو تاسو به دروغژن او دهوکه مار ثابت شئ نو دوباره به تاسو ته هم غله ملاؤ نه شی ۔ او نه به دے ملک د مصر ته راځئ ۔

فائده :- طلب کول د یوسف علیه السلام خپل ورور بنیامین لره او د هغه د حاضرولو او بیا د ځان سره د ایسارولو طریقے جوړول ، دا ټول په حکم د الله تعالیٰ سره وُو اګر چه یعقوب علیه السلام ته په دے باندے تکلیف رسیدلو ۔

مسئله :- په دے آیت کښ وعده د هغه وروڼړو ذکر ده ۔ په باره د حاضرولو د بنیامین کښ د وجے د مجبورئ نه ځکه چه دوباره راشن نه میلا ویږی ۔

سَنُرَاوِدُ ، مراو ده وئیلے شی طلب کول په تدبیر او حیلے سره ځکه چه بغیر د تدبیر نه پلار ئے دوی ته نه حواله کوی ۔

وَقَالَ لِفِتْيٰنِهِ اجْعَلُوْا بِضَاعَتَهُمْ

او ووئیل یوسف خدمتګارانو ته واچوئ ددوی قیمت (اداکړیشوی)

فِيْ رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُوْنَهَا

په سامان ددوی کښې ددې دپاره چه دوی ئې او پیژنی

إِذَا انْقَلَبُوْٓا إِلٰٓى أَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ

کله چه دوی واپس لاړشي کورنۍ خپلو ته شاید چه دوی

يَرْجِعُوْنَ ﴿۶۲﴾ فَلَمَّا رَجَعُوْٓا إِلٰٓى

واپس راشي. نو هر کله چه واپس اورسیدل دوی

س۶۲: په دې آیت کښې ذکر دې د هغه طریقې چه یوسف علیه السلام جوړه کړه دپاره د حاضرولو د ورور خپل او هغه طریقه دا وه چه حکم ئې اوکړو خادمانو ته چه ددوی قیمت ددوی په سامان کښې واپس کیږدئ.

لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُوْنَ، دَدې یو توجیه دا ده چه چونکه کورنۍ د یعقوب علیه السلام طعام بې پیسو نه اخلی نو هر کله چه دا پیسې واپس کړې شوې او وینې نو پلار به دا ګمان دو یاره مصر ته رالیږی د قیمت دواپس کولو دپاره نو ضرور به ځان سره بنیامین راولی.

دویمه توجیه دا ده چه یوسف علیه السلام ته په څه ذریعه معلومه شوې وه چه په کور د یعقوب علیه السلام کښې نور مال نشته نو په دوباره راتللو قدرت نه لری. نو یوسف علیه السلام دا قیمت د احسان د وجې نه واپس کړو او دا قسم احسان حاکمانو له د خپلوانو محتاجانو سره جائز دې او امام بخاری د دې جواز دپاره باب ذکر کړیدې چه متولی او منتظم د اوقافو د خپلوانو او دوستانو سره د وقف نه امداد کولې شي دا جائز دې. او د دې قیمت په پټه واپس کولو کښې حکمت دا وو چه

أَبِيهِمْ قَالُوا يَا أَبَانَا مُنِعَ مِنَّا

پلار خپل ته اُوئیل دوی اے زمونږ پلاره منع کړے شو بیا لے زمونږ نه

الْكَيْلُ فَأَرْسِلْ مَعَنَا أَخَانَا

راشن تو اولیږه زمونږ سره زمونږ ورور

نَكْتَلْ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴿۶۳﴾

چه راشن راوړو او یقیناً مونږ به د ده حفاظت کوؤ۔

قَالَ هَلْ آمَنُكُمْ عَلَيْهِ إِلَّا كَمَا

اُوئیل ده آیا اعتبار اوکړم په تاسو باندے د ده په باره کښں مګر لکه چه م

أَمِنتُكُمْ عَلَىٰ أَخِيهِ مِن قَبْلُ ط

اعتبار کړے وو په تاسو د ده د ورور په باره کښں د دینه مخکښں ،

یوسف علیه السلام ته معلومه وه چه کورنۍ د یعقوب علیه السلام د ډیر شرافت د وجے نه داسے عطیے نه قبلوی۔

لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ، غایه ده د یعرفونها د پاره۔

۶۳۔ هر کله چه دوباره غله راوړل ضروری وو او د بنیامین بوتلل د مخے د پاره شرط وو، نو د سامان پرانستلو نه وړاندے ئے د ورور مطالبه د پلار نه اوکړه او د مخے وجه ئے ذکر کړله چه "منع منا الکیل" او منع مشروطه ده په ورور نه راوستلو پورے۔

نَكْتَلْ ، دا ئے د دے وجے نه اُوئیل چه کیل د تولو ئے مشروط کړے وو په ورور حاضرولو پورے۔

وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ، په دے کښں ئے د پلار سره وعده اوکړه د حفاظت د ده۔

فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ۖ وَهُوَ اَرْحَمُ

نو اللہ تعالیٰ بنۂ حفاظت کوونکے دے او هغه زیات مهربان دے

الرّٰحِمِيْنَ ﴿۶۴﴾ وَلَمَّا فَتَحُوْا مَتَاعَهُمْ

دَ نورو مهربانیٔ کوونکو نه ۔ او هرکله چه دوی پرانستل سامانونه خپل

وَجَدُوْا بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ اِلَيْهِمْ

او موندلو ئے قیمت خپل چه واپس کړے شوے وو دوی ته

قَالُوْا يٰۤاَبَانَا مَا نَبْغِيْ ؕ هٰذِهٖ بِضَاعَتُنَا

او وئیل دوی اے پلاره مونږ نور څه او غواړو (یعنی نه غواړو) دا زمونږ قیمت دے

رُدَّتْ اِلَيْنَا ۚ وَنَمِيْرُ اَهْلَنَا وَ

واپس کړے شوے دے مونږ ته او غله به راوړو خپله کورنۍ د پاره او

نَحْفَظُ اَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيْرٍ ؕ

حفاظت به کوو د ورور خپل او زیات به راوړو بار د اوښ،

۶۴: ۔ مراد د دے آیت دا دے چه یعقوب علیه السلام د هغوی مطالبه مجبورًا او منله د وجے د ضرورت د غلے نه یا د دے وجے نه چه دغه ورونړو د یوسف علیه السلام په شان حسن د دے ورور سره نه کوؤ ۔ او قیاس ئے اوکړو په تیره شوے واقعه باندے چه په باره د یوسف علیه السلام کښ ما اعتما دکړیوو په تاسو باندے نو اوس هم هغسے اعتماد په تاسو کوم لیکن مخکښ ے باور کړے وؤ په حفاظت ستاسو او اوس په حفاظت د اللہ تعالیٰ اعتماد او باور کوم ۔

فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ، دا په مقابله د وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ، کښ ئے اُوئیل ۔ وَهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ، دا علت دے د خیر د پاره ۔

ذٰلِكَ كَيْلٌ يَّسِيْرٌ ﴿٦٥﴾ قَالَ لَنْ

دا راشن (پیمانه) لږ دے - اُوئیل یعقوب علیه السلام هیچرے

اُرْسِلَهٗ مَعَكُمْ حَتّٰى تُؤْتُوْنِ

نه لیږم دے تاسو سره ترڅو چه راکړئ ما ته

مَوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ لَتَاْتُنَّنِيْ بِهٖۤ

پوخ لوظ د الله تعالیٰ په نوم چه خامخا به راولئ دے ما ته

اِلَّاۤ اَنْ يُّحَاطَ بِكُمْ فَلَمَّاۤ اٰتَوْهُ

مګر که راګیر کړے شوئ تاسو (ټول) نو هر کله چه دوی ورکړو هغه ته

مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللّٰهُ عَلٰى مَا نَقُوْلُ

لوظ پوخ اُوئیل هغه الله تعالیٰ زمونږ په وینا

ـــــــ

۶۵:- هر کله چه دوی ته تسلی حاصله شوه د پلار د طرف نه نو سامان ئے پرانستو او قیمت ئے بیا مونډلو خوشحالی ئے ښکاره کړه - او وے وئیل چه مَا نَبْغِيْ، د دے یوه توجیه داده چه مونږ د دینه زیات احسان نه غواړو ځکه چه مونږ له ئے غله پوره راکړیده او قیمت ئے هم واپس کړیدے په دے توجیه سره "ما" د استفهام د تعجب دے۔

دویمه توجیه داده چه اے پلاره مونږ ستا نه نور قیمت نه غواړو دا واپس کړے شوے قیمت مونږ لره کافی دے په دے توجیه سره "ما" د پاره د نفی دے۔

ذٰلِكَ كَيْلٌ يَّسِيْرٌ، ذٰلِكَ اشاره ده کیل د ورور ته چه دا په بادشاه باندے آسان کار دے یا اشاره ده ټول راشن ته چه دوی راوړے دے او یسیر په معنیٰ د لږ سره دے۔

وَكِيلٌ ﴿٦٦﴾ وَقَالَ يَٰبَنِيَّ لَا تَدۡخُلُواْ

ذمہ وار دے ۔ او اوئیل (یعقوب) اے بچو زما مہ ور ننوځئ

مِنۢ بَابٖ وَٰحِدٖ وَٱدۡخُلُواْ مِنۡ

دَ دروازے یوے نہ او ورننوځئ دَ

أَبۡوَٰبٖ مُّتَفَرِّقَةٖۖ وَمَآ أُغۡنِي

دروازو مختلفو نہ ، او زۀ نشم اوړلے

عَنكُم مِّنَ ٱللَّهِ مِن شَيۡءٍۖ إِنِ

ستاسو نہ دَ اللہ تعالیٰ (دَ مصیبت نہ) هیڅ شے ، نہ دے

ٱلۡحُكۡمُ إِلَّا لِلَّهِۖ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ

واک (اختیار) مگر صرف دَ اللہ تعالیٰ لرہ دے ما په هغه باندے ځان سپارلے دے

۶۶ ۔ مراد دَ دے آیت دا دے چه یعقوب علیه السلام دَ ځا منو نه منع نه ده کړے بلکه مضبوطه وعده ئے طلب کړه او هغوی ورسره هم وعده اوکړه او دَ پاره دَ تاکید یعقوب علیه السلام دا کلمه اُوئیله چه قَالَ اللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ.

او اِلَّآ أَن يُحَاطَ بِكُمۡ ، کښې مطلب دا دے چه که تاسو ټول راګیر کړے شوئ په یو حادثه کښې نو پرواه نشته که بنیامین ستاسو سره ګیر شی او چه تاسو روغ او سالم یئ او صرف بنیامین راګیر کړے شی نو دا زۀ نه شم منلے۔

وَكِيلٌ ، په صفت دَ اللہ تعالیٰ کښې معنیٰ دا ده چه هغه باندے توکل کیدے شی یا په معنیٰ دَ حافظ سره دے۔

مَوۡثِقٗا مِّنَ ٱللَّهِ ، یعنی په عهد کښې چه قسم په نوم دَ اللہ تعالیٰ ذکر شی نو عهد پوخ شی دائے زیات تاکید دَ پاره اُوئیل۔

وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۶۷﴾

او په هغه باندے دِ خاص ځان او سپاري ځان سپارونکي.

مسئله:- هر کله چه هغوی قصد او کړو دَ سفر کولو مصر ته نو یعقوب علیه السلام هغوی ته ادب او طریقه او خودله چه دَ یوے دروازے نه مه داخلیږئ او دروازے نه مراد دَ ښار دروازے دی یا مراد تریه لارے دی. دَ دے یو وجه داوه چه په دوی باندے بد نظر او نه لږی ځکه چه دوی لوے جماعت وو او خائسته هیئت او شکل یے لرلو. او صحیح احادیث دلالت کوی په دے چه نظر لګیدل حق دی او په احادیثو کښ دَ نظر بد دَ دفع کولو لپاره رُقیات او دمونه او مختلف شرعی طریقے هم ذکر دی. لیکن دَ دفع دَ نظر دَ پاره غیر شرعی طریقے او تعویذے کول منع دی. لکه وشم (خال لګول) او ابن قتیبه او خازن ذکر کړیدی چه په وخت دَ نظر کښ دَ سترګو دَ نظر نه څه زهریلی جراثیم را اوځی په معیوب (نظر کړے شوی) باندے اولګی او دا ټول په قدرت دَ الله تعالیٰ سره وی.
او دویمه وجه دَ دے تدبیر داده چه دوی لوے جماعت دَ په دویم کرت مصر ته راځی هسے نه چه مصر والا حسد او کړی چه دے خلقو زمونږ غله خلاصه کړه نو دفعے دَ حسد دَ پاره دا تدبیر یے او خودلو.
وَمَا اُغْنِیْ عَنْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ شَیْءٍ، دا ښکاره دلیل دے په دے خبره چه انبیاء علیهم السلام دَ هیڅ چا نه ضرر او مصیبت نه شی دفع کولے اګر چه زُوندے وی نو نور اولیاء او بزرګان په پس دَ مرګ نه څه رنګ دَ چا امداد او کړیشی.
اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ، حکم دوه قسمه دے یو حکم تکوینی یعنی تصرفات او اختیارات او دویم حکم تشریعی یعنی تحلیل او تحریم کول او شرع جوړول. دا دواړه په الله تعالیٰ پورے خاص دی په دیکښ دَ الله تعالیٰ سره هیڅوک شریک نشی جوړیدے.

وَلَمَّا دَخَلُوا مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ

او هر کله چه دوی ورننوتل په هغې طریقې چه امر کړیوو دوی ته

أَبُوهُمْ ؕ مَا كَانَ يُغْنِي عَنْهُمْ

پلار خپل، نه وو هغه چه اړولے وے د دوی نه

مِنَ اللَّهِ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا حَاجَةً

د الله تعالیٰ (د مصیبت نه) څه شیز لیکن یو ارمان وو

فِي نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَاهَا ؕ وَإِنَّهُ

په زړه د یعقوب کښ چه پوره ئې کړو، او یقینًا هغه

لَذُو عِلْمٍ لِمَا عَلَّمْنَاهُ وَلَٰكِنَّ

د علم خاوند وو د دے وجې نه چه علم ورکړیوو مونږ هغه ته او لیکن

أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٦٨﴾ وَلَمَّا

ډیر خلق نه پوهیږی - او هر کله چه دوی

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ، په دے آیت کښ د تدبیر نه وروسته امر د توکل کړے شوے دے اشاره ده چه توکل سره د استعمال د اسبابو دے او د توکل د اسبابو سره هیڅ منافات نشته.

۶۸:- په دے آیت کښ دلیل دے په دے خبره چه تدبیر د انسان د تقدیر مقابله نشی کولے.

مَا كَانَ يُغْنِي عَنْهُمْ مِّنَ اللَّهِ مِن شَيْءٍ، دا تصدیق دے د طرف د الله تعالیٰ نه د کلام د یعقوب علیه السلام چه وما اغنی عنکم دے چه معلومه شی چه د هغه قول صرف تواضعًا نه وو بلکه حقیقت وو.

وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ، دلته مراد د علم نه دا دے چه په تدبیر سره تقدیر نه دفع کیږی اگرچه تدبیر شرعی کول لازم دی.

۸ ع ۱۱ ۲

دَخَلُوْا عَلٰى يُوْسُفَ اٰوٰى اِلَيْهِ
ورننوتل یوسف ته جدا ئے کړو دَځان سره
اَخَاهُ قَالَ اِنِّيْ اَنَا اَخُوْكَ فَلَا تَبْتَئِسْ
ورور خپل اوئیل ورته یوسف یقینًا زه ستا ورور یم نو مه خفه کیږه
بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۶۹﴾ فَلَمَّا
په هغه کارونو چه دوی ئے کوی . نو هر کله
جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ
چه تیار ئے کړو دوی له سامان دَ دوی نو کیخود ئے جام (لوښے)

اِلَّا حَاجَةً ، دَ دیته مخکښ فعل پټ دے اَظْهَرَ حَاجَةً او روستو قضاها دَ هغې تفسیر دے.
لَا يَعْلَمُوْنَ ، په یکښ هغه خلق مراد دی چه اسباب او تدابیر خپل مؤثر حقیقی گنړی.
۶۹: دَ دے ځائے نه اتم مقام دے تر ۷۹ آیت پورے.
خلاصه:- په دے مقام کښ حاضرول دَ یوسف دی ورور خپل له دَ ځان سره او بیا تدبیر کول دی په کیخودلو دَ سقایه (لوښی) سره په سامان دَ هغه کښ او تهمت لگول په هغه یا تلے په غلا سره، او حکم کول دَ هغه په غلام کولو تر یو کال پورے.
او ویزاره کیدل دَ ورونړو دَ هغه نه او تهمت لگول دَ دے ورونړو په یوسف علیه السلام دَ غلا کولو او طلب دَ دوی نجات دَ ورور دَ یوسف علیه السلام نه او جواب دَ یوسف علیه السلام دوی ته ذکر شویدی.
فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ، په یکښ اشاره ده چه دے ورونړو پس دَ جدائی دَ یوسف علیه السلام نه بنیامین ته تکلیفونه رسول.

فِیْ رَحْلِ اَخِیْهِ ثُمَّ اَذَّنَ مُؤَذِّنٌ
په سامان د ورور خپل کښې بیا اوچت آواز اوکړو آواز کوونکی

اَیَّتُهَا الْعِیْرُ اِنَّکُمْ لَسٰرِقُوْنَ ﴿۷۰﴾
اے قافلے والو یقیناً تاسو غلا کر یئ.

قَالُوْا وَاَقْبَلُوْا عَلَیْهِمْ مَّاذَا تَفْقِدُوْنَ ﴿۷۱﴾
دوی اوئیل او مخامخ شول هغوی ته چه څه ورک کړی دی تاسو.

ـــ :- السِّقَایَةَ ، او صُوَاعَ ، د یو لوښی دوه نومونه وو څکه چه په دے لوښی سره شراب هم څکلے کیدل او په دے سره پیمانه د طعام هم کیدے شوه.

اِنَّکُمْ لَسَارِقُوْنَ ، په دے کښې یوه توجیه دا ده چه اعلان کوونکی دا آواز د خپل ځان نه کړے وو او په هغوی باندے ئے تهمت د غلا په خپل غالب گمان سره لګولے وو.

دویمه توجیه دا ده چه دا آواز ئے د یوسف علیه السلام په حکم سره کړے وو.

او اِنَّکُمْ لَسٰرِقُوْنَ ، په طریقه د توریئے سره دے یعنی همزه (ء) د استفهام پکښې محذوف دے یا دا چه تاسو یوسف علیه السلام پټ کړے دے د پلار نه خو پدیکښې غوره اوله توجیه ده.

ـــ :- هر کله چه دوی د خپلے پوهے مطابق غلا نه وه کړے نو ځکه هغوی ته مخامخ شول او تپوس ئے اوکړو.
تَفْقِدُوْنَ ، د فقدان نه دے په معنی د ورکولو او د موندلو دواړو راځی.

قَالُوْا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ
دوی اوویل ورکه کړی شوی مونږ پیمانه دَ بادشاه

وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ حِمْلُ بَعِيْرٍ
او هغه چا چه راوړه هغه نو هغه لره بار دَ اوښ دے (په انعام کښ)

وَّاَنَا بِهٖ زَعِيْمٌ ﴿۷۲﴾ قَالُوْا تَاللّٰهِ
او زهٔ دَ دے ذمه وار یم ۔ دوی اوویل قسم په الله تعالیٰ

لَقَدْ عَلِمْتُمْ مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ
تاسو ښهٔ پوهه یئ مونږ دے له نه یو راغلی چه ورانے دِ اوکړو

فِی الْاَرْضِ وَمَا كُنَّا سٰرِقِيْنَ ﴿۷۳﴾
په دے ملک کښ او نه مونږ غلا کوریو ۔

۷۲:۔ په دے آیت کښ دلیل دے په جواز دَ انعام مقررولو په یو جائز کار باندے او دلیل دے په جواز دَ کفالت باندے۔
سوال:۔ دَ غلا کوونکی دَ پاره کفالت او انعام ورکول خو جائز نه دی؟
جواب ۱:۔ دا قول دَ هغوی په امر دَ یوسف علیه السلام سره وؤ او هغه ته معلومه وه چه دوی غلا نه وه کړے دَ دے وجے نه جَآءَ بِهٖ، ئے ووئیلے دے سَرَقَ ئے نه دے ووئیلے۔
جواب ۲:۔ وَلِمَنْ جَآءَ بِهٖ، نه مراد هغه څوک دے چه خبر راوړی چه صواع دَ فلانی سره دے۔
۷۳:۔ په دے آیت کښ جواب دَ هغوی دے په براءت دَ خپل ځان سره دَ غلا او فساد نه۔ تَاللّٰهِ تا په قسم کښ په اسم الله پورے خاص ده او تعجب یا مبالغے په ځائے استعمالیږی۔ لَقَدْ عَلِمْتُمْ کښ اشاره ده چه مخکښ دَ دینه دوی په مصر کښ هیڅ خیانت او ظلم نه وؤ کړے دَ خپلو اوښانو خُلے ئے تړلے وے دَ پاره دَ دے چه دَ چا فصل او نه خوری۔

قَالُوْا فَمَا جَزَآؤُهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ
دوی اوئیل نو څه سزا ده (د غل) که تاسو
كٰذِبِيْنَ ﴿٧٤﴾ قَالُوْا جَزَآؤُهٗ مَنْ
دروغ وایئ ۔ دوی اوئیل سزا د غل هغه کس دے
وُّجِدَ فِيْ رَحْلِهٖ فَهُوَ جَزَآؤُهٗ ؕ
چه اوموندلے شي په سامان د هغه کښ نو هغه پخپله سزا ده ،
كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿٧٥﴾ فَبَدَاَ
دغه شان سزا ورکوو موږ ظالمانو ته (غلا کرونکو ته)۔ نو شروع یې اوکړه

۷۴:۔ یعنی هغوی ورته اوئیل چه که ستاسو دروغ ثابت شي نو د غل سزا به څه وی ۔ دا تپوس په تعلیم د یوسف علیه السلام سره ووُ د خپل ورور د ایسارولو د پاره ګنی د مجرم نه د سزا تپوس نشی کیدے ۔ او دا رنګ د هغوی وهم دفع کوی چه هغوی وهم او نکړی چه تاسو موږ قصداً غلا کړ تا بتوئ د پاره د دے موږ له په خپل قانون سزا راکړئ ۔

۷۵:۔ یعنی په دین د یعقوب علیه السلام کښ د غل سزا دا وه چه هغه به تر یو کال پورے مریے کرځولے کیدو د پاره د مالک د مال ۔ او قانون د مصر دا ووُ چه د غل نه به دوچنده تاوان اخستلے کیدو ۔
الظّٰلِمِيْنَ ، ظلم نه مراد غلا ده سزا یئے په شریعت د یعقوب علیه السلام سره غوره کړه په وحی د الله تعالیٰ سره نو دا ناسخ شوه د پاره د سزا ورکولو په قانون د مصر کښ یا دا چه اولاد د یعقوب علیه السلام مکلف ووُ په شریعت د یعقوب علیه السلام او مکلف نه ووُ په قانون د مصر سره ځکه یئے هغوی له د هغوی د شریعت مطابق سزا ورکړله ۔

بِاَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَآءِ اَخِيْهِ

په سامانونو دَ هغوی وړاندې دَ سامان دَ ورور ئې

ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِنْ وِّعَآءِ اَخِيْهِ ؕ

بیا ئې را اوښکلو هغه لوښے دَ سامان دَ ورور خپل نه،

كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ ؕ مَا كَانَ

دغه شان طریقه خودلې ده موږ یوسف ته، نه وُو دے

لِيَاْخُذَ اَخَاهُ فِىْ دِيْنِ الْمَلِكِ

چه را نیونکے کړے وے ورور خپل په قانون دَ بادشاه کښې

اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ

مګر کیدے هغه چه الله تعالیٰ اوغواړی، پورته کوؤ موږ درجے

مَّنْ نَّشَآءُ ؕ وَفَوْقَ كُلِّ ذِىْ عِلْمٍ

دَ هغه چاچه اوغواړو موږ، او پورته دَ هر خاوند دَ علم نه

عَلِيْمٌ ﴿۷۶﴾ قَالُوْٓا اِنْ يَّسْرِقْ فَقَدْ

لوے عالم شته دے ۔ اُوئیل دوی که دهٔ غلا کړے وی (نو عجیبه نه ده) ځکه چه

سلے :۔ دَ نورو ورونړو په سامان لټولو ئې اول شروع ځکه اوکړه چه دوی چرته شکیان نه شی چه کنی دا لوښے دوی پټ ساتلے دے ۔

كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوْسُفَ ، دا جواب دَ هغې شبهې دے چه یوسف علیه السلام پدے طریقے سره پلار ته تکلیف ورکړو او ورور ئې هم بدنام کړو ۔ او دا خو شرعًا جائز نه دی ؟

دَ جواب حاصل دا دے چه دا تدبیر الله تعالیٰ یوسف علیه السلام ته خودلے وؤ یوسف علیه السلام دَ ځان نه نهٔ وؤ کړے. او بل دلیل دَ دے اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ، دے چه دا کار په

سَرَقَ اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ ۚ فَاَسَرَّهَا

غلا کړی وه ورور دَ دهٔ پخوا دَ دینه نو پټ اوساتلو

یُوْسُفُ فِیْ نَفْسِهٖ وَلَمْ یُبْدِهَا

یوسف علیه السلام دَ دے جواب په خپل زړه کښ او ښکاره ئے نکړو

لَهُمْ ۚ قَالَ اَنْتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا ۚ

دوئی ته، هغه اوئیل تاسو زیات بدتر حال والا یئے

مشیت شرعی دَ الله تعالیٰ سره وو۔ بیا که څوک شبهه اوکړی چه موږ له هم داسے حیلے جائز دی نو جواب او شو په دے لفظ سره چه لِیُوْسُفَ، او لام دلته دَ پاره دَ تخصیص دے یعنی دا تدبیر خاص وو په یوسف علیه السلام پورے او په دے باندے قیاس کول دَ پاره دَ جواز دَ حیلو منع دے او حیله اسقاط مروجه دَ پاره څو هیڅ دلیل شرعی نشته۔

وَفَوْقَ کُلِّ ذِیْ عِلْمٍ عَلِیْمٌ، که څوک شبهه اوکړی چه الله تعالیٰ هم علم والا دے نو آیا دَ هغه دَ پاسه هم علیم کیدیشی؟

جواب:- ذی علم الله تعالیٰ ته شامل نه دے ځکه چه دَ علم حمل په الله تعالیٰ باندے په واسطه دَ ذوسره نقل شوے ثابت نه دے دا آیت دلیل دے چه په علم کښ ډیر تفاوت دے هیڅ عالم له دا جائز نه دی چه په خپل علم باندے فخر او لوئی اوکړی او آخری مرجع دَ علم الله تعالیٰ دے۔ یا مراد دَ علیم نه الله تعالیٰ دے یعنی دَ ټولو اهل علم دپاسه الله تعالیٰ دے دَ هغه علم دَ ټولو نه زیات او اوچت دے۔

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا تَصِفُوْنَ ﴿۷۷﴾ قَالُوْا

او الله تعالیٰ ښهٔ پوهه دے په هغه باندے چه تاسو ئے بیانوئ. دوی اُوئیل

يٰۤاَيُّهَا الْعَزِيْزُ اِنَّ لَهٗۤ اَبًا شَيْخًا

اے عزیز یقینًا دَ دهٔ پلار دے مشر

كَبِيْرًا فَخُذْ اَحَدَنَا مَكَانَهٗ ۚ

ډیر بوډا نو اونیسه یو تن زمونږ دَ ده په ځائے

اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۷۸﴾ قَالَ

یقینًا مونږ تا وینو دَ ښائسته کار کوونکو نه. دهٔ اُوئیل

۷۷:- هر کله چه په دوی باندے غلا ثابته شوه نو دوی خپل ځان دَ هغې نه بری کوو تو وسے وئیل چه دا بنیامین زمونږ خپل وروړ نه دے دَ ده خپل وروړ یو وو. او هغه هم غلا کړے وه نو ده هم غلا وکړه. یوسف علیه السلام په دے وخت کښ دوی ته جواب ورنکړو او اَنْتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا، ئے پټ اوئیل، او وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا تَصِفُوْنَ، ئے ښکاره اُوئیل.

فَاَسَرَّهَا، ضمیر راجع دے ما بعد (انتم شر مکانا) ته یا جواب دَ کلمے دَ هغوی دے یا راجع دے حجت ته.

فائده:- په نسبت دَ غلا کښ یوسف علیه السلام ته، غوره قول دا دے چه ده دَ خپل نیکه (دَ مور دَ پلار) نه ورکوالی کښ بُت پټ کړے وُو او مات کړے ئے وُو دَ پاره دَ دے چه هغه شرک پریږدی نو دوی بد نام کړو په غلا سره.

۷۸:- چونکه دوی دَ پلار سره وعده کړے وه چه بنیامین به واپس راولو دَ دے وجے نه ئے عزیز مصر (یوسف علیه السلام) ته درخواست پیش کړو چه په هغې کښ درے خبرے وے. اول عذر پیش کول چه پلار دَ ده بوډا دے. دویم بدل

مَعَاذَ اللّٰهِ اَنْ نَّاْخُذَ اِلَّا مَنْ

پناه غواړم په الله تعالیٰ سره د دینه چه او نیسو سوا د هغه چا نه

وَّجَدْنَا مَتَاعَنَا عِنْدَهٗٓ اِنَّآ

چه موندلے مونږ سامان خپل د هغه سره یقیناً (مونږ به)

اِذًا لَّظٰلِمُوْنَ ﴿۷۹﴾ فَلَمَّا اسْتَيْئَسُوْا

دغه وخت خامخا د ظالمانو نه یو. نو هرکله چه دوی نا امیده شو

مِنْهُ خَلَصُوْا نَجِيًّا ۭ قَالَ كَبِيْرُهُمْ

د هغه نه جدا شول جرګه کوونکی، اووئیل مشر د دوی

اَلَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنَّ اَبَاكُمْ قَدْ

آیا تاسو خبر نه یئ چه ستاسو پلار

اَخَذَ عَلَيْكُمْ مَّوْثِقًا مِّنَ اللّٰهِ

اخستلے وو ستاسو نه لوظ پوخ په نوم د الله تعالیٰ

پیش کول چه زمونږ نه یو تن د دهٔ په ځائے واخله۔

دریم، تعریف کول د عزیز مصر (یوسف علیه السلام) چه ستا صفات د محسنینو دی او مخکښ نے هم زمونږ سره احسان کړے دے۔

سوال :- دا دلیل دے په دے خبره چه د مجرم په ځائے غیر مجرم نیول بد کار دے چه د هغے نه پناه غوښتل پکار دی او دا رنګے دا ظلم دے۔

مَعَاذَ اللّٰهِ، مصدر دے او د دینه مخکښ اعوذ فعل پټ دے او وَجَدْنَا، لفظ ئے ځکه استعمال کړے دے چه تصریح د هغه په غلا او نکړے شی ځکه چه هغه خو غلا نه وه کړے۔

وَمِنْ قَبْلُ مَا فَرَّطْتُمْ فِيْ

او مخکښې د دې نه هم قصور کړے دے تاسو په

يُوْسُفَ ۚ فَلَنْ اَبْرَحَ الْاَرْضَ

باره د يوسف کښې نو چرے نه پرېږدم دا ملک

حَتّٰى يَاْذَنَ لِيْٓ اَبِيْٓ اَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ

ترهغې چه اجازت را اوليږي ما ته پلار زما يا فيصله اوکړي الله تعالیٰ

لِيْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ﴿۸۰﴾

ما لره ، او هغه ډير ښه فيصله کوونکے دے .

نښ ۸ :- د دے آيت نه نهم مقام دے تر آيت ۸۷ پورے .
خلاصه :- په دے مقام کښې ذکر شوے ده مشوره د دوی په کورنۍ کښې ، او پاتے کيدل د مشر ورور د دوی نه په مصر کښې او ليږل د نورو ورڼړو پلار ته د تفصيل د حال او زياتيدل د غم د پلار او يادول د يوسف عليه السلام لره او منع کول د دوی پلار لره د يادولو د يوسف عليه السلام نه او جواب د پلار د دوی ته او حکم کول د پلار د دوی ته په دريم ځل د تلو مصر ته د پاره د طعام او د پاره د طلب د يوسف عليه السلام او د ورور د هغه .
تفسير :- په دے آيت کښې ذکر شوے دے عزم د مشر ورور د دوی نه په پاتے کيدلو باندے په مصر کښې او د هغې دوه اسباب دی يو لوظ کول د پلار سره بل د يوسف عليه السلام په باره کښې د کوتاهۍ کولو تدارک کول .
مِنْهُ ، ضمير راجع دے يوسف عليه السلام ته يا راجع دے ورور (ربنيامين) ته .
نَجِيًّا ، مفرد دے په معنیٰ د مناجي په تقدير د فوجا نجيا (نو په معنیٰ د جمع سره دے) يا مصدر دے په معنیٰ د ذوی نجوی .

ارْجِعُوْا إِلٰى أَبِيْكُمْ فَقُوْلُوْا يَآ أَبَانَا

واپس لاړشئ پلار خپل ته نو اووائی اے زموږه پلاره

إِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ ۚ وَمَا شَهِدْنَا

یقینًا ځوئے ستا غلا کړیده او موږه ګواهی نه ده کوله

إِلَّا بِمَا عَلِمْنَا وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ

مګر په هغه څه چه موږ پرے خبر يو او نه يو موږ د غيبو

حٰفِظِيْنَ ﴿٨١﴾ وَسْئَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ

خبر لرونکی۔ او تپوس اوکړه د هغه کلی نه

مَا فَرَّطْتُمْ، مَا موصوله دے یا مصدریه دے۔ يَأْذَنَ لِيْ، مراد د اذن نه رابلل دی خپل وطن ته او أَوْ يَحْكُمَ اللّٰهُ لِيْ، یعنی ورور به ما ته واپس کړی یا به ما باندے مرګ راشی یا به ورور باندے راشی نو مراد د حکم نه حکم تقدیری دے بعضو د دینه حکم د قتال اخستلے دے لیکن هغه قول ضعیف دے۔

سلـ٨: إِنَّ ابْنَكَ سَرَقَ، دا په اعتبار د ظاهر او غالب ګمان سره دے، او حکم دے په اعتبار د علاماتو سره چه هغه د سامان د ورور نه صواع راویستل وؤ۔

وَمَا كُنَّا لِلْغَيْبِ حَافِظِيْنَ، مراد د غیب نه حقیقت د حال د غلا کولو دے او مراد د دینه حال د ورور دے چه دے به غلا کوی او بیا به راګیریږی په مرئ والی کښ او په دے آیت کښ اشاره ده چه ظن غالب ته هم په شرع کښ علم ویلے کیږی او دارنګ ګواهی کول په ظن غالب سره جائز دی په دے شرط چه علامات او قرآئن موجود وی۔

كُنَّا فِيهَا وَالْعِيرَ الَّتِىٓ أَقْبَلْنَا

چه موږ په هغې کښ وؤ او د هغه قافلې نه چه موږ را غلي يو

فِيهَا ۖ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴿٨٢﴾ قَالَ

په هغې کښ، او يقينًا موږ خامخا رشتيا وايو. اوويل (پلار)

بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنفُسُكُمْ أَمْرًا ۖ

بلکه خائسته کړې ده تاسو ته نفسونو ستاسو څه خبره،

فَصَبْرٌ جَمِيلٌ ۖ عَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَنِى

نو صبر خائسته (ښه کار) دے، امید دے چه الله تعالى به راولی ما ته

بِهِمْ جَمِيعًا ۚ إِنَّهُۥ هُوَ الْعَلِيمُ

دا ټول په يو ځاے يقينًا هغه په هر څه پوهه دے

الْحَكِيمُ ﴿٨٣﴾ وَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ

او حکمتونو والا دے. او مخ يې واړوؤ د هغوی نه او اوويل يې

۸۲:- په دے آيت کښ د اثبات د صدق د پاره دوه قسمه شهادت پيش کوی. يو مصر والو نه تپوس کول او بل د قافلې والو نه.

الْقَرْيَةَ، په دې کښ مضاف محذوف دے يعنى اهل قرية او مراد تری نه مصر دے.

۸۳:- دلته هم يعقوب عليه السلام قياس اوکړو په اول ځل ليکن دا قياس د واقعې سره موافق نه وؤ يا بل په معنى د هل استفهام سره دے او دا دليل دے په دے باندے چه انبياء عليهم السلام په غيب نه پوهيږی.

أَمْرًا، مراد تری نه د بنيامين بو تلل او په تهمت د غلا کښ حصارول دی يا شهادت د غلا کولو په هغه باندے په خيال د نفسونو ستاسو کښ دے حقيقت کښ هغه غلا نه وه کړے

يَٰٓأَسَفَىٰ عَلَىٰ يُوسُفَ وَابْيَضَّتْ

هائے افسوس دے په یوسف پسے او سپینې شوې

عَيْنَاهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيمٌ ﴿٨٤﴾

سترګې دَ هغه دَ غم دَ وجې نه او دے دَ خفګان نه ډک وو۔

قَالُوا تَاللَّهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوسُفَ

دوی اُوئیل قسم په الله تعالیٰ همیشه ته یاد وے یوسف

عَسَى اللَّهُ، دا امید دَ یعقوب علیه السلام دَ وجې دَ خوب دَ یوسف علیه السلام نه وو نو دا خبره یقیني وه لیکن کله دَ یقین نه تعبیر کیدے شي په لفظ دَ عسی سره۔

۸۴:۔ په دے آیت کښې اظهار دَ غم دَ یعقوب علیه السلام دے په یوسف علیه السلام باندے او حال دا دے چه دے وخت کښې غم دَ جدائۍ دَ بنیامین راغلے وو۔ نو وجه دَ دے دا ده چه په وړوکي غم سره عادتًا لوے غم تازه کیږي۔ او سپین والے دَ سترګو دَ وجې دَ ډیر والي دَ اوښکو نه وو دَ دینه دا نه لازمیږي چه هغه ړوند شوے وو۔

يَٰٓأَسَفَىٰ، دا شکوه ده الله تعالیٰ ته مخلوق ته نه ده په قرینه دَ تَوَلّٰى عَنْهُم او په قرینه دَ ۸۶ آیت سره او دا په معنیٰ دَ یا الله ارحم علیٰ نفسي دے (یا الله رحم اوکړے په غم زما باندے)

فائده:۔ ډیر والے دَ حزن په انبیاء علیهم السلام او اوښکے توئیدل دَ سترګو نه، جائز دي، ځکه چه شرعًا منع نه دے او زمونږ نبي صلی الله علیه وسلم هم په ابراهیم (نیکي) پسے ژړلي وو او دَ سترګو نه ئې اوښکے بهیدلے وے۔

او كَظِيمٌ، دَ زړه غم ته اشاره ده او منع په شرع کښې په وخت دَ غم کښې چغې او ساندے وهل دي، او جامے شلول دي او ناجائز کلمات وئیل دي او دا دَ مبتدعینو عادات دي۔

حَتّٰى تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ

ترد دے چه ته شے رنځور یا ته شے د

الْهٰلِكِيْنَ ﴿۸۵﴾ قَالَ اِنَّمَاۤ اَشْكُوْا بَثِّیْ

مړونه - اُوئیل پلار یقینًا زه خو بیګاره کوم خپل درد

وَ حُزْنِیْۤ اِلَى اللّٰهِ وَ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ

او غم الله تعالیٰ ته او پوهه یم د الله تعالیٰ د طرفه

مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۶﴾ یٰبَنِیَّ اذْهَبُوْا

په هغه څه چه تاسو پرے نه پوهیږئ - اے زما ځامنو لاړ شئ

ملا۸۵ :- دا د ځامنو شفقت دے په پلار یا ندے چه د غم د وجے نه مریض نه شی یا مړ نه شی - دا حسن نه دے د یوسف علیه السلام په ذکر باندے - ځکه چه دوی توبه ویستلے وه -

تَفْتَؤُا، کښ لا محذوف دے او په معنیٰ د اثبات سره دے همیش والی ته وئیلے شی -

حَرَضًا، هغه څوک چه د غم یا د مرض د وجے نه جسم ئے ویلے شی او مرګ ته نزدے شی -

ملا۸۶ :- دا دلیل دے په دے خبره چه د غم شکایت کول الله تعالیٰ ته سنت د پیغمبرانو دے -

بَثِّیْ، بث ډیر غم ته وئیلے شی چه بے اختیاره خور او مشهور شی او په دیکښ غم د یوسف ته اشاره ده او په حُزْنِیْ، کښ د بنیامین جدائی ته اشاره ده -

وَ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ، مراد د دینه تعبیر د خوب د یوسف علیه السلام دے چه دلیل دے په یو ځائے کیدلو د هغوی د پلار سره یا مراد د مالا تعلمون نه اجابت د دُعاء د عاجزئ کوونکی دے الله تعالیٰ ته -

فَتَحَسَّسُوا مِنْ يُوسُفَ وَأَخِيهِ

نو دیر تلاش اوکړئ دَ یوسف او دَ ورور دَ هغه

وَلَا تَيْأَسُوا مِنْ رَّوْحِ اللهِ ۖ إِنَّهُ

او مه نا امیده کیږئ دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه، یقیناً

لَا يَيْأَسُ مِنْ رَّوْحِ اللهِ إِلَّا الْقَوْمُ

نه نا امیده کیږی دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه مګر قوم

الْكٰفِرُونَ ﴿۸۷﴾ فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَيْهِ

کافر نو هر کله چه دوی ورداخل شو هغه ته

قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ مَسَّنَا وَأَهْلَنَا

وئیل دوی اے عزیزه رسیدلے ده مونږ ته او کورنۍ زمونږ ته

الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجٰةٍ

سختی (لوږه) او راوړی دی مونږ قیمت لږ

فَأَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا

نو پوره راکړه مونږ ته راشن او لحاظ او کړه مونږ سره (په نرخ کښ)

۸۷:۔ فَتَحَسَّسُوا، تحسس طلب دِ شی دے په حواسو سره او اکثر مستعملیږی په شر کښ، او دا آیت دلیل دے په دے خبره چه نا امیدی دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه کفر دے ځکه چه نا امیدی کوؤنکے دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه منکر وی (دَ قدرت دَ هغه نه) او انکار کول دَ قدرت دَ الله تعالیٰ نه کفر دے او نور تحقیق دَ دے آیت په سورة حجر ۵۶ کښ راتلونکے دے۔

إِنَّ اللَّهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ ﴿۸۸﴾

یقینًا الله تعالی بدله ورکوی لحاظ کوونکو لره۔

۸۸:۔ دَ دے ځائے نه لسم مقام دے تر ۹۳ آیت پورے۔
خلاصه:۔ په دے مقام کښ ذکر دی راتلل دَ ورونړو دَ یوسف علیه السلام مصر ته په دریم ځل، او تصدق طلب کول دَ عزیز مصر (یوسف علیه السلام) نه، او پیژندګلو دَ هغوی دَ یوسف علیه السلام سره او بیا اقرار دَ دوی په فضیلت دَ یوسف علیه السلام او په جرم خپل او په معافی غوښتلو دَ هغه دوی نه او بیا قمیص لیږل پلار ته دَ پاره دَ تسلئ۔
تفسیر:۔ پدے آیت کښ دلیل دے پدے خبره چه شکوه مخلوق ته جائز ده په وخت دَ سخت ضرورت کښ لیکن صبر کول بهتر دی۔
مُزْجَاةٍ، دفع کرے شوی ته وئیلے شی مراد ترینه لږ دے چه په مقابله دَ مبیعه کښ (چه ډیر قیمت والا وی) دفع کولے شی۔
دا مراد نه دے چه کوټه دی ځکه چه کوټه روپئ په سودا اخستلو کښ نشی پیش کیدے۔
فَأَوْفِ، مراد دا دے چه مخکښ تا موږ له څومره غله راکړے ده هغه مقدار موږ له راکړه په لږو پیسو او دا تصدق دے چه موږ تا نه غواړو او مراد دَ تصدق نه رعایت کول دی په قیمت کښ او هرکله دوی دَ عزیز مصر اعمال دَ مؤمنانو پشان اولیدل نو دَ دے وجے نه اُووئیل إِنَّ اللَّهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ،
فائده:۔ طلب دَ تصدق دَ هغه چا نه کیدے شی چه محتاج وی ثواب ته دَ دے وجے نه دعا غوښتل دَ الله تعالی نه مکروه دی پدے الفاظو سره چه (اللهم تصدق علی) دا دَ حسن او مجاهد نه روایت دے، ابن کثیر او ابن جریر ذکر کړیدے اګرچه په دے باندے اعتراض دے چه په

چه په حدیث کښ وارد دی (صدقة تصدق الله بها علیکم)

قَالَ هَلْ عَلِمْتُمْ مَّا فَعَلْتُمْ

هغه اوئیل آیا تاسو ته یاد دی هغه چه تاسو کړے وُو

بِيُوْسُفَ وَاَخِيْهِ اِذْ اَنْتُمْ

دَ یوسف سره او دَ ورور دَ هغه سره کوم وخت چه تاسو

جٰهِلُوْنَ ﴿۸۹﴾ قَالُوْٓا ءَاِنَّكَ لَاَنْتَ

ناپوهه وئ ۔ دوی اوئیل آیا ته رښتیا ته خو

يُوْسُفُ ؕ قَالَ اَنَا يُوْسُفُ وَهٰذَآ

یوسف یئے ، هغه اوئیل زهٔ یوسف یم او دا

اَخِيْ قَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا ؕ اِنَّهٗ

زما ورور دے یقیناً احسان کړیدے الله تعالیٰ په مونږ باندے ، یقیناً

مَنْ يَّتَّقِ وَيَصْبِرْ فَاِنَّ اللّٰهَ

چا چه تقوٰی اوکړه او صبر ئے اوکړو نو یقیناً الله تعالیٰ

۸۹ :۔ هَلْ عَلِمْتُمْ، تپوس کول مراد نه دی بلکه مقصد عظمت او تقبیح دَ دغه عمل ده چه دوی دَ یوسف او ورور سره کړے وُو په دے آیت کښ تعارف دَ یوسف علیه السلام دے دَ ورونړو سره او نسبت دَ جهل دے هغوی ته په سبب دَ حسد او دَ ظلم کولو دَ دوی دَ یوسف علیه السلام او دَ ورور دَ هغه سره ۔ او دا دلیل دے په دے خبره چه ورونړه دَ یوسف علیه السلام پیغمبران نه وُو ځکه نبی دَ نبوت نه مخکښ هم دَ جهل نه معصوم وی۔

لَا یُضِیۡعُ اَجۡرَ الۡمُحۡسِنِیۡنَ ﴿۹۰﴾ قَالُوۡا

نه بربادوی بدله دَ دغه ښائسته عمل کوونکو - دوی اوئیل

تَاللّٰهِ لَقَدۡ اٰثَرَكَ اللّٰهُ عَلَیۡنَا

قسم دے په الله تعالی یقیناً غوره کړے یے ته الله تعالی په مونږ باندے

وَاِنۡ كُنَّا لَخٰطِئِیۡنَ ﴿۹۱﴾ قَالَ

او یقیناً مونږ خطا کار یو - ده اُوئیل

ف۹۰ :- په دے آیت کښ اشاره ده دے خبرے ته چه تقوٰی او صبر سبب دَ نجات او دَ رفع د درجاتو دے او دا دواړه اسباب دَ احسان دی ء اِنَّكَ لَاَنۡتَ یُوۡسُفُ ،

سوال :- استفهام کښ خو تاکید او یقین نه جمع کیږی دلته همزهِ استفهامی او ان او لام دَ پاره دَ تاکید دی؟

جواب :- دا جمع کیدل دَ دوه حالتونو وی یعنی اول کښ دوی په شک کښ وو نو ژر یے یقین پیدا شو-

قَدۡ مَنَّ اللّٰهُ عَلَیۡنَا ، مراد دَ دینه توفیق دَ صبر دے په مصیبتونو کښ بیا جمع کول دَ دواړو وروڼړو دی او دا رنګ بیچ ساتل دَ دے دواړو دَ حسد دَ هغه کارونو نه چه نورو وروڼړو یے کول - او دا آیت دلیل دے چه تقوٰی او صبر مجموعه ته احسان وئیلے شی -

ف۹۱ :- اقرار دَ دوی په غوره والی دَ یوسف علیه السلام باندے دلیل دے دَ عدم نبوت دَ دوی -

وَاِنۡ كُنَّا لَخٰطِئِیۡنَ ، دا دلالت کوی په دے خبره چه دَ خطاء اطلاق کله په ګناه کبیره هم کیږی - او دَ دے اقرار په ضمن کښ طلب دَ معافی موجود دے او خازن فرق ذکر کریدے په مینځ دَ خاطی او مخطی کښ چه خاطی په ګناه عمداً کښ استعمالیږی او مخطی په خطاء کښ مستعملیږی.

لَا تَثْرِيْبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ ۭ يَغْفِرُ اللّٰهُ

هیڅ ملامتیا نشته په تاسو باندے نن ، بخنه به اوکړی الله تعالیٰ

لَكُمْ وَهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿۹۲﴾

تاسو ته او هغه زیات رحم کوونکے دے د رحم کوونکو نه .

اِذْهَبُوْا بِقَمِيْصِيْ هٰذَا فَاَلْقُوْهُ

یوسئ دا زما قمیص پس واچوئ دا (قمیص)

عَلٰى وَجْهِ اَبِيْ يَاْتِ بَصِيْرًا ۚ وَاْتُوْنِيْ

په مخ د پلار زما شي به روغو سترګو والا او راولئ ما ته

بِاَهْلِكُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۹۳﴾ وَلَمَّا فَصَلَتِ

خاندان ستاسو ټول . او هر کله چه جدا شوه

ﻣﻼ۹۲ :- دا خاشته خوئ د نبوت دے چه ظلم کوونکو ته معافي کوی، او دغه رنګ رسول الله صلی الله علیه وسلم په ورځ د فتح د مکه کښ وئیلي وو هر کله چه مشرکین مکه ایمان راوړلو او د نبی صلی الله علیه وسلم ته ئے معافي طلب کړه چه زۀ هغه خبره کوم تاسو ته کومه چه یوسف علیه السلام خپلو وروڼرو ته وئیلے وه .

لَا تَثْرِيْبَ ، ملامتیا او زورنه ورکول په ذکر د ګناهو نو کړے شوے سره .

الْيَوْمَ ، یعنی نن ورځ د ملامتیا ده لیکن چه نن ملامتیا نه ورکوم نو بیا خو بالکل ملامتیا نشته .

يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكُمْ ، جمله دعائیه ده یا جمله خبریه ده او وَهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ، علت دے .

ﻣﻼ۹۳ :- او قمیص لیږل په سبب د وحی سره وو ځکه هغه سبب اوګرځیدلو په شفاء د سترګو د یعقوب علیه السلام کښ او دا

الْعِيرُ قَالَ اَبُوهُمْ اِنِّي لَاَجِدُ

قافله (د آبادئ د مصر نه) اوئیل پلار د دوی یقیناً زهٔ خامخا مومم

رِيحَ يُوسُفَ لَوْلَآ اَنْ تُفَنِّدُوْنِ ﴿۹۴﴾

بوئ د یوسف لره که تاسو ما بے عقله نه گنړئ۔

قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّكَ لَفِيْ ضَلٰلِكَ

اُوئیل دوی قسم په الله تعالیٰ یقیناً ته خامخا په مینه

الْقَدِيْمِ ﴿۹۵﴾ فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ

زړه کښ یې۔ نو هر کله چه راغے زیرے ورکوونکے

چه مشهوره ده چه دا قمیص په میراث د ابراهیم علیه السلام کښ ده ته رارسیدلے وؤ نو د دے خبرے دلیل لشته۔
۹۴:۔ د دے آیت نه یوولسم مقام دے تر ۱۰۱ آیت پورے۔
خلاصه:۔ په دے مقام کښ ذکر شوے دی موندل د یعقوب علیه السلام بوئ د قمیص د یوسف علیه السلام لره، او بیا بشارت راتلل، او بیا استغفار غوختل د ځامنو د پلار نه او وعده کول د پلار د عفوی سره۔ (یعنی د استغفار غوختلو)۔
تفسیر:۔ موندل د یعقوب علیه السلام بوئ د یوسف علیه السلام لره په طریقه د خرق عادت او د معجزے سره وؤ نه په طریقه د علم غیب سره ځکه چه کنعان ته نژدے په کوهی کښ چه یوسف علیه السلام پروت وؤ نو پلار ته یې علم نه وؤ۔
تُفَنِّدُوْنَ ، فند د بوډا والی د وجے نه کم عقل شی او غلطے خبرے کوی۔
۹۵:۔ قَالُوْا ، کښ هغه کسان مراد دی چه د یعقوب علیه السلام رشته داران او نوسی وؤ ځکه چه ځامن یې غائب وؤ۔ او اِنَّكَ لَفِيْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ ، ضلال ، په دے آیت کښ په

أَلْقٰهُ عَلٰى وَجْهِهٖ فَارْتَدَّ بَصِيْرًا ۚ

واچووۀ ئې قمیص په مخ د هغه پلار لره نو سترګې ئې روښانه شوې،

قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَّكُمْ ۚ إِنِّيْٓ أَعْلَمُ

اُوئیل پلار آیا نه وو وئیلي ما تاسو ته چه یقیناً زه پوهه یم

مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۹۶﴾

د الله تعالی د طرف نه په هغه څه چه تاسو پرې نه پوهیږئ.

قَالُوْا يٰٓاَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَآ

دوی اُوئیل اے پلاره زمونږ بخنه اوغواړه مونږ لره د ګناهونو زمونږ

إِنَّا كُنَّا خٰطِئِيْنَ ﴿۹۷﴾ قَالَ سَوْفَ

یقیناً مونږ خطا کار وو. اُوئیل هغه زر دے

أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ ۗ إِنَّهٗ هُوَ

بخنه به اوغواړم تاسو لره د رب خپل نه، یقیناً هغه

معنیٰ د استغراق د محبت دے او نه دے په معنیٰ د ګمراهۍ سره ځکه چه نسبت د ګمراهۍ کول پیغمبر ته کفر دے.

۹۶:- مراد د اَلْبَشِيْرُ، نه هغه کس دے چه مخکښې ئې قمیص د یوسف علیه السلام ګکر د وینو راوړے وو نو هغه اوس د هغې بدله کښې بشارت راوړلو.

فَارْتَدَّ بَصِيْرًا، معنیٰ دا ده چه د سترګو نه ئې هغه بیماری لرے شوه او نظر ئې په ځائے شو.

قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَّكُمْ، کښې اشاره ده هغه جملے ته چه په آیت ۸۶ کښې تیره شوې ده.

۹۷:- په دے آیت کښې دلیل دے چه وسیله تیول په دُعا د ژوندی حاضر سره جائز ده. إِنَّا كُنَّا خٰطِئِيْنَ، خاطئین د خطیئة نه اخستلے شوې دے په معنیٰ د قصدًا ګناه کولو سره.

الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۹۸﴾ فَلَمَّا دَخَلُوْا

بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔ نو هرکله چه دوی داخل شو

عَلٰى يُوْسُفَ اٰوٰٓى اِلَيْهِ اَبَوَيْهِ

یوسف (علیه السلام) ته نوځای ورکړو هغه دَ ځان سره مور او پلار

وَقَالَ ادْخُلُوْا مِصْرَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ

او ووئیل بے ټولو ته ورننوځئ مصر ته ان شاء الله

اٰمِنِيْنَ ﴿۹۹﴾ وَرَفَعَ اَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ

په امن سره به یئ۔ او پورته ئے کړل مور او پلار خپل په تخت باندے

۹۸:۔ غوره قول په یکښ دا دے او امام شعبی نه نقل دے چه یعقوب علیه السلام دعا دَ دے دَ پاره وروستو کړه چه دَ یوسف علیه السلام نه پکښ مشوره واخلئ ځکه چه دوی په هغه باندے ظلم کړے وو نو دَ هغه خوښه ده چه معاف ئې کوی او که نه ئې کوی ځکه چه یعقوب علیه السلام دَ هغه (یوسف علیه السلام) دَ معافئ کولو نه خبر نه وو۔

۹۹:۔ دَ دے آیت نه دولسم مقام دے تر ۱۰۱ آیت پورے۔

خلاصه:۔ په دے مقام کښ ذکر کیږی ملاقات دَ یعقوب علیه السلام او د ټول اهل دَ یوسف علیه السلام سره۔ او ذکر کیږی بشارت ورکول دوی ټولو ته په امن سره۔ او صدق دَ خوب په سجده کولو دَ دوی یوسف علیه السلام ته۔ بیا اختتام دَ دے واقعے په دعا دَ یوسف علیه السلام سره۔

تفسیر:۔ په دے آیت کښ دَ اَبَوَیْهِ نه مراد دَ ده مور او پلار دی او هیڅ صحیح دلیل نشته په هغه قول دَ بعض مفسرینو کښ چه مور دَ ده وفات شوے وه او دا ئے خاله وه۔ هرکله چه یعقوب علیه السلام سره دَ اهل وعیال نه مصر ته راروان شو نو یوسف علیه السلام دَ هغوی دَ استقبال

وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا ۚ وَقَالَ يٰٓاَبَتِ

او ټول هغه ته ټیټ شول په اکرام سره او وئیل هغه اے پلاره

هٰذَا تَاْوِيْلُ رُءْيَايَ مِنْ قَبْلُ ؗ

دا تعبیر دَ خوب زما دے مخکښ دَ دینه

قَدْ جَعَلَهَا رَبِّيْ حَقًّا ؕ وَقَدْ

یقینًا او کړو خوؤ (خوب زما) زما رب رشتیا ، او یقینًا

اَحْسَنَ بِيْٓ اِذْ اَخْرَجَنِيْ مِنَ

احسان ئے کړیدے زما سره کله چه زه ئے راوېستلے یم دَ

السِّجْنِ وَجَآءَ بِكُمْ مِّنَ الْبَدْوِ

جیل نه او تاسو ئے راوستلئ دَ بانډو نه

مِنْۢ بَعْدِ اَنْ نَّزَغَ الشَّيْطٰنُ

روستو دَ دینه چه فساد اچولے وؤ شیطان

بَيْنِيْ وَبَيْنَ اِخْوَتِيْ ؕ اِنَّ رَبِّيْ

په مینځ زما او ورورونړو زما کښ ، یقینًا رب زما

دَ پاره دَ مصر دَ آبادئ نه بهر لاړو او هلته ئے دَ هغوی دَ آرام دَ پاره یو مجلس جوړ کړو۔ هر کله چه را اورسیدل نو مور او پلار ئے دَ ځان سره په خاص مجلس کښ کینول او پس دَ دینه ئے هغوی ته اوئیل چه اُدْخُلُوْا مِصْرَ ،
او اِنْ شَآءَ اللّٰهُ ، متعلق دے دَ لفظ دَ اٰمِنِیْنَ ، سره یا دا چه لفظ دَ اُدْخُلُوْا نه مراد دخول دَ مصر دے یعنی په مصر کښ دَ یوسف علیه السلام محل ته داخل شول او اُدْخُلُوْا په معنیٰ دَ اسکنوا دے۔

لَطِيْفٌ لِّمَا يَشَآءُ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ

مزین ارند بیر جوړوی دَ هغه کار چه اوغواړی، یقیناً هغه په هرڅه پوهه

الْحَكِيْمُ ﴿۱۰۰﴾ رَبِّ قَدْ اٰتَيْتَنِيْ مِنَ

او حکمتونو والادے۔ اے ربه یقیناً تا راکړې ده ماته بعضې

الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِيْ مِنْ تَاْوِيْلِ

بادشاهي او خودلے تا ماته دَ حقیقت

ﷺ:۔ دَ عرش نه مراد تخت دَ بادشاه دے چه هغه یوسف علیه السلام ته ورکړے وُو۔

وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا ، په دیکښ غوره قول دادے چه دا سجده دَ پاره دَ سلام وه او په طریقه دَ سرخکته کولو او لاس جوړے کولو سره۔ او دا په مخکنو امتونو کښ په طریقه دَ اکرام په وخت دَ سلام کښ جائز وه۔ او زمونږ په امت کښ منسوخ شوې ده لکه ابن کثیر قرطبي او خازن لیکلي دي په دلیل دَ حدیث صحیح سره چه نقل دے دَ انس رضی الله عنه نه چه زمونږ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه تپوس اوکړو چه آیا مونږ په وخت دَ ملاقات کښ یو بل ته سرخکته کولے شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (لا) دا حدیث په مشکوٰة المصابیح کښ په صـ۲ باندے موجود دے۔

وَخَرُّوْا ، په دے آیت کښ په معنیٰ دَ صاروا دے معنیٰ دا ده چه شول دوی هغه نه سرخکته کوونکی۔

دویم قول دا دے چه سجده ئے الله تعالیٰ ته اوکړله دَ وجے دَ یوسف علیه السلام نه او دا سجده دَ شکر ده نو یوسف علیه السلام په منزله دَ قبلے شو۔ او سجده کول دَ مور او پلار هم په امر دَ الله تعالیٰ سره وُو نو اعتراض نشته۔ بیا یوسف علیه السلام دَ تکبر او دَ تهمت دَ دفع کولو دَ پاره اوفرمائیل (هٰذَا تَاْوِيْلُ رُءْيَايَ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّيْ حَقًّا)، او تفصیل

الْأَحَادِيْثِ ۚ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ

دَ خبرو نه اے نا اشنا پیدا کونکیه دَ آسمانونو

وَالْأَرْضِ ۗ قف أَنْتَ وَلِيّٖ فِي الدُّنْيَا

او دَ زمکے ته مددګار زما ئې په دنیا کښ

وَالْآخِرَةِ ۚ تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا

او په آخرت کښ واخلے ما لره دَ اسلام په حالت کښ

وَّأَلْحِقْنِيْ بِالصّٰلِحِيْنَ ﴿١٠١﴾ ذٰلِكَ

او یوځائے کړے ما (پس دَ مرګ نه) دَ نیکانو سره . دا چه ذکر شو

ئې اوکړو دَ احسانانو دَ الله تعالی دَپاره دَ اظهار دَ عجز خپل.
لَطِيْفٌ . درے معنے لری یوه دا چه احسان کوونکے دے دَ بندګانو سره په داسے طریقه چه بندګان دَ هغے ګمان هم نه کوی.
دویمه معنی عالم دے په باریکو څیزونو باندے.
دریمه معنی باریک تدبیر کوونکے دے . او یوسف علیه السلام په دے احسانانو کښ دَ کوهی نه دَ راوتلو ذکر نه دے کړے دَ پاره دَ دے چه وروڼه دَ هغه شرمنده نشی روستو دَ معافی کولو نه.
سا۱۰۱ :- په اختتام دَ واقعه کښ ذکر دَ دعاګانو اشاره ده چه یوسف علیه السلام سره دَ بادشاهئ نه هم الله تعالی ته عاجزی کوونکے محتاج وؤ . نو دَ الله تعالی سره شریک نشی جوړیدلے . په دے دُعاء کښ توسل دے په انعام ظاهری دَ الله تعالی سره چه بادشاهی ده او په انعام باطنی چه علم دے . او بیا توسل دے په اسماؤ دَ الله تعالی چه فاطر او ولی دے.
تَوَفَّنِيْ مُسْلِمًا ، مقصود په دیکښ دُعاء دَ مرګ نه ده ځکه چه حدیث صحیح کښ دَ هغے نه منع راغلے ده بلکه مقصود طلب دَ بقاء ده په اسلام باندے تر مرګه پورے.

مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ج

بعضے دَ خبرونو دَ غیب نه دی وحی کوؤ مونږ تا ته

وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْٓا

او نه وے ته دَ دوی سره (حاضر) کله چه هغوی پخوؤ

اَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُوْنَ ﴿۱۰۲﴾

تدبیر خپل او دوی مکرونه کول۔

وَ اَلْحِقْنِیْ بِالصّٰلِحِیْنَ، مقصد په دیکښې پوځائے کول دَ روح دَ ده دی پس دَ مرګ نه دَ صالحینو سره په رفیق اعلیٰ کښې لکه څه رنګ چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په وخت دَ ځنکدن کښې دا دعا غوختلې وه چه (اللهم الرفیق الاعلیٰ)۔

۱۰۲ :- دَ دے ځائے نه تر آخر دَ سورت پورے تتمه ده چه مشتمله ده په شپږو امورو باندے۔

خلاصه :- اوّل صداقت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم او تسلی ده هغه ته۔ دویم زجر ورکول مشرکانو ته په اعراض کولو دَ دلیلونو دَ توحید نه او په ګډولو دَ شرک دَ ایمان سره۔ او دریم تیزی ورکول په دعوت باندے دَ پاره دَ دفع دَ عذاب۔ او څلورم جواب دَ سوال دَ منکرینو دے۔ او پینځم تسلی ورکول پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته په نصرت دَ الله تعالیٰ باندے۔ او شپږم بیان دَ صداقت دَ قرآن دے۔

تفسیر :- پدے آیت کښې اثبات دَ صداقت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دے په دلیل دَ عدم حضور دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ ورورو دَ یوسف علیه السلام سره او سره دَ دیته چه خبر دَ هغوی ئے بیان کړیدے پوره پوره په رښتیا سره، او دا رنګ په سورة آلعمران ۴۴ کښې او سورة القصص ۴۴، ۴۵، ۴۶ کښې هم دی۔

وَمَآ اَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ
او نه دي زیات خلق اګرچه حرص کوې
بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۳﴾ وَمَا تَسْئَلُهُمْ عَلَيْهِ
ایمان راوړونکي . او نه غواړې ته د دوی نه پدې باندې
مِنْ اَجْرٍ ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ
څه عوض ، نه دے دا مګر نصیحت دے
لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۴﴾ وَكَاَيِّنْ مِّنْ اٰيَةٍ
ټولو خلقو لره . او ډیر دلیلونه د توحید د الله تعالی دي
فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَمُرُّوْنَ
په آسمانونو او زمکه کښ چه ورتیریږي دوی هروخت
عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ ﴿۱۰۵﴾
په هغې باندې او بیا هم د هغې نه مخ ګرځوي .

۱۰۳ ، ۱۰۴ . پدے دوؤ آیتونو کښ تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او مقصد دا دے چه سره د صداقت ستا د طرف نه حرص هم دے په هدایت د دے مشرکانو او اجرت نه اخستل دي او پوره وعظ پیش کول دي بیا هم د دوی ایمان نه راوړل په وجه د عناد د دوی دي .

اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ، یعنی که بالفرض اجرت په دے اخستلے کیدلے نو ټول عالم ته دا ذکر نه ورسیږي نو دا جمله ورومستو علت دے د پاره د مخکنۍ جملے .

۱۰۵ . په دے آیت کښ زجر دے مشرکینو ته په اعراض کولو د دوی د دلیلونو د توحید نه چه په آسمانونو او زمکه کښ بے شماره دي لکه چه اعراض کوي د دحق نه . يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا ، مراد د دینه بیا بیا تیرول د نظر دي پدغه څیزونو باندے .

وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِاللَّهِ إِلَّا

او ایمان نه لري زیات خلق په الله تعالیٰ باندے مګر

وَهُم مُّشْرِكُونَ ﴿١٠٦﴾ أَفَأَمِنُوا

حال دا چه شرک هم کوي ۔ آیا په امن کیدیشي دوي دَ دینه

أَن تَأْتِيَهُمْ غَاشِيَةٌ مِّنْ عَذَابِ

چه راشي په دوي باندے پوره راګیروونکے دَ عذاب

اللَّهِ أَوْ تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً

دَ الله تعالیٰ نه یا په راشي دوي ته قیامت ناګهانه

ف۱:۔ په دے آیت کښ زجر دے په ګډولو دَ شرک دَ ایمان سره او دا تفسیر دَ اعراض دے ۔ او مطلب دَ آیت دا دے چه ډیر خلق داسے شته دے چه اقرار کوي چه الله تعالیٰ خالق مالک دے او کله ترینه په مصیبتو کښ مدد هم غواړي او دُعا ګانے غواړي او کله نورعبادتونه هم کوي لیکن سره دَ هغے دَ شرک عقیده لري ۔ او دَ شرک کارونه کوي یعني دَ الله تعالیٰ نه سِوا نور هم کارساز او مدد ګار ګنړي او عالم الغیب ګنړي او دَ هغوي نه غائبانه مدد غواړي او دَ هغوي په نوم باندے نذرونه او منختے کوي نو دا خلق یقیناً مشرکان دي او دغه ایمان دَ دوي په وجه دَ شرک دَ دوي برباد دے او دا آیت صریح دے چه هر کله دَ ایمان سره دَ شرک عقیده ګډه شي نو هغه ایمان برباد شي دَ دے وجے نه پدغه اقرار سره فقط دَ دَ نه مؤمن نشي وئیلے کیدے بلکه مشرک به وي او ابن کثیر لیکلے دي چه پدے عمل کښ ریاء او خپلو مېتو ته مزي تړل او قسم په غیر الله باندے هم داخل دي دا رنګ آلوسي په روح المعاني کښ تفصیلي رد کړیدے په مشرکانو دَ زمانے باندے او وئیلے دي چه دوي اګرچه دَ جینجو نه ډیر دي لیکن ډیروالے اعتبار نشته

وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿١٠٧﴾ قُلْ هٰذِهٖ

او دوی په نه پوهیږی ۔ ته اوایه دا

سَبِيلِيْٓ اَدْعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ ۚ عَلٰى بَصِيْرَةٍ

زما لار ده چه بلنه کوم توحید دَ الله تعالیٰ ته په دلیل سره

اَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِىْ ؕ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ

زهٔ او څوک چه زما تابعدار دی، او پاکی ده الله تعالیٰ لره

وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٠٨﴾ وَمَآ

او زهٔ نه یم دَ مشرکانو دَ ډلے نه ۔ او نه دی

ف١٠٧ :- هر کله چه مخکښ دوؤ آیتونو کښ اعراض او شرک ذکر شو نو دا اسباب دَ عذاب دی ۔ نو پدے آیت کښ تخویف په عذاب سره ذکر کوی نو داسے شوه چه مخکښ آیتونو کښ سبب ذکر شو او پدے آیت کښ مسبب ذکر کوی غَاشِيَةٌ، داسے عذاب دے چه پټ کړی او راګیر کړی دوی لره ۔

ف١٠٨ :- پدے آیت کښ تبیزی ورکول دی په دعوت باندے او دا علاج دے دَ پاره دَ دفع کولو دَ عذاب چه ذکر شو په تیر شوی آیت کښ ۔

اَدْعُوْٓا اِلَى اللّٰهِ ، تفسیر دے دَ هٰذِهٖ سَبِيْلِىْ ، او په وَمَنِ اتَّبَعَنِىْ، کښ اشاره ده چه تابعدار دَ نبی ﷺ څوک دے چه دعوت ورکوی توحید طرف ته ۔

عَلٰى بَصِيْرَةٍ ، اشاره ده علم دَ دلیلونو ته یعنی دعوت په علم سره ضروری دے ۔

وَسُبْحَانَ اللّٰهِ ، پدیکښ ذکر دَ عقیدے دَ دعوت کوونکی دے او ابن کثیر وئیلی دی چه دَ سُبْحٰنَ اللّٰهِ معنیٰ دا ده چه شریک او نډ او ولد او والد او صاحب او وزیر او

اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا

لیږلي موږ ستا نه مخکښې مګر نارینه

نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰى ؕ

چه وحې کوله موږ هغوی ته د لویو کلو والو نه،

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا

آیا دوی نه ګرځي په زمکه کښې چه اوګوري

كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ

چه څه رنګه وؤ آخرې انجام د هغه خلقو چه د

قَبْلِهِمْ ؕ وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَيْرٌ

دوی نه مخکښې وؤ، او خامخا کور روستنې غوره دے

لِّلَّذِيْنَ اتَّقَوْا ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۹﴾

هغه چا لره چه تقوای لري، آیا تو دوی د عقل نه کار نه اخلي.

مشیربې نشته.

وَمَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ، دا کلمه د براءت ده د ټولو مشرکانو نه اشاره ده چه دعوت کوونکے د توحید په د هر قسم شرک او د مشرکانو د تعلق نه ځان ساتي.

۱۰۹. په دے آیت کښې جواب د شبهے د مشرکینو دے چه هغوی وئیل چه ته رجل یې نو رسول الله نشے کیدے؟

حاصل د جواب دا دے چه مخکښې رسولان ټول نارینه وؤ نه زنانه وے او نه پیریان وؤ او نه ملائیک.

تو دا آیت دلیل دے چه زنانه نبیه نشي کیدے او کومو نصوصو کښې چه ذکر د مریم او آسیه او ساره راغلے دے چه هغوی سره ملائیکو خبرے کړیدی چه په نیز د اهل سنت والجماعت زنانه نبیه نشي کیدے بلکه صدیقه کیدے

حَتّٰىٓ إِذَا اسْتَيْـَٔسَ الرُّسُلُ

(بخوانو منکریتو له مهلت ورکړیوی) تر دے چه نا امیده شو رسولان (د ایمان راوړلو

وَظَنُّوٓا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا

د قوم نه) او گمان ئے اوکړو چه یقیناً دوی نه غلطی شوے ده

جَآءَهُمْ نَصْرُنَا فَنُجِّيَ مَن نَّشَآءُ

نو راغے دوی ته مدد زموږ نو بچ به کړے شو هغه څوک چه مونږ غوختلی

وَلَا يُرَدُّ بَأْسُنَا عَنِ الْقَوْمِ

او نشی واپس کیدلے عذاب زموږ د قوم

الْمُجْرِمِينَ ﴿١١٠﴾ لَقَدْ كَانَ فِي قَصَصِهِمْ

مجرمانو نه ۔ یقیناً شته په دے بیان د حال د دوی کښ

شی ۔ او دا رنګ په دے آیت کښ تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم او تابعدارو د هغه ته په صدق د رسول او په هلاکولو د منکرینو سره ۔

مِنْ أَهْلِ الْقُرٰى ، مراد د دینه لوے آبادئ والا دی ځکه چه په دوی کښ عقل او حلم ډیروی په نسبت د یاتړے والو ۔

وَلَدَارُ الْآخِرَةِ ، دا معطوف دے په پټ عبارت باندے یعنی "وانجینا اهل الایمان فی الدنیا" بچ کړل مونږ مؤمنانو لره په دُنیا کښ ۔

سټلا :- په دے آیت کښ تسلی ده رسولانو ته په نصرت د الله تعالیٰ روستو د ذکر د دعوت د دوی او د صدق د دوی نه ، په دے آیت کښ ډیر احتمالات دی ۔

احتمالات په حَتّٰىٓ کښ دا دی :

ع۱ :- چه حَتّٰىٓ متعلق دے په ما ارسلنا پورے ۔

ع۲ :- دویم دا چه متعلق دے په مقدر پورے یعنی تراخی نصرهم حتی ۔

# عِبْرَةٌ لِّأُولِى الْأَلْبَابِ ۗ مَا كَانَ

لوے عبرت پوره عقل والو لره، او نه دے دا قرآن

ع۳. دریم دا چه حتّٰی ابتدائیه دے.
احتمالات په اِسْتَیْاَسَ کښ دا دی:
ع۱، نا امیدئ ته نزدے شول. ع۲، نا امیده شول د ایمان
راوړلو د قوم نه. ع۳، او الزام المخاطب بما لا یلتزم
په طور د محبت سره.
احتمالات په معنیٰ دَظَنوا کښ دا دی:
ع۱، په معنیٰ د یقین سره. ع۲، په معنیٰ د غالب گمان
سره. ع۳. په معنیٰ د خطرات قلبیه یعنی زړه کښ بے
اختیاره تیریدل.
احتمالات په ضمیر دَظَنوا کښ:
ع۱، مکذبینو ته راجع دے. ع۲، تابعدارو ته راجع دے.
ع۳، دواړو ته په یو ځائے راجع دے. ع۴، رسولانو ته
راجع دے.
او په نسبت د دے کښ رسولانو ته احتمالات:
ع۱، ظن بے اختیاره راتلل. ع۲، الزام المخاطب بما
لا یلتزم په طریقه د محبت سره. ع۳، نزدے شوچه گمان
ئے کړے وے.
احتمالات په کذبوا کښ:
ع۱، صیغه د مجهول مجرد. ع۲ صیغه معلوم مجرد. ع۳،
مجهول مزید مشدد. ع۴، معلوم مزید مشدد. زموږ
په قراءت کښ مجهول مخفف دے.
احتمالات په ضمیر دَکذبوا مخفف کښ:
ع۱، مکذبین. ع۲، تابعداران. ع۳، دواړه ډلے. ع۴،
رسولان.
احتمالات په نسبت دَکذبوا مخفف کښ رسولانو ته:

حَدِيثًا يُّفْتَرٰى وَلٰكِنْ تَصْدِيقَ

خبره دَ ځان نه جوړه کړے شوے لیکن (نازل کړے شوے) دَ پاره دَ تصدیق

الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيلَ

دَ هغه کتابونو چه مخکښ دَ دینه وو او دَ پاره دَ وضاحت

كُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى وَّرَحْمَةً

دَ هر ضروری خبرے او دَ پاره دَ هدایت او دَ رحمت

لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُونَ ﴿۱۱۱﴾

هغه قوم لره چه ایمان راوړی۔

۱۲ ع ۶

ع۱ په معنیٰ دَ غلطیٔ او سهوه کیدل په طریقه تبلیغ کښ۔ ع۲ مخفف په معنیٰ دَ مشدد دے۔ ع۳ کذب دَ جانب دَ الله تعالیٰ نه په احتمالونو نیرو شوؤ سره۔ نو دا ټول او ویشت احتمالات شول خازن وئیلی دی چه ظن په معنیٰ دَ اختیاری گمان کولو دے او نسبت دے انبیاء علیهم السلام ته او معنیٰ دَ کُذِبُوا، چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه کذب وئیلے شوے دے او خلاف دَ وعدے کړے شوے دے۔ دا غلطه توجیه ده۔ دا سے یو عام شخص مسلمان نشی کولے نو شان دَ انبیاء علیهم السلام خو ډیر اوچت دے او دا توجیهات چه تیر شول اکثر دَ هغے نه خازن په خپل تفسیر کښ راجمع کړیدی۔

۱۱۱:۔ په دے آیت کښ اثبات دَ صدق دَ قرآن دے په پنځو وجوهاتو سره۔

اوله وجه:۔ دا رښتینے واقعه دَ یوسف او دَ وروڼو دَ هغه دلیل دے په صداقت دَ قرآن۔

دویمه وجه:۔ دے تصدیق دے دَ کتابونو مخکنو ځکه چه په هغے کښ هم دا قصه په دے طریقے سره ذکر ده۔

دریمه وجه:۔ په دیکښ بیان دَ ټولو ضروری عقیدو او احکامو دے

څلورمه وجه :- دیکښې هدایت دے یعنې بیان دے په دلیلونو سره۔
پنځمه وجه :- دا چه رحمت دے مؤمنانو لره یعنې په سبب
دَ ایمان سره په دے کتاب رحمتونه دَ الله تعالی نازلیږی یا
مراد دَ رحمت نه تثبیت او کلکوالے دے لکه سورة آل عمران
په ۸ کښې چه ذکر دے یا مراد دَ دینه نرم والے دَ زړه دے۔
عِبْرَةٌ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ، بعض دَ عبرتونو نه دا دی چه نتیجه
دَ صبر په مصائبو کښې سلامتیا او کرامتونه دی او نتیجه دَ
مکرونو او حسد پښیمانی رسوائی او ذلت دے۔ دارنګ هغه ذات
چه قادر وو په راویستلو دَ یوسف علیه السلام دَ کوهی نه او بیا
دَ جیل نه او بادشاهی یے ورله ورکړه او وروڼه او پلار یے
ورسره یو ځائے کړه نو قادر دے چه محمد صلی الله علیه وسلم
له به هم کامیابی او نصرت ورکوی۔

تمت تفسیر سورة یوسف

سورة الرعد مكية | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰياتها ۴۳ ركوعاتها ۶

خاص په نوم دَ الله امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحيم دے

الٓمّٓرٰ قف تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ

الله تعالىٰ دَ دے په مراد ښه پوهيږي، دا آياتونه دَ لوے کتاب دي،

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سورة الرعد

په دیکښې اختلاف دے چه دا سورت مکی دے یا مدنی صحیح قول دا دے چه دا سورت مکی دے۔

ربط :- دَ دے سورت ربط دَ سورت یوسف سره دا دے چه سورة یوسف کښې مسئله دَ توحید په دلیل نقلی سره ثابته کړے شوه۔ نو په دے سورت کښې عقلی دلیلونه او مثالونه ذکر کوی۔ دا رنګ په هغه سورت کښې اثبات دَ صداقت رسول وو نو په دے سورت کښې دَ شبهاتو جوابونه ذکر کوی۔

دعوٰی دَ سورت :- دَ دے سورت دوه دعوے دی۔

اوله دعوٰی :- اثبات دَ توحید دے په پینځو طریقو سره۔

اوله طریقه :- رد دے په خلورو اقسامو دَ شرک باندے چه شرک په علم کښې دے او په تصرف کښې دے او په عبادت کښې دے او په دُعاء کښې دے او دا په دیارلس آیتونو کښې دے۔

دویمه طریقه :- دلیلونه عقلی تفصیلی دی او هغه هم دیارلس دی په حذف دَ تکرار سره۔

خلورمه طریقه :- پینځه مثالونه دی۔

پینځمه طریقه :- مقابله ده په مینځ دَ صفاتو دَ مؤحد او مشرک کښې چه لس صفات دَ مؤحد او درے صفات دَ مشرک ئے ذکر کړیدی نو دا هم دیارلس دی۔

دویمه دعوٰی :- اثبات دَ رسالت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم

وَالَّذِيْٓ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ
او هغه چه نازل کړې شوی دے تا ته د طرف د رب ستا نه
الْحَقُّ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ
حق دے خو لیکن زیات خلق
لَا يُؤْمِنُوْنَ ۝١ اَللّٰهُ الَّذِيْ رَفَعَ
ایمان نه لری۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے چه اوچت کړی
السَّمٰوٰتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا
آسمانونه بے د ستنو نه چه تاسو ئے وینئ
ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ وَسَخَّرَ
بیا برابر شوی دے د عرش د پاسه او تابع کړیدی د حکم خپل

دے په جواب کولو سره د شپږو شبهاتو او په شها دت د الله تعالیٰ او د اهل کتابو سره۔

خلاصه د سورت :۔ دا سورت تقسیم دے شپږو بابونو کښ۔ اول باب تر اوم آیت پورے دے پدے باب کښ ترغیب دے کتاب الله ته په آیت ۱ کښ بیا درے عقلی دلیلونه دی په ۲، ۳، ۴ کښ بیا درے زجرونه دی۔ اول زجر په انکار د بعث سره دے په آیت ۵ کښ۔ دویم زجر په طلب کولو د عذاب په تلوارے سره دے۔ او دریم زجر په شبهه کولو سره په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے۔ په طلب کولو د معجزے سره د هغه نه۔

تفسیر:۔ ۱:۔ پدے آیت کښ ترغیب دے قرآن ته په درے طریقو سره۔ اول اعجاز د قرآن په ذکر د مقطعاتو سره۔ دویم ۔ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ ، او الکتاب نه مراد کامل او عظیم الشان کتاب دے۔ او دریم حکم په حقانیت د دے او په روستو جمله کښ زجر دے په ایمان نه راوړلو سره۔

الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ط كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ

نمر او سپوږمۍ ، هر یو چلیږي (ځي) په وخت

مُّسَمًّى ط يُدَبِّرُ الْاَمْرَ يُفَصِّلُ

مقرر باندې ، انتظام کوي د ټولو کارونو ته جدا جدا بیانوي الله

الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ بِلِقَآءِ رَبِّكُمْ

دلیلونه د دې د پاره چه په ملاقات د رب ستاسو

تُوْقِنُوْنَ ۝۲ وَهُوَ الَّذِيْ مَدَّ

یقین او کړئ تاسو ۔ او الله تعالیٰ هغه ذات دے چه راښکلے ده

س ۲ :۔ هر کله چه ایمان نه راوړل په قرآن باندې په سبب د شرک سره دي نو د شرک د رد د پاره عقلي دلیلونه ذکر کوي. په دے آیت کښ اول دلیل عقلي دے او د قدرت د الله تعالیٰ نه پنځه امور ذکر کړے شوي دي او دا ټول د نظام علوي سره تعلق لري.
بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ، د دے دوه معنے دي. اوله معنیٰ دا ده چه آسمان ئے اوچت کړیدے بغیر د ستنو نه ، وینئ تاسو دا آسمانونه چه ستنے ورته نشته ۔ او دویمه معنیٰ دا ده اوچت کړے ئے دي آسمانونه بغیر د داسے ستنو نه چه تاسو ئے وینئ یعني ستنے شته خو تاسو ئے نه وینئ ۔ لیکن اول قول صحیح دے.
ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ ، استوی او عرش په معنیٰ حقیقي سره دي بغیر د تشبیه او تمثیل نه او کیفیت ئے معلوم نه دے او تاویل ئے حرام دے ۔
لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ، مراد د دینه فنا د دُنیا ده ۔
يُدَبِّرُ الْاَمْرَ ، یعني روستو د رفع او استوی او تسخیر نه تدبیر د دے ئے بل چاته سپارلے نه دے پخپله نظام چلوي ۔
يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ ، هغه دلیلونه مراد دي چه دلالت کوي په

الْأَرْضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْهَارًا
زمکه او پیدا کړیدی په هغې کښ پاخه غرونه او سیندونه
وَمِنْ كُلِّ الثَّمَرَاتِ جَعَلَ فِيهَا
او د هر قسم میوو نه پیدا کړی دی په هغې کښ
زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ يُغْشِي اللَّيْلَ
جوړې دوه اغوندوی شپه
النَّهَارَ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ
ورځ ته، یقیناً په دیکښ ډیر دلیلونه د توحید دی
لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ③ وَفِي الْأَرْضِ
هغه قوم لره چه فکر کوی۔ او په زمکه کښ

توحید او پوره قدرت د الله تعالیٰ پاندے۔
لَآيَاتٍ، یعنی سره د توحید نه دا دلیلونه د بعث بعد الموت هم دی۔
سبب دا آیت دویم دلیل عقلی سفلی دے۔ او قدرت د الله تعالیٰ نه یے پنځه امور ذکر کړیدی۔ زَوْجَيْنِ، مراد دا دے چه په ټولو یو تو کښ جوړے یعنی مذکر او مؤنث شته۔ او دویم قول دا دے چه مراد د زَوْجَيْنِ، نه دوه قسمه دی لکه خوږے او تروے او وړے دانے او غټے دانے او کوندے او اوچے او تورے او سپینے شنے او سرے وغیره۔
لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ، په مخکښ آیت کښ صرف محسوسات ذکر کړی وو او په دے آیت کښ د محسوساتو سره معقولات هم ذکر دی۔
زوجیت د ثمراتو او انقلاباتو د شپے او ورځو او دا فکر ته محتاج دی نو د دے آیت په آخر کښ یے یتفکرون ذکر کړو۔ ځکه چه فکر ویلے شی راویستل د معقولاتو د محسوساتو نه۔

قِطَعٌ مُّتَجٰوِرٰتٌ وَّجَنّٰتٌ مِّنْ اَعْنَابٍ

ټکړے دی ډیو بل ګاونډ کښ او باغونه دی د انګورو نه

وَّزَرْعٌ وَّنَخِیْلٌ صِنْوَانٌ وَّغَیْرُ

او فصلونه او کجورے کوټے (ډیرو څانګو والا) او رنګې رنګې

صِنْوَانٍ یُّسْقٰی بِمَآءٍ وَّاحِدٍ وَنُفَضِّلُ

(بغیر د څانګو نه) او به کیږی په یو قسم اوبو سره او غوره والے ورکوو

بَعْضَهَا عَلٰی بَعْضٍ فِی الْاُکُلِ ؕ اِنَّ

بعضو سره په بعضو باندے په خوړو کښ ، یقینًا

فِیْ ذٰلِکَ لَاٰیٰتٍ لِّقَوْمٍ یَّعْقِلُوْنَ ﴿۴﴾

په دیکښ دی دلیلونه هغه قوم لره چه عقل لری۔

سٓ :۔ دا دریم دلیل عقلی دے او په دیکښ هم د قدرت د الله تعالیٰ نه پنځه امور ذکر دی۔

مُتَجٰوِرٰتٌ ، یعنی مختلفې ټکړے د زمکے چه د یو بل سره نزدے دی آبادے زمکے او خوره دارے زمکے او مختلف رنګونو والا۔

صِنْوَانٌ ، جمع ده ، د صِنْوٌ هغه کجوره چه د یو ویخ نه پئے ډیرے څانګے راوتلے وی او غیر صنوان هغه دی چه د ویخ نه یوه تنه بے څانګو وی۔

وَ نُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلٰی بَعْضٍ فِی الْاُکُلِ ، یعنی زمکه یوه ده او اوبه هم یو قسم دی او حال دا دے چه میوے مختلفې دی۔

او دا صریح رد دے په هغه خلقو چه طبیعت او ماده پرست دی چه که چرے پیدا کیدل د اشیاؤ په طبیعت او ماده سره وے نو نه به وو اختلاف په میوو کښ۔ نو معلومه د دینه دا شوه چه پیدا کونکے الله تعالیٰ دے۔

لِقَوْمٍ یَّعْقِلُوْنَ ، هر کله چه مجاورت د ټکړو د زمکے او اختلاف د

وَإِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ ءَإِذَا

او که ته حیرانیږے (دَ دوی دے انکار (ته دَ توحید نه) نو دَ حیرانتیا خبره دَ دوی دا وینا دَ کله چه

كُنَّا تُرَابًا ءَإِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ۗ

موږ خاورے شو آیا موږ به شو په پیدائښت نوی کښ ،

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ ۖ

دا هغه خلق دی چه کفر ئے کړیدے په رب خپل باندے

وَأُولَٰئِكَ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ ۖ

او دغه خلق طوقونه به واچولے شی دَ دوی په سټونو کښ

وَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا

او دغه کسان اور والا دی دوی به په هغے کښ

خَالِدُونَ ۝ وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ

همیشه وی . او په تا دئ سره غواړی سنانه عذاب

باغونو او فصلونو او دَ څانګو او خوندونو سره دَ یو والی دَ اوبو او زمکے نه صرف معقولی امور دی . دَ دے وجے نه ئے یعقلون ذکر کړو.

ف :- پدے آیت کښ زجر دے منکرینو (دَ بعث بعد الموت) ته سره دَ تخویف اخروی نه او معنیٰ دَ آیت دا ده چه که ته تعجب کوے په انکار دَ دوی دَ توحید نه نو تعجب اوکړه دَ بلے خبرے دَ دوی نه هم چه هغه انکار (دَ بعث بعد الموت) دے.

فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ ، عبارت داسے دے فذو عجب (تعجب والا دے) او وجه دَ عجبیت دا ده چه دا قول دَ دوی ښکاره انکار دے دَ قدرت دَ الله تعالیٰ نه.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ ، دا دلیل دے چه انکار دَ بعث نه یقیناً کفر دے .

قَبْلَ الْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ مِنْ

ورانډے دَ ایمان راوړلو نه او حال دا چه تیر شوي دي دَ

قَبْلِهِمُ الْمَثُلٰتُ ؕ وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ

دوی نه مخکښ عذابونه شرموونکي، او یقینًا رب ستا

مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ ۚ وَاِنَّ

بخنه کوونکے دے خلقو ته سره دَ ظلم دَ هغوي نه او یقینًا

رَبَّكَ لَشَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٦﴾ وَيَقُوْلُ

رب ستا خامخا سخت عذاب ورکوونکے دے. او وائي

وَ اُولٰٓئِكَ الْاَغْلٰلُ فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ، دا په دنیا کښ په طریقه دَ مثال سره ده یعني دَ دوی غاړے ته پیځ دَ تقلید دَ ګمراهو پرتے دي دلیل ورسره نشته دے یا په قیامت کښ حقیقتًا داسے حالت کښ به وي. اَغْلَالُ، جمع دَ غل ده پیځ دَ څرمنے چه په هغے بانډے ویخته وي او په هغے کښ سیږے شوے وي.

سے :- پدیکښ زجر دے په تلوار سره طلب کولو دَ عذاب لره مخکښ دَ ایمان راوړلو ته لکه سورة الانفال ۳۲ کښ.

قَبْلَ الْحَسَنَةِ ، مراد دَ دینه ایمان راوړل دي او توبه کول دي دَ شرک نه.

اَلْمَثُلٰتُ ، جمع دَ مُثلة ده هغه عذابونه وائي چه شرمول کوي دَ دے وجے نه دَ مقتول نه غوږونه یا پوزه وغیره پریکولو ته مُثله ویلے شي.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلٰى ظُلْمِهِمْ ، دَ ظلم نه مراد کفر او شرک دے او مغفرت په معنی دَ روستو کولو دَ عذاب دے یعني الله تعالی روستو کوي عذاب لره دَ خلقو نه سره دَ شرک دَ هغوي نه. یا مغفرت پخپله معنی دے لیکن شرط دَ ایمان ورسره مراد دے. معنی دا ده چه الله بخي خلق روستو دَ

شرک کولو نه خو پدے شرط چه ایمان راوړی یا د ظلم نه مراد سوا د کفر او شرک نه نور گناهونه دی او د الناس نه مراد مؤمنان دی معنی دا ده چه یقیناً الله تعالی بخښنه کوی مؤمنانو ته سره د گناهونو د هغوی نه کله چه اوغواړی او که اوغواړی نو عذاب په خه وخت پورے ورکوی۔

ف:۔ دا زجر دے منکرینو ته په طلب کولو د دوی معجزات د نبی صلی الله علیه وسلم نه او دلته مراد د آیت نه نا اشنا عذابونه راو ستل دی د آسمان یا د زمکے نه په قرینه د يَسْتَعْجِلُونَكَ بِالسَّيِّئَةِ، سره لکه چه په سورة بنی اسرائیل ۹۲ کښ ذکر دی. او مطلب دا دے چه معجزات دوی د نبی صلی الله علیه وسلم په اختیار کښ گنړی نو ځکه یې د هغه نه طلب کوی لیکن د هغه کار خو صرف انذار دے۔

وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ، دا مستقله جمله ده خبر مقدم او مبتدا مؤخر ده۔ معنی دا ده چه "د هر یو قوم د پاره مستقل هدایت کوونکی وی" که نبی وی او که غیر نبی او یا دا جمله عطف ده په منذر باندے نو معنی دا شوه چه بیشکه ته ویره ورکوونکے او هدایت کوونکے یې ټولو قومونو ته۔ نو دلیل شو په عموم د بعثت د نبی صلی الله علیه وسلم باندے۔ یا مبتداء محذوف ده یعنی والله لکل قوم هاد .

مَا تَحْمِلُ كُلُّ اُنْثٰى وَمَا تَغِيْضُ

دَهغې چه په ګېډه پورته کوي هره زنانه او هغه چه کموي

الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ؕ وَكُلُّ شَيْءٍ

بچه داني او هغه چه زياتوي ، او هر شے

عِنْدَهٗ بِمِقْدَارٍ ⑧ عٰلِمُ الْغَيْبِ

دَ الله تعالىٰ سره په خاص انداز سره دي- عالم دے په پټ

وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيْرُ الْمُتَعَالِ ⑨ سَوَآءٌ

او ښکاره باندے ډير لوے دے او پورته دے. برابر دي

مِّنْكُمْ مَّنْ اَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَنْ جَهَرَ

ستاسو نه (په علم دَ الله تعالىٰ کښ) هغه څوک چه پټه کوي وينا او هغه چه ښکاره

بِهٖ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍۭ بِالَّيْلِ

وينا کوي او هغه څوک چه پټيږي ونکے وي دَ شپے

وَسَارِبٌۢ بِالنَّهَارِ ⑩ لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ

او ګرځي دَ ورځے . دَ الله تعالىٰ په اختيار کښ دي وار په وار

۸ :- خلاصه : دَ دے آيت نه دويم باب دے تر ۱۶ پورے پدے باب کښ پنځه عقلي دليلونه دي په رد دَ شرک في العلم دَ آيت ۸ نه تر ۱۲ پورے - بيا حال دَ ملائکو ذکر کوي په طريقه دَ دليل نقلي باندے سره دَ تخويف نه په ۱۳ کښ - بيا رد دے دَ شرک في الدعاء په مثال سره په آيت ۱۴ کښ -

تفسير، په دے دريو آيتونو ۸، ۹، ۱۰ کښ اثبات دَ علم غيب دے الله تعالىٰ لره روستو دَ ذکر کولو دَ دليلونو دَ قدرت دَ الله تعالىٰ نه -

وَمَا تَغِيْضُ الْاَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ، مراد دَ دے دا دے چه کله

مِّنۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ وَمِنۡ خَلۡفِهٖ

راتلونکی ملائک وړاندې او وروستو دَ انسان نه

يَحۡفَظُوۡنَهٗ مِنۡ اَمۡرِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

چه حفاظت کوی دَ هغه په سبب دَ حکم دَ الله تعالی، یقینًا الله تعالی

لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوۡمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوۡا مَا

نه بدلوی هغه حال چه په یو قوم باندې وی تر هغې پورې چه بدل کړی دوی هغه حالونه

بِاَنۡفُسِهِمۡ ؕ وَاِذَاۤ اَرَادَ اللّٰهُ بِقَوۡمٍ

چه دَ دوی نفسونه پرې مشغول دی، او کله چه اوغواړی الله تعالی په یو قوم باندې

ولد مخکښ دَ مودې نه پیدا شی چه هغه ته میاشتې دی عادتًا او کله موده زیاته شی په رحم کښ او په هغې کښ اختلاف دے دَ اهل علمو دَ امام ابوحنیفهؒ په نیز دوه کلونه دی او دَ امام شافعیؒ په نیز څلور او دَ امام مالکؒ په نیز پنځه کلونه او کمه موده شپږ میاشتې ده او داسې کله دَ ولد اندامونه ناقص وی او کله زیاتوی داسې کله کله یو ولد ناقص الخلقت وی۔

وَمَا تَزۡدَادُ، یعنی دَ یو نه زیات اولاد۔

وَسَارِبٌۢ بِالنَّهَارِ، دَ دې یوه معنیٰ دَ ګرځیدونکے او دویمه معنیٰ ئې دا ده ښکاره کیدونکے او دریمه معنیٰ ده پټیدونکے لیکن روميے دوه معنے غوره دی۔

الۡكَبِيۡرُ، لوئی دَ ذات او دَ صفاتو دواړو ته شامل دے۔

الۡمُتَعَالِ، دَ علو نه ماخوذ دے یعنی پورته او اوچت دے ځکه چه دَ عرش دَ پاسه دے دَ هغه نه بل څیز پورته نشته دے۔

سُوْٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ ۚ وَمَا لَهُمْ

ځه تکلیف نو نشته واپس کوونکے دَهغے او نشته دوی لره

مِّنْ دُوْنِهٖ مِنْ وَّالٍ ⑪ هُوَ الَّذِیْ

سِوا دَ الله تعالیٰ نه څوک سا تونکے ۔ الله تعالیٰ هغه ذات دے

یُرِیْكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَّطَمَعًا

چه ښائی تاسو ته بریښنا دَ ویرے او دَ طمع دَپاره

سلا ۔ دا هم دلیل عقلی دے په تصرف او په علم دَ الله تعالیٰ باندے۔
مُعَقِّبٰتٌ ، مراد دَ دینه هغه ملائک دی چه دَ شپے او دَ ورځے نمبر په نمبر راځی دَ انسانانو دَ حفاظت دَپاره او دا غیر دی دَ کراماً کاتبین نه او دَ لفظ دَ لَهٗ معنیٰ دا ده چه خاص دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دی۔
یَحْفَظُوْنَهٗ ، دَ شر دَ جناتو او نورو حشراتو نه حفاظت کوی ۔ او مِنْۢ بَیْنِ یَدَیْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ ، متعلق دے په یحفظونه پورے یا متعلق دے په معقبٰت پورے ۔
مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ ، مِنْ اجلیه دے یا په معنیٰ دَ باء سره دے ۔
اِنَّ اللّٰهَ لَا یُغَیِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتّٰی یُغَیِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ، دا رنګ سورة الانفال سلا کښ هم تیر شوی دی او دا جمله جواب دَ سوال ده چه هر کله ملائک حفاظت کوی دَ انسان نو بیا په ده باندے عذاب او مصیبت ولے نازلیږی ؟
جواب :۔ الله تعالیٰ دا حفاظت دَ انسان نه نه بدلوی تر هغے پورے چه دا انسان خپل حال بدل کړی یعنی ایمان او توحید او سنت پریږدی او په کفر او شرک او بدعت کښ اخته شی نو الله تعالیٰ تر ینه حفاظت لرے کړی۔
یُغَیِّرُوْا مَا بِاَنْفُسِهِمْ ، دا مراد نه دے چه انسان دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه احوال بدلولے شی بلکه دا نسبت سببی دے یعنی په سبب دَ ګناهونو سره دغه حالت دَ خیر بدل شی۔

وَيُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ ⑫ وَيُسَبِّحُ

او پیدا کوی وریځے درنے - او تسبیح وائی

الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ

رعد سره دَ ستائینے دَ الله تعالیٰ نه او نور ملائک دَ وجے دَ

خِيْفَتِهٖ ۚ وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيْبُ

ویرے دَ الله تعالیٰ نه او رالیږی تندرونه نو رسوی هغه

بِهَا مَنْ يَّشَآءُ وَهُمْ يُجَادِلُوْنَ

هغه چاته چه اوغواړی او دوی جګړه کوی

فِي اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيْدُ الْمِحَالِ ⑬

په توحید دَ الله تعالیٰ کښ او هغه سخت نیوونکے دے -

وَاِذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِقَوْمٍ سُوْٓءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ ، دا هم جواب دَ سوال دے - سوال دا دے چه کله یو انسان یو عمل نه وی کړے او حال دا چه په هغه باندے مصائب راځی نو ملائک څه رنګه حفاظت کوی؟ حاصل دَ جواب دا دے چه هر مصیبت په اراده دَ الله تعالیٰ سره راځی نو اراده دَ الله تعالیٰ ملائک نشی واپس کولے او نور مخلوق هم مدد نشی کولے -

سـ۱۲ :- پدے آیت کښ هم دلیل عقلی دے په تصرفاتو دَ الله تعالیٰ سره. خَوْفًا وَّطَمَعًا ، یعنی دَ برق نه یره دَ تندر وی او طمع دَ باران هم. دَ باران نه یره دَ بعضو خلقو چه چا ته پکښ نقصان وی او دَ بعضو دَ پاره طمع دَ فائدو.

الثِّقَالَ ، هغه وریځے چه په باران سره درنے وی -

سـ۱۳ :- پدے آیت کښ دلیل نقلی دے دَ ملائکو نه په توحید دَ الله تعالیٰ ځکه چه تسبیح او حمد کلمات دَ توحید دی او ورسره تخویف دنیوی هم دے -

لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ ؕ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ

خاص دَ الله تعالیٰ بلنه حق بلنه ده ، او هغه کسان چه دوی ترینه مخ غواړی

مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ

سوا دَ الله تعالیٰ نه نشی قبولولے دوی لره

بِشَیْءٍ اِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ اِلَى الْمَآءِ

هیڅ حاجت (نه دے دَ دوی مثال) مگر پشان دَ هغه چا چه اوګدی کړی وړغوی اوبو ته

لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ ؕ وَمَا

دَ دے دَ پاره چه اورسی دَ ده خولے ته او نه دی هغه رسیدونکی ده ته ، او نه ده

دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِیْ ضَلٰلٍ ﴿۱۴﴾

دعا دَ کافرانو مگر په گمراهئ کښ ده .

الرَّعْدُ ، دا ملک دے چه مقرر دے په وریځو او حمد لولی هر وخت کښ او خاص په وخت دَ باران وریدلو کښ - اول قول دا دے چه رعد آواز دَ وریځو ته وائی (یعنی گړهیدل) او نسبت دَ تسبیح هغے ته په طریقه دَ حال سره ده - نه چه په طریقه دَ قال سره -

وَهُمْ يُجَادِلُوْنَ فِی اللّٰهِ ، واو حالیه دے یعنی صاعقه په دوی باندے راځی په وخت دَ جدال کولو کښ یا واو استینافیه دے دَ پاره دَ زجر دَ مشرکینو -

ملا :- دا آیت نتیجه ده دَ تیرو شوؤ دلیلونو پدے قول کښ چه لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ دَ ، دوه توجیه دی -

اوله توجیه معنیٰ دا ده چه لَهٗ خبر مقدم دے دَ پاره دَ تخصیص او اضافت دَ دعوت اضافت دَ موصوف دے صفت ته یعنی حقه بلنه خاص الله تعالیٰ لره ده او دَ غیر الله بلنه باطله ده -

دویمه توجیه معنیٰ دا ده چه دعوة الحق دَ توحید دے معنیٰ

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

اوخاص الله تعالىٰ لره سجده كوى هغه څوک چه دى په آسمانونو او زمكه كښ

دا ده چه دعوت دَ توحيد خاص دَ الله تعالىٰ دعوت دے او دَ مشركانو دعوت باطل دے ليكن اوله توجيه دَ روستو جملے سره پوره مناسبه ده ـ

او په دے آيت كښ رد دَ شرك فى الدعاء دے په طريقه دَ مثال سره. حاصل دَ مثال دا دے چه يو كس وى او لاسونه ئے اوګده كړى وى او بوته په دے مقصد چه هغه اوبه دَ ده خولے ته را ورسى او آواز كوى اوبو ته ليكن هغه اوبه ده ته نشى رسيدے ـ نو دا رنګ هغه مشرک چه را مددشه وائى هغه چاته چه دے ئے حاجت پوره كوونكے ګنړى سوا دَ الله تعالىٰ نه او هغه لرے وى دَ ده نه او يا مړى وى نو هغه دَ ده آواز نشى آوريدے او نه دَ ده حاجت پوره كولے شى نو دَ معبودانو باطلو تشبيه ئے وركړيده دَ اوبو سره چه نه وينى او نه آورى او نه چا ته پخپله رسيدے شى ـ

بله طريقه دَ دے تمثيل دا ده چه يو تږے سړے وى او سراب اُوينى او خيال اوكړى چه دا اوبه دى او لاس اوګد وى هغے ته چه هغه دَ ده خولے ته را ورسى او حال دا دے چه هغه ده ته نشى رارسيدے ځكه چه دَ ده ګمان غلط دے ـ نو دا رنګے هغه مشرک دے چه په معبود باطل باندے عقيده لرى چه دا الله دے او دے دَ هغه نه حاجتونه هم غواړى او هغه دَ ده حاجت نشى پوره كولے دَ دے وجے نه چه دَ ده عقيده باطله ده ځكه چه غير الله ئے اله ګنړلے دے ـ

وَ مَا دُعَاءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِىْ ضَلٰلٍ ، دَ دے معنىٰ دا ده هغه كافران چه دَ الله تعالىٰ نه سوا دَ بل چا نه حاجتونه غواړى نو دا دعا نه ده مګر شرک او ګمراهى ده ـ او بله معنىٰ دا ده چه كافران دَ الله تعالىٰ نه دُعا غواړى نو هغه برباد وى يعنى په هغے اجر وثواب نه حاصليږى اګرچه دنيا كښ كله كله قبليږى ـ

طَوْعًا وَّكَرْهًا وَظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ

خوک په رضا او خوک په زور او سوري د دوی صباني

وَالْاٰصَالِ ﴿۱۵﴾ قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ

او بیګاني ۔ ته اوایه څوک دے رب د آسمانونو

سجدة

۱۵ :- خلاصه : د دے آیت نه دريم باب دے تر ۲۶ پورے په دیکښ نهم دلیل عقلی دے بیا لسم دلیل عقلی په ۱۶ کښ دے سره د زجرنه په شرک فی التصرف سره ، او دوه مثالونه دی او بیا یوولسم دلیل عقلی دے سره د دوه مثالونو نه په ۱۷ آیت کښ بیا تقابل په مینځ د موحدینو او مشرکینو کښ دے په تخویف او بشارت سره او په ذکر د لس صفاتو د موحدینو سره د بشارت نه د ۱۸ آیت نه تر ۲۲ پورے او ذکر د دريو صفاتو د مشرکینو او تخویف ۲۵ آیت کښ ۔

تفسیر :- په دے آیت کښ نهم دلیل عقلی دے په ذکر د سجود د تمام عالم سره او مراد د سجود نه انقیاد دے امر تشریعی او تکوینی ته مؤمنان دواړه قسمه انقیاد طوعًا کوی او مشرکان انقیاد تکوینی کوی کرهًا ، یا مراد د سجود نه سجده حقیقیه ده او مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ ، ملائک دی او مراد د وَالْاَرْضِ ، نه مؤمنان دی او په كَرْهًا ، سره مراد دے بعد د استدلال نه یعنی په دلیل سره مجبوره شوی دی ، نو سجده الله تعالیٰ لره خاص کوی یا مراد د طَوْعًا ، او وَّكَرْهًا ، نه حالت د خوشحالی او حالت د خفګان دے یعنی دوی په دواړو حالاتو کښ الله تعالیٰ ته سجده کوی ۔

بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ، په بعضو ملکونو کښ د زوال په وخت کښ سورے نه وی ځکه د هغے ذکر او نه شو یا غدو مخکښ د زوال نه او اصال روستو د زوال نه وی ۔

وَالْأَرْضِ ؕ قُلِ اللّٰهُ ؕ قُلْ أَفَاتَّخَذْتُمْ

او دَ زمکے ، او وایه الله تعالیٰ دے ، او وایه آیا نیولے دی تاسو

مِنْ دُوْنِهٖٓ أَوْلِيَآءَ لَا يَمْلِكُوْنَ

سِوا دَ الله تعالیٰ نه مددګاران چه واک نه لری

لِأَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا ؕ قُلْ

ځان دَپاره دَ هیڅ فائدے او نه دَ هیڅ نقصان او وایه

هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ۙ

آیا برابر دے ړوندا او لیدونکے

أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمٰتُ وَالنُّوْرُ ۚ

او آیا برابر دی تیارے او رڼا

أَمْ جَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوْا

آیا مقرر کړی دی دوی الله تعالیٰ لره برخه والا (په بندګئ کښ) پیدائش کړے

كَخَلْقِهٖ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ ؕ

هغوی پشان دَ پیدائش دَ الله تعالیٰ نو ګډ وډ شو دی لے پیدائش په دوی باندے

قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ

او وایه نه الله تعالیٰ پیدا کوونکے دَ هر څه دے او هغه

الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ⑯ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ

یو دے زورور دے ۔ راوروله دی دَ بره طرف نه

ملا ۔ په یکښ لسم دلیل عقل دے او بیا زجر دے مشرکینو ته او رد دے په شرک فی التصرف باندے بیا دوه مثالونه دی اول مثال دَ موحد او دَ مشرک دے په الاعمی والبصیر سره او دویم مثال دَ شرک او دَ توحید دے په الظلمت والنور سره بیا زجر

مَآءً فَسَالَتۡ اَوۡدِيَةٌۢ بِقَدَرِهَا فَاحۡتَمَلَ

اوبه نو اوبهيږي كندې دَ خپل انداز برابر نو راوخېژوي

السَّيۡلُ زَبَدًا رَّابِيًا ؕ وَ مِمَّا

سيلاب زګونه اوچت ، او دَ هغې نه چه

يُوۡقِدُوۡنَ عَلَيۡهِ فِى النَّارِ ابۡتِغَآءَ

ګرموي دوي هغې لره په اور كښ دَ پاره دَ طلب

حِلۡيَةٍ اَوۡ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثۡلُهٗ ؕ

دَ ګاڼو يا دَ سامان زګونه دي پشان دَ دې ،

كَذٰلِكَ يَضۡرِبُ اللّٰهُ الۡحَقَّ وَالۡبَاطِلَ ؕ

دغسې بيانوي مثال الله تعالىٰ دَ حق او دَ باطل ،

فَاَمَّا الزَّبَدُ فَيَذۡهَبُ جُفَآءً ۚ

نو هرچه زګ دې نو لاړ شي بې كاره

دے مشركينو ته چه خالق دَ هرڅيز يو الله تعالىٰ دے او په خلق كښ دَ هغه سره څوک شريک نشته نو ولې دَ هغه سره په بندګئ كښ څوک شريک جوړوئ۔

قُلِ اللّٰهُ ، هركله چه مشركان چپ شول ځكه چه هغوى دَ الله تعالىٰ نه سِوا بل رب نه ګڼړلو نو نبي صلى الله عليه وسلم ته امر اوشو چه ته په خپله جواب ذكر كړه۔

اَفَاتَّخَذۡتُمۡ ، دَ شرک دَ ربوبيت دَ ترديد نه روستو رد دے په شرک في التصرف باندے او داسے په سورة فرقان ۳ كښ دي

اَمۡ جَعَلُوۡا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ ، دا زجر دے په شرک في الالوهيت باندے په دليل دَ نفي دَ خالقيت دَ غير الله سره او مدخول دَ ام خلقوا دے او استفهام انكاري دے۔

وَأَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ

او هرچه هغه شئ دے چه نفع ورکوی خلقو ته نو باقی پاتے شی

فِي الْأَرْضِ ۚ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ

په زمکه کښې، دغه شان بیانوی الله تعالیٰ

الْأَمْثَالَ ﴿١٧﴾ لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ

مثالونه ۔ هغه چا لره چه خبره یے اومنله د رب خپل

سلا :۔ په دے آیت کښې یولسم دلیل عقلی دے اولا بیا ذکر د دوه مثالونو دے په باره د مقابلے د حق او د باطل کښې، تفصیل د اول مثال دا دے چه باران اووریږی نو په کندو کښې سیلاب یونه راشی په مقدار د هرے یوے کندے او ورسره د سیلاب دپاسه اوچت زګونه وی بیا څه موده وروسته زګ اوچ شی اوصفا اوبه د خلقو د فائدے د پاره پاتے شی نو دا رنګ بعضے خلق علم د توحید او د سنت حاصل کړی او هر یو د خپل محنت مطابق عالم شی بیا دوی پشان د سیلاب د دعوت د پاره مختلف اطرافو کښې خوارۀ شی نو د دوی په مقابله کښې باطل پرست خلق را اوچت شی او شبهات کوی په حق باندے او په اول وخت کښې هغوی غالب وی بیا څه وخت وروسته دغه باطل پرست مغلوب او بے کاره شی او حق دین په دنیا کښې پاتے شی او خلق د هغے نه فائدے اخلی۔ او تفصیل د دویم مثال دا دے چه زرګران سره زر او سپین زر تا نبه قلعی وغیره په اور سره ویلی کړی نو د بعضو نه کالی جوړ کړی د صرف زینت د پاره او د بعضو نه نور سامان جوړ کړی چه د هغے نه څه فائده اخستے کیږی لیکن د دغے او بو ویلی کړے شوو د پاسه هم زګ راشی بیا څه وخت پس دا زګ بے کاره شی او سوچه زر پاتے شی چه د هغے نه کالی د زینت د پاره او سامان جوړوی لکه لوخی او خلق ترینه فائدے اخلی نو دا رنګ هغه علماء دی چه د قرآن او د سنت علم یے د خپل

الْحُسْنٰى ؕ وَالَّذِيْنَ لَمْ يَسْتَجِيْبُوْا

خاشته حال دے، او هغه څوک چه خبره نه مني

لَهٗ لَوْ اَنَّ لَهُمْ مَّا فِى الْاَرْضِ

د رب خپل له چرے شي د دوي د پاره هغه څه چه په زمکه کښ دي

جَمِيْعًا وَّمِثْلَهٗ مَعَهٗ لَافْتَدَوْا

ټول او دومره قدر ورسره شي خامخا په جرمانه کښ به ورکوي

بِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْحِسَابِ ۙ

هغے لره، دغه کسان دوي لره بد حساب دے

وَمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۸﴾

او ځائے د ورتللو د دوي جهنم دے، او ناکاره ځائے دے تیار کړے شوے۔

استعداد مطابق حاصل کړے دے او بیا په نشر واشاعت د دے علم کښ په درس وتدریس سره محنت کوي او غلط مسائل د شرک او د بدعاتو د حق نه جدا کوي او په دے ذریعه نورا هل علم پیدا کوي چه هغه دوه قسمه دي اول هغه د کار او د فائدے خلق وي چه نورو نه فائدے ورکړي دویم داسے خلق چه پخپله د علم نه ځان د پاره فائده اخلي۔ لیکن د دوي په مخالفت کښ باطل پرست ملیان وي بیا څه وخت پس هغه باطل پرست کمزوري شي او حق پرستو خلقو نه فائدے رسي۔

فائده :- هر کله چه دعوت په دوه طریقو سره دے یو دعوت په سفر کولو سره او ګرځیدلو سره او دویم په طریقه د درس او تدریس سره، نو د دے وجے نه دوه مثالونه ئے ذکر کړیدي خو د دواړو مبداء د قرآن وحدیث لوستل او ایزده کول دي ځکه چه بغیر د علم د وحي نه دعوت نشي کیدلے۔

سلا :- پدے آیت کښ ذکر د فریقین دے چه پیدا کیږي په دعوت

أَفَمَنْ يَّعْلَمُ أَنَّمَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ

آيا نو څوک چه يقين لري چه هغه څه چه نازل کړ يشو يدے تا ته

مِنْ رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ أَعْمٰى ط

د رب د طرف نه حق دے پشان د هغه چا دے چه روند وي (د حقانيت د)

إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿١٩﴾

يقيناً نصيحت قبلوي صفا عقل والا۔

الَّذِيْنَ يُوْفُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ

دا هغه کسان دي چه پوره کوي لوظ د الله تعالیٰ لره

وَلَا يَنْقُضُوْنَ الْمِيْثَاقَ ﴿٢٠﴾ وَالَّذِيْنَ

او نه ماتوي دوي پوخ لوظ ۔ او دا هغه کسان دي

سره چه اهل حق او اهل باطل دے په طريقه د مقابلے سره اهل حق د پاره بشارت دے او د اهل باطل د پاره تخويف اخروي دے۔

سُوْٓءُ الْحِسَابِ ، دا دے چه مناقشه اوکړے شي او د هرے ذرے ذرے تپوس اوشي او هيڅ جرم ورته نه معاف کوي۔

سوال :- په دے آيت کښ هم مقابله د فريقينو ذکر ده يو فريق هغه دے چه د قرآن او د توحيد په حقانيت باندے علم او يقين لري او دوي په استجابوا کښ داخل دي. او دويم فريق هغه دے چه د توحيد او د قرآن نه جاهل دي او هغه ته اعمٰى ويلي دي او هغه لم يستجيبوا والا دي او په دے آيت کښ د اهل حق د لسو صفاتو نه اول صفت ذکر شو يدے چه هغه اولوا الالباب دے۔

سن ۲ :- په دے آيت کښ د اهل حق دوه صفات ذکر شوي دي او يُوْفُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ ، د عهد نه توحيد د الله تعالیٰ او ټول اوامر او نواهي مراد دي او دا عهد په عقلي او نقلي دليلونو سره مضبوط کړے شو يدے نو ځکه ورته الْمِيْثَاقَ ، وائي نو عهد

يَصِلُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ

چه پيوست کوی هغه چه الله تعالیٰ حکم کړيدے دَ هغے په پيوست ساتلو

وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُوْنَ سُوْٓءَ

او ويره کوی دَ رب خپل نه او ويريږی دَ بد

الْحِسَابِ ﴿٢١﴾ وَالَّذِيْنَ صَبَرُوا ابْتِغَآءَ

حساب نه - او دا هغه کسان دی چه صبر يې کړيدے دپارهٔ دَ طلب

وَجْهِ رَبِّهِمْ وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ

دَ مخ دَ رب خپل او پابندی کړيده په مونځونو باندے

وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا

او خرچ يې کړيدے دَ هغے نه چه ورکړی دی مونږ دوی ته پټ

وَّعَلَانِيَةً وَّيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ

او ښکاره او دفع کوی په ښهٔ کار سره

او ميثاق يو خيز دے نو يو صفت ثبوتی دے او بل صفت سلبی دے يا عهد الله نه مراد عهود الٰهيه دی او الميثاق نه مراد عهود دَ بندګانو دی -

سلا په دے کښ دَ اهل حق درے صفات ذکر شوی دی دَ دے اول صفت تشريح په تفسير دَ سورة بقره کښ تيره شوے ده فرق دَ خشيت او دَ خوف دا دے چه خشيت مستعمليږی اکثر په مقام دَ تعظيم کښ سره دَ علم نه په حال دَ مخشی عنه او خوف عام دے که تعظيم ورسره وی او که نه. دَ دے وجے نه کله خوف دَ الله تعالیٰ نه وی او ايمان نه وی لکه خوف دَ ابليس په غزوه دَ بدر کښ او دا رنګ خوف کله دَ غير الله نه هم وی په طبعی طور سره او خشيت خاص دے په الله تعالیٰ پورے -

السَّيِّئَةَ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿۲۲﴾

بدئ لره دغه کسان دوی لره بنهٔ انجام دکور روستئ دے

جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا وَمَنْ

چه جنتونه دهمیشوالی دی داخلیږی په هغے ته او هغه څوک

صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ

چه ددوی ملګرتیا ئے کړیوی ددوی د پلارانو او ښځو نه

وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَدْخُلُوْنَ

او د اولاد نه او ملائک به داخلیږی

۲۲ په دے آیت کښ د اهل حق خلور صفات ئے ذکر کړی دی۔

صَبَرُوْا، صبر درے قسمه دے په مصیبتونو او مرضونو باندے او صبر په طاعاتو کولو او صبر د حرامو او ګناهونو نه۔

ابْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ، پدے سره خارج دے هغه صبر چه د دے د پاره وی چه خلق ورته صابر اُوائی یا د دے د پاره چه خلق ورباندے عیب اونه وائی یا د دے د پاره چه دشمنان په ده باندے خوشحاله نشی دا هم صبر دے لیکن ثواب په هغے باندے نه حاصلیږی۔

وَيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ، د دے یو معنیٰ دا ده چه دفع کوی په بیان د توحید او د سنت سره شرک او بدعت لره۔ دویمه معنیٰ دا ده چه دفع کوی دوی په صبر او په ښهٔ اخلاقو سره بد اخلاقی د جاهلانو۔
دریمه معنیٰ دا ده چه دفع کوی په توبه کولو سره ګناهونو لره۔

عَلَيْهِمْ مِّنْ كُلِّ بَابٍ ﴿۲۳﴾ سَلٰمٌ

دوی ته دَ هرے دروازے نه - (وائی به) سلام

عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ

دوی په تاسو بانديے په سبب دَ صبر کولو ستاسو نو ښه

عُقْبَى الدَّارِ ﴿۲۴﴾ وَالَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ

انجام دَ کور دَ آخرت دے۔ او هغه کسان چه ماتوی

عَهْدَ اللّٰهِ مِنْ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ وَيَقْطَعُوْنَ

لوظ دَ الله تعالیٰ روستو دَ پوخوالی دَ هغے نه او پریکوی

مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ

هغه شے چه حکم کړیدے الله تعالیٰ دَ هغے دَ پیوست ساتلو او وراڼے کوی

فِى الْاَرْضِ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ

په ملک کښی دغه خلق دوی لره لعنت دے

۲۳، ۲۴:۔ په دے آیتونو کښی بشارت دے دغه صفاتو والو لره۔
وَمَنْ صَلَحَ، مراد دَ دينه موافقت او ملګرتيا کول دی دَ دے کسانو دَ دعوت کوونکی سره په توحید او سنت کښی لیکن په عمل او په محنت کښی دَ هغه نه کم دی۔
بِمَا صَبَرْتُمْ، صفت دَ صبر شامل دے تیر شوؤ ټولو صفاتو ته دَ دے وجے نه اکتفی ئے اوکړه په ذکر دَ دے۔
وَمَنْ صَلَحَ، په دے کښی اشاره ده چه صرف نسب او زوجیت فائده نه ورکوی تر څو پورے چه صلاحیت نه وی او دَ صلاحیت نه مراد صرف موافقت دے په عقیده کښی او حق پرستئ کښی او برابری په ټولو اعمالو کښی مراد نه ده۔

وَلَهُمْ سُوْٓءُ الدَّارِ ﴿٢٥﴾ اَللّٰهُ يَبْسُطُ

او دوی لره ناکاره کور دے۔ الله تعالیٰ فراخه کوی

الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ

روزی د چاچه او غواړی او تنګوی،

وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ

او خوشحالی کوی دوی په ژوند دنیوی باندے، او نه دے ژوند

الدُّنْيَا فِى الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ﴿٢٦﴾ ع

دنیوی د آخرت په مقابله کښ مګر معمولی مزه ده۔

۲۵:۔ په دے آیت کښ ذکر د دریو قباحتونو د منکرینو دے په مقابله د تیر شوؤ صفاتو کښ او د دوی د پاره تخویف اخروی هم دے او داسے په سورة بقره ۲۷ کښ تیر شوی دی۔

اللَّعْنَةُ، په مقابل د جنت او د سلام کښ دے۔

سُوْٓءُ الدَّارِ، دا په مقابله د عقبی الدار کښ دے۔

۲۶:۔ خلاصه: د دے آیت نه ګلورم باب دے ۳۲ آیت پورے په دیکښ دولسم دلیل عقلی دے سره د زجر نه په ۲۶ آیت کښ، بیا زجر دے منکرینو د رسول ته په ۲۷ آیت کښ، بشارت دے په ۲۸، ۲۹ آیتونو کښ، اثبات د رسالت دے سره د توحید نه په ۳۰ آیت کښ بیا تسلی ده رسول ته په ۳۲ آیت کښ۔

تفسیر:۔ په دے آیت کښ دولسم دلیل عقلی دے او بیا زجر دے په محبت د دُنیا سره چه هغه سبب د تیر شوؤ قباحتونو دے او په دے آیت کښ اشاره جواب د سوال ته ده هغه دا چه د دے منکرینو فراخی د رزق او مالداری دلالت کوی چه پدوی باندے خو لعنت نشته؟

حاصل د جواب دا دے چه فراخی د رزق نه اعتبار نشته،

وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، دے نه فرح البطر (تکبر) وتیلے شی۔

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ
او وائي کافران ولې نه
اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ
نازلیږي په ده باندې معجزه دَ رب دَ طرف نه ، أوايه ته
اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْٓ
یقیناً الله تعالیٰ بې لارې کوي هغه چا لره چه اوغواړي او په سمه لار روانوي
اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ ﴿٢٧﴾ اَلَّذِيْنَ
خپل طرف ته هغه څوک چه هغه ته ورګرځي ۔ دا هغه کسان دي
اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ
چه ایمان ئې راوړې دے او تسلی اخلي زړونه دَ هغوي په ذکر
اللّٰهِ ؕ اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ
دَ الله تعالیٰ سره ، خبر شئ صرف په ذکر دَ الله تعالیٰ تسلی اخلي

دا حرام دے۔
اَلْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ، په دے کښ تزهيد فی الدنیا دے۔
ﷺ ۲۷ :۔ په دے آیت کښ زجر دے په طلب دَ معجزے سره دَ رسول نه او جواب دَ هغې دے او داعطف دے په فرحوا باندے اشاره ده چه دا قول دَ دوی په تکبر باندے بنا دے حاصل دَ جواب دا دے چه اضلال او هدایت په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دي نو معجزات هم دَ هغه په اختیار کښ دي۔
مَنْ اَنَابَ ، دَ انابت معنیٰ دا ده چه حق کوم طرفته وي نو بنده په زړه سره هغې طرفته ګرځي بغیر دَ ضد او عناد نه او په دے آیت کښ دَ آيَةٌ نه مراد هغه معجزه ده چه دَ فراخئ دَ رزق سره تعلق لري لکه په سورة بنی اسرائیل ۹۰ ، ۹۳ کښ دي۔

الْقُلُوْبُ ﴿۲۸﴾ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

زړونه - هغه خلق چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه کوی

الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ﴿۲۹﴾

دَ نبی په تابعداری خوشحالی ده هغوی لره او ښائسته انجام دے۔

۲۸۔ په دے آیت کښ بشارت دے او اطمینان بذکر الله نه مراد یقین کول دی په خبره کله چه قرآن او سنت په دلیل کښ ذکر شی۔ دویمه معنیٰ دا ده چه په توحید دَ الله تعالیٰ سره او په قرآن لوستلو سره دَ زړه سکون حاصلیږی۔

اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ، هر کله چه په مخکښ جمله کښ تخصیص نه وُو نو دا جمله ئے دَ تخصیص پیدا کولو دَپاره ذکر کړه او دَ دے وجے نه بذکر الله مقدم کړو حاصل دَ آیت دا دے چه اطمینان خاص دے په مؤمنانو پورے او خاص دے په ذکر دَ الله تعالیٰ پورے او مراد دَ دینه قرآن او سنت دے او دا رنګ ذکر قلبی او لسانی دا ټول دی تو پدے کښ داخل دی دا خبره چه قسم اوشی په الله تعالیٰ باندے نو دَ مؤمن زړه وربانده تسلی اوکړی دا رنګ په دلیل کښ چه قرآن او حدیث ذکر شی نو یقین پیدا شی۔

۲۹۔ په دے آیت کښ بشارت دے۔

طُوْبٰى ، په معنیٰ دَ حالت طیبه سره دے نو شامل دے جنت ته او ونو دَ جنت ته۔ او ټولو نعمتونو دَ جنت ته۔

كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ

دغه شان لیږلے یئے مونږ ته په داسے امت کښې یقیناً چه تیر شوی

مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَا۠ عَلَيْهِمُ

مخکښې د ده نه امتونه د پاره د دے چه بیان کړے په دوی باندے

الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ

هغه کتاب چه وحی کړے ده مونږ تا ته او دوی انکار کوی

بِالرَّحْمٰنِ ؕ قُلْ هُوَ رَبِّيْ لَآ اِلٰهَ

د رحمٰن د بندګئ نه، او وایه هغه رب زما دے نشته حقدار د بندګئ

اِلَّا هُوَ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ

سوا د هغه نه خاص په هغه باندے توکل کړے دے ما او خاص هغه ته

مَتَابِ ﴿۳۰﴾ وَلَوْ اَنَّ قُرْاٰنًا سُيِّرَتْ

ورګرځیدل دی۔ او که چرے وے قرآن چه بوتللے شوے

ف۳۱۔ په دے آیت کښې اثبات د رسالت د رسول دے سره د حکمت د ارسال نه او ذکر د دعوے د توحید دے چه هغه خلاصه د وحی ده او دیته دلیل وحی هم دائی۔

وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ، مراد د دیته انکار دے د توحید د الله تعالی نه په رحمانیت کښې یعنی رحمان صفت د الله تعالی منی لیکن تخصیص ئے په هغه پورے نه منی د دے وجے نه دوی به مسیلمة الکذاب ته رحمان الیمامه وئیلو۔ یا مراد د یکفرون نه شرک دے۔

قُلْ هُوَ رَبِّيْ، دا بیان دے د الذی اوحینا یعنی خلاصه د وحی توحید د ربوبیت او د الوهیت دے او دا غلور جملے د توحید دی۔

فائده ۱۔ كَمَآ اَرْسَلْنٰكَ، دلته مشبه ذکر نه ده نو معلومه شوه چه کاف په معنٰی د لام اجلیه دے یعنی هر کله چه ذریعه د

بِهِ الْجِبَالُ اَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ

په هغه سره غروته يا قطعه (پرې) کيږي شي په هغه باندې زمکه

اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى ؕ بَلْ لِّلّٰهِ الْاَمْرُ

يا خبرې کيږي شوي په سبب د هغې د مړو سره، بلکه خاص الله تعالىٰ لره

جَمِيْعًا ؕ اَفَلَمْ يَايْـَٔسِ الَّذِيْنَ

ټول اختيار دې، آيا نو نه پوهيږي ايمان

اٰمَنُوْۤا اَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَى

والا چه که چيرې غوښتلې الله تعالىٰ خامخا په هدايت به يې روان کړو

النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ

ټول خلق، او هميشه وي کافران

كَفَرُوْا تُصِيْبُهُمْ بِمَا صَنَعُوْا قَارِعَةٌ

خلق چه ور رسي دوى ته په وجه د هغه کار و چه دوى کوي آفت

اَوْ تَحُلُّ قَرِيْبًا مِّنْ دَارِهِمْ

يا به راشي (آفت) نزدې د دوى ملک ته

حَتّٰى يَاْتِيَ وَعْدُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

تر هغه پورې چه راشي وعده د الله تعالىٰ، يقيناً الله تعالىٰ

اطمينان د زړونو د پاره ذکر الله (وحی) ده نو مونږ ته د وحی بيانولو د پاره رالیږلے.

قَدْ خَلَتْ، دلالت کوی چه دا امت اخرالامم دے لکه چه نبی د دوی هم خاتم الانبياء صلی الله علیه وسلم دے.

لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۳۱﴾ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ

خلاف نه کوی دَ وعدے خپلے نه . او یقینًا توقے کړے شوے دی

بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَمْلَيْتُ

په ډیرو رسولانو پورے ستا نه مخکښ نو مهلت مے ورکړو

ف۳۱ . په دے آیت کښ جواب دے دَ مطالبے دَ دوی آیاتو لره یعنی دوی مطالبه کوله چه دا قرآن به حق وی په هغه وخت کښ چه دَ دے په وجه دَ مکے غرونه لرے کړی یا زمکه سورئ کړی او چینے ترے راوباسی یا مړی راژوندی کړی چه هغوی مونږ سره خبرے اوکړی ، حاصل دَ جواب دا دے که دا کارونه اوکړے شی نو هم دوی ایمان نه راوړی .

وَلَوْ اَنَّ قُرْاٰنًا ، مراد دَ دینه لوستلے شوے کتاب دے په طریقه دَ عموم سره او جزا دَ لو حذف ده هغه دا ده لکان هذا القرآن نو معنیٰ دا شوه که په یو لوستلے شوی کتاب سره دا کارونه کیدلے شوے نو خامخا هغه کتاب به دا قرآن وے لیکن دا کارونه په کتاب سره نه کیږی بلکه دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دی .

او دویمه معنیٰ دا ده چه قراٰنًا نه مراد دا قرآن دے یعنی نکره پمعنیٰ دَ معرفے ده او جزاء حذف ده چه لما امنوا دے نو معنیٰ دا شوه که پدے قرآن سره دا کارونه اوکړے شی بیا هم دا خلق ایمان نه راوړی ځکه چه اختیار دَ ایمان دَ دوی دَ الله تعالیٰ سره دے .

اَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ ، خازن وئیلی دی چه مراد دا دے چه زمکه او چوے شی او نهرونه او چینے تریته راوځی لکه په سورة بنی اسرائیل ف۹ کښ دی . او بعضو مفسرینو وئیلی دی چه په سیرت به الجبال کښ معجزے دَ داؤد علیه السلام ته اشاره ده او په قطعت به الارض کښ مسافت قطع کول په لږ وخت کښ پشان دَ تخت دَ سلیمان علیه السلام ته اشاره ده .

| لِلَّذِيْنَ | كَفَرُوْا | ثُمَّ | اَخَذْتُهُمْ |
|---|---|---|---|
| کافرانو لره | | بیا ما | اونیول دوی لره |

ادکلم به الموتی کښ معجزے دعیسی علیه السلام ته اشاره ده -
اَفَلَمْ يَايْئَسِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيْعًا، دا جواب دسوال دمؤمنانو دے یعنی مؤمنان غواړی چه دا معجزات دے نبی صلی الله علیه وسلم ته ورکړے شی نو ټول خلق به مؤمنان شی نو جواب اوکړے شو چه آیا دا مؤمنان دومره هم نه پوهیږی چه هدایت خو په مشیت د الله تعالی سره دے -
اَفَلَمْ يَايْئَسِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا، لیث او ابو عبید او قطرب وئیلی دی چه دا په معنی دعلم سره دے اوکسائی د دینه انکار کړے دے او وئیلی دی چه دا په معنی د ناامیدئ سره دے یعنی آیا ته دی ناامیده شوی مؤمنان دایمان دکافرانو ته وَيَعْلَمُوْا عِلْمًا يَقِيْنًا اَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ آه دا جمله پټه ده لیکن دکسائی ته موندل د دے معنی دلیل دعدم وجود نه دے -
وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا تُصِيْبُهُمْ بِمَا صَنَعُوْا قَارِعَةٌ، په دے کښ تسلی ده مؤمنانو ته او تخویف دعذاب دے کافرانو ته -
اَوْ تَحُلُّ قَرِيْبًا مِّنْ دَارِهِمْ، دا صیغه د مؤنث ده او ضمیر راجع دے قارعه ته نو معنی دا شوه چه قارعه که په دوی باندے راته شی نو نازل به شی نزدے د دوی ملک ته - په دیکښ اشاره ده چه عذاب د دنیا کله په منکر قوم باندے راځی اوکله د دوی نزدے په نورو مستحقینو دا عذاب نازل شی د پاره د عبرت د دوی او دویمه معنی دا ده چه تحل صیغه د مخاطب ده خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته معنی دا ده چه نازل به شی په طریقه د غلبے د دوی ملک ته نزدے لکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکے سره نزدے په نورو کلو باندے غلبه حاصل کړه -
حَتّٰى يَاْتِيَ وَعْدُ اللّٰهِ، مراد د دینه فتح د مکے ده یا ورځ د قیامت ده -

فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴿۳۲﴾ أَفَمَنْ هُوَ

نو څه رنګ وو عذاب زما دوی لره . آیا نو هغه ذات

قَآئِمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ۚ

چه تدبیر کوی دَ هر نفس سره دَ عملونو دَ هغه نه

وَجَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ ۗ قُلْ سَمُّوهُمْ ۗ

او مقرر کړیدی دوی الله تعالی لره برخے والا ، او وایه دَ دوی کمال اوخایئ ،

أَمْ تُنَبِّئُونَهُ بِمَا لَا يَعْلَمُ

آیا خبر ورکوئ تاسو الله تعالی لره دَ هغه څه رپه شرکت دَ هغه) چه نه ئے پیژنی

فِي الْأَرْضِ أَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ ۗ

په زمکه کښ یا په سرسری وینا سره ،

بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ

بلکه خاشته کړے شوی دی کافرانو لره پدعملونه دَ هغوی

وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ ۗ وَمَن

او بند کړے شوی دی دَ سمے لارے نه ، او هغه څوک

۳۲:- پدیکښ اشاره ده چه طلب دَ معجزاتو دَ دے منکرینو په حقیقت کښ استهزا ده او پدیکښ تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته لکه چه څنګه مخکنو قومونو ته ئے مهلت ورکړیوؤ او بیائے په عذاب سره اونیول نو دا سے به ستا قوم سره هم اوکړی -

يُضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ﴿۳۳﴾

چه الله تعالیٰ ئې بې لارې کړي نو نشته هغه لره په لار روانونکې هیڅوک۔

۳۳:۔ خلاصه:۔ دَ دې آیت نه پنځم باب دې تر ۳۷ پورې پدې باب کښې دیارلسم دلیل عقلي دې، او زجر دې مشرکینو ته په ۳۳ کښې بیا تخویف دې په ۳۴ کښې، بیا بشارت دې په ۳۵ کښې بیا دلیل نقلي دې دَ اهل کتابو نه سره دَ دلیل وحی نه په ۳۶ کښې. بیا ترغیب دې قرآن ته په ۳۷ کښې۔

تفسیر:۔ پدې آیت کښې دلیل عقلي دې اولاً بیا زجر دې مشرکانو ته۔ قَآئِمٌ، مراد دَ دینه تدبیر کوونکې دَ کارونو دَ خلقو یا په معنیٰ دَ عالم دې او جواب دَ دې حذف دې یعني کمن هو لیس کذالك۔

سَمُّوْهُمْ، مراد دَ دینه بیانول دَ داسې صفاتو او کمالاتو دي چه په هغې سره حقدار دَ الوهیت کرځي۔

بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي الْاَرْضِ، معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ ته خپل شریک پدې زمکه کښې ندې معلوم او تاسو ورله خبر ورکوئ چه فلانکې ستا شریک دې او عدم علم دَ الله تعالیٰ کنایه ده دَ عدم وجود نه۔

فِي الْاَرْضِ، تخصیص ئې ځکه اوکړو چه دلته رد دې په هغه چاچه الله تعالیٰ لره په زمکه کښې شریک جوړوي او سورة یونس ۱۸ کښې دَ عامو مشرکانو رد دې نو ځکه هلته دَ آسمانونو او زمکو دواړو ذکر ئې کړېدې۔

اَمْ بِظَاهِرٍ مِّنَ الْقَوْلِ، بظاهر په معنیٰ دَ سرسري دې یعني چه په حقیقت پاندې بنا نه وي او دلیل ئې هم نه وي او هغه باطل وي۔

مَكْرُهُمْ، مراد دَ دینه اعمال مشرکانو دي۔

وَصُدُّوْا عَنِ السَّبِيْلِ، دا عطف دَ مسبب دې په سبب باندې۔

لَهُمْ عَذَابٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

دوی لره عذاب دے په ژوند دنیوی کښ

وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَشَقُّ وَمَا لَهُمْ

او خامخا عذاب دَ آخرت ډیر سخت دے او نشته دوی لره

مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ۝۳۴ مَثَلُ الْجَنَّةِ

دَ الله تعالیٰ نه هیڅوک بچ کوونکے۔ حال دَ هغه جنت

الَّتِيْ وُعِدَ الْمُتَّقُوْنَ تَجْرِيْ

چه وعده یې کړے شوې ده دَ متقیانو سره چه بهیږی

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ اُكُلُهَا دَآئِمٌ

لاندے دَ هغې نه ولے، میوے دَ هغې همیشه دی

وَّظِلُّهَا تِلْكَ عُقْبَى الَّذِيْنَ اتَّقَوْا

او سورے (هم همیشه دے) دا انجام دَ متقیانو دے

وَّعُقْبَى الْكٰفِرِيْنَ النَّارُ ۝۳۵ وَالَّذِيْنَ

او انجام دَ کافرانو اور دے۔ او هغه کسان

۳۴:۔ په دې کښ تخویف دنیوی او اخروی دواړه دی، تخویف دنیوی په قحطونو طوفانونو وغیره سره دے۔

اَشَقُّ، دا لفظ دَ اکبر او اغلظ نه په معنیٰ کښ زیات دے یعنی سره دَ لوے والی او غټ والی یې سختی هم ډیره ده۔

وَّاقٍ، صرف بچ کوونکے دے که ولایت ورسره وی او که نه وی او وال هغه دے چه سره دَ ولایت نه حفاظت هم کوی۔

۳۵:۔ په دے آیت کښ بشارت دے مؤمنانو ته او تقابل دے دَ کافرانو سره په عاقبت کښ۔

اُكُلُهَا دَآئِمٌ، دا دلیل دے چه جنت پاتدے فنا نه راځی۔

اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ

چه ورکړی دی موږ هغوی ته کتاب خوشحالیږی په هغه څه

اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمِنَ الْاَحْزَابِ

چه نازل کړی شوی دی تا ته او د دی ډلو نه

مَنْ يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ ؕ قُلْ اِنَّمَآ

داسی خلق دی چه انکار کوی د بعض حصی د قرآن نه، او ایه ته یقینًا ما ته

اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَآ اُشْرِكَ

امر کړی شوی دی دا چه بندګی خاص کړم د الله تعالی او شرک ورسره

بِهٖ ؕ اِلَيْهِ اَدْعُوْا وَاِلَيْهِ مَاٰبِ ﴿۳۶﴾

نه کوم، د هغه توحید ته خلق رابلم او خاص هغه ته ورګرځیدل زما دی۔

۳۶ :- پدی آیت کښ دلیل نقلی دی د مؤمنانو اهل کتابو نه او دا څکه چه اٰتَيْنٰهُمُ، په نیکانو کتابیانو کښ استعمالیږی۔
يَفْرَحُوْنَ، او مراد د فرح نه تسلی د زړه ده او اشاره ده چه فرح د نیکانو علماؤ په کتاب الله باندی پکار ده لکه چه سورت یونس ۵۸ آیت کښ ده۔ او د دی اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ، مصداق صحابه کرام او دا امت دی یا مخکښی کتابیان مؤمنان مراد دی داسی خازن ذکر کړیدی هر کله چه پدی آیت کښ تقابل د مؤمن او منکر مقصد دی او د تقابل د پاره عقیده د توحید سره د دعوت نه او عقیده د قیامت پکار ده نو دلته ئی هغه ذکر کړو چه اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ وَلَآ اُشْرِكَ بِهٖ، او په ۳۰ آیت کښ صرف اظهار د عقیدی په باره د رحمٰن کښ مراد وو نو هلته دعوت ندی ذکر کړی او رحمانیت سره توبه هم مناسب وه نو هلته متاب ذکر دی او دلته دعوت ذکر دی او د دعوت سره مآب یعنی رجوع الله ته مناسب ده۔ یا زجر دی منکرینو ته او بیا دلیل

وَكَذٰلِكَ اَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ؕ

او دغسے نازل کړے مونږ دا قرآن فیصله په واضحه ژبے سره،

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ

او که تا تابعداري اوکړه د خوښاتو د دوی روستو

مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ

د هغے نه چه راغلے دے تا ته قرآن نو نشته تا لره

مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ ﴿۳۷﴾

د الله تعالیٰ نه څوک ساتونکے او څوک بچ کوونکے۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ

او یقینًا لیږلی دی مونږ ډیر رسولان پخوا (مخکښ) ستا نه

وَجَعَلْنَا لَهُمْ اَزْوَاجًا وَّذُرِّيَّةً ؕ

او پیدا کړی وو مونږ هغوی لره بیبیانے او اولاد،

وحی دے۔

مَنْ يُّنْكِرُ بَعْضَهٗ، بعضه نه مراد مسئله د توحید ده ځکه چه دوی قرآن منی لیکن توحید پکښ نه منی لکه سورة اسراء ۴۶ کښ چه ذکر دی۔

۳۷ :۔ په دے آیت کښ بل ترغیب دے قرآن ته چه دا قرآن د حکم د پاره نازل شویدے او هغه حکم تیر شوی آیت کښ ذکر شو بیا زجر دے په تابعدارئ د بے دلیله خبرو د چا هغے ته اهواء ویلے شی، پس د راتلو د قرآن نه او مراد د علم نه قرآن دے۔

وَكَذٰلِكَ، عطف دے په معنیٰ د ماقبل باندے یعنی لکه څنګه چه مونږ امر کړیدے په توحید سره نو دارنګ نازل کړیدے مونږ دا قرآن د پاره د واضحو فیصلو۔

وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَنْ يَأْتِيَ بِآيَةٍ

او نشته طاقت دَ رسول چه راوړی معجزه

إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ﴿٣٨﴾

مګر په اذن دَ الله تعالیٰ سره، هر یے نیټی لره لیکل شته دے۔

يَمْحُو اللَّهُ مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ ۖ

ورانوی الله تعالیٰ څه چه اوغواړی او باقی پرېږدی رڅه چه اوغواړی

س ۳۸ :- دَ دے آیت نه تر آخر دَ سورت پورے شپږم باب دے پدے باب کښ جوابونه دی دَ هغه شبهاتو چه وارد یږی په رسالت باندے په س ۳۸، س ۳۹ آیتونو کښ بیا تسلی ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په س ۴۰ آیت کښ بیا تخویف دنیوی دے په س ۴۱، س ۴۲ کښ بیا زجر دے په انکار دَ رسالت سره او اثبات دَ هغے دے په شهادت سره په س ۴۳ آیت کښ۔

تفسیر :- پدے آیت کښ جوابونه دَ درے شبهاتو دَ منکرینو چه تابعداری کوی دَ خواهشاتو۔

اوله شبه دا ده چه دا رسول موږ ته متوځکه چه دے بشر دے او دَ ده ښځے او اولاد شته۔ نو جواب اوشو چه دا سے مخکنی رسولان هم وو۔ او پدے کښ ضمناً رد دے چه تاسو وایئ چه موږ دَ ابراهیم علیه السلام اولاد یو نو هغه خو هم رسول وو او هم یے ښځه او اولاد وو که هغه بشر نه وے نو تاسو تربنه څنګه پیدا شوئ۔

دویمه شبه دا ده چه دا رسول که رښتینے وی نو موږ له دے معجزات راوړی جواب اوشو چه وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَنْ يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ، معلومه شوه چه په معجزاتو کښ دَ پیغمبرانو هیڅ اختیار نه وی او دا رنګ په سورة ابراهیم س ۱۱ او سورة انعام س ۱۰۹ او سورة عنکبوت س ۵۰ کښ ذکر شوے دی۔

دریمه شبه هر کله چه دا رسول حق دے او موږ انکار کوو

وَعِنْدَهٗٓ اُمُّ الْكِتٰبِ ﴿۳۹﴾ وَاِنْ مَّا نُرِيَنَّكَ

او دَ هغه سره اصلي كتاب دے ۔ او كه اوخايو تا ته

بَعْضَ الَّذِيْ نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ

بعضے هغه عذاب چه دَ دوی سره وعده كوؤ يا وفات كړو تا

فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ﴿۴۰﴾

تو يقيناً په تا باندے رسول دي او په مونږ باندے حساب كول دي۔

نه په مونږ باندے عذاب ولے نه راځي جواب دا دے لِكُلِّ اَجَلٍ كِتَابٌ ۔

۳۹ ۔ دا دَ څلورمے شبهے جواب دے شبه دا ده چه هر كله زمونږ دَ پاره عذاب ليكلے شوے وی نو بيا ايمان راوړلو كښ څه فائده ده حاصل دَ جواب دا دے چه الله تعالیٰ بعضے اشياء محو كوی كه تاسو ايمان راوړئ نو الله تعالیٰ به ستاسو عذاب محو كړی ۔

يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَآءُ وَيُثْبِتُ ، يو معنیٰ دا ده چه دَ الله تعالیٰ سره يو كتاب المحو والاثبات شته دے او دغه كتاب دَ ملائكو سره دے دَ هغوی دَ علم په نسبت پكښ محو او اثبات كيږی او هغه دَ ام الكتاب لوح محفوظ نه سوا دے ۔ او دَ اول نه تقدير معلق هم وائي او دويم ته تقدير مبرم وائي ۔ دويمه معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ دَ احكامو منزلو نه بعضے احكام منسوخ كړی او بعضے په ځائے باندے ثابت پريږدی ۔ دريمه معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ بعضے گناهونه معاف كوی په توبے سره او ثابت كړی دَ هغے په بدل كښ حسنات لره ۔ او څلورمه معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ بعضے گناهونه معاف كوی بغير دَ توبے نه او بعضے ثابت پريږدی يعنی بغير دَ توبے نه نه معاف كوی ۔

۴۰ ۔ په دے پكښ روستو دَ دفع كولو دَ شبهاتو نه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته تسلی ده حاصل دا چه په دے منكرينو باندے به

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ
آیا دوی فکر نه کوی چه راځو موږ د دوی ملک ته

نَنْقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۚ وَاللَّهُ يَحْكُمُ
او ئې کموو د غاړو د هغې نه ، او الله تعالیٰ فیصله کوی

لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِ ۚ وَهُوَ سَرِيعُ
نشته روستو کوونکے د فیصلې د هغه ، او هغه زر

الْحِسَابِ ﴿۴۱﴾ وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ
حساب کوونکے دے ۔ او یقیناً مکرونه کړیوو هغه کسانو

عذاب راځي ستا په ژوند کښ نو ته به ئې اووینې یا روستو د وفات ستا نه نو ته ئې نشې لیدلے ۔ لیکن ستا په ذمه بلاغ دے عذاب به په خپل وخت راځي ته د هغې پروا مه کوه او دا سے په سورة یونس ۴۶ کښ او سورة زخرف ۴۱ ، ۴۲ کښ هم ذکرشوی دی۔ او د اِنْ ، جزاء په اصل کښ پټه ده یعنې د دوی د عذاب فکر مه کوه او په دے آیت کښ وفات ئې د ترینګک ، سره مقابله کښ ذکر کړیدے اشاره ده چه روستو د وفات نه نبي صلی الله علیه وسلم د دنیا حالات لیدلے نشي ۔

۴۱ ۔ پدے آیت کښ تخویف دنیوی دے چه تیر شوی آیت کښ د هغې ذکر اوشو او مراد د نقصان الاطراف نه غالب کول د مؤمنانو دی په بعضے علاقو باندے او داخلیدل د بعضے خلقو دی په ایمان کښ یا مراد دا دے چه د زمکے نه برکات او میوے وغیره کموو او عذابونه سیلابونه طوفانونه راولو په سبب د شرک او د ګناهونو د خلقو سره ۔ او د آیت په عموم کښ داخل دے چه علماء او صالحین خلق وفات کوو ۔ په اوله توجیه باندے اعتراض دے چه دا سورت مکیه دے او غلبه د اسلام خو په مدینه کښ وه ؟

مِنْ قَبْلِهِمْ فَلِلّٰهِ الْمَكْرُ جَمِيْعًا ط

چه دَ دوی نه مخکښ وو نو دَ الله تعالیٰ اختیار کښ دی دوی مکرونه ټول

يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ

پوهه دے په هغه کاروتو چه کوی ئے هر یو نفس

وَسَيَعْلَمُ الْكُفّٰرُ لِمَنْ عُقْبَى

او زر به پوهه شی کافران چه چا لره ښه انجام

الدَّارِ ﴿۴۲﴾ وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

دَ آخرت دے۔ او وائی هغه کسان چه کافران دی

لَسْتَ مُرْسَلًا ط قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ

چه نه رسول نه ئے، او وایه نه کافی دے الله تعالیٰ

شَهِيْدًا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ لا وَمَنْ

فیصله کوونکے په مینځ زما او ستاسو کښ او هغه څوک

جواب اگرچه مکیه دے لیکن دا آیت پکښ مدنیه دے۔ یا په طریقه دَ پیشنگوئی سره بشارت دے۔

سلا ۔ وَقَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۔ یعنی مخکنو قومونو دَ عذاب الٰهی نه دَ بچ کیدلو دَ پاره او دَ انبیاؤ په مخالفت کښ مختلف تدبیرونه جوړ کړی وو لیکن په هغے سره دوی مقصد حاصل نه کړو نو اشاره ده چه عذاب دَ الله تعالیٰ دَ چا په مکرونو او تدبیرونو سره نشی دفع کیدے۔

فَلِلّٰهِ الْمَكْرُ ۔ یعنی مکر که دَ خیر وی یا دَ شر وی نو په هغے کښ تاثیر اچول دَ الله تعالیٰ اختیار دے۔

ع ۶ / ۱۲

# عِندَهٗ عِلمُ الكِتٰبِ ﴿۴۳﴾ ع

چه دَ هغه سره پوهه دَ كتاب دَه۔

۴۳۔ په دے آیت کښ زجر دے په انکار دَ رسالت سره او اثبات دَ رسالت دَ رسول دے په شهادت دَ الله تعالىٰ سره او دارنګ په سورة عنکبوت ۵۲ کښ او سورة احقاف ۸ کښ هم دی۔ وَمَنْ عِندَهٗ عِلمُ الكِتٰبِ، مراد دَ دینه شهادت دَ کتابیانو مؤمنانو دے لکه پهٔ سے سورت ۲۶ کښ ذکر شول۔ یا مراد دَ دینه جبرائیل علیه السلام دے۔ یا مراد دَ دینه ټول مؤمنان دی او مراد دَ کتاب نه قرآن دے اوبل توجیه دا ده چه وَمَنْ عِندَهٗ عِلمُ الكِتٰبِ په طریقه دَ قسم سره دے یعنې قسم دے په هغه ذات یا نه دے چه هغه سره علم دَ ټولو کتابونو دے چه الله تعالىٰ دے۔

(تمت الرعد)

سورة ابراهیم مکیة | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | آیاتها ۵۲ رکوعاتها ۷

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړم په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

الٓرٰ قف کِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَیْكَ لِتُخْرِجَ

الله تعالیٰ د دے په مراد ښه پوهه دے ، دا کتاب چه نازل کړے مونږ تا ته د پاره د دے چه او باسے

النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَی النُّوْرِ ۙ

خلقو لره د تیارو نه رڼا ته

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورة ابراهیم

ربط :- د سورة ابراهیم د سورة رعد سره دا دے. چه سورة رعد کښې دلیلونه عقلی وو په طریقه د تنبیه په مسئله د توحید باندے نو پدے سورت کښې تذکیر ورکول دی په دنیوی او اخروی واقعاتو سره دا رنګ په هغه سورت کښې صداقت د قرآن او رسول ذکر شو او پدے سورت کښې مقصد د دواړو ذکر کوی.

دعوٰی د سورت :- ویستل د خلقو دی د ظلماتو نه نور ته په کتاب الله سره او په تذکیر د ایام الله سره چه هغه نه واقعات دنیویه او اخرویه وائی او د ظلماتو نه مراد څلور اقسام د شرک دی شرک په علم کښې او شرک په تصرف کښې او شرک په عبادت کښې او شرک په دعا کښې او پدے سورت کښې رد دے پدغه اقسامو د شرک باندے په عقلی او نقلی دلیلونو سره او په مثالونو سره - او د نور نه مراد معرفت د الله تعالیٰ دے په توحید سره په طریقه د ابراهیم علیه السلام او په څوارلس اسماءِ حسنٰی سره -

خلاصه د سورت :- دا سورت تقسیم دے پنځه بابونو ته اول باب تر ۸ آیت پورے دے پدیکښې اول تشجیع ده په تبلیغ باندے او هغه ویستل د خلقو دی د ظلماتو نه رڼا ته - بیا

بِاِذۡنِ رَبِّهِمۡ اِلٰی صِرَاطِ الۡعَزِیۡزِ
په حکم د رب د دوی لارې د هغه ذات ته چه زورآور دے
الۡحَمِیۡدِ ① اللّٰهِ الَّذِیۡ لَهٗ
ستائيلے شوے دے - الله تعالی هغه ذات دے چه د هغه اختيار کښ دی

دليل عقلی دے مختصر سره د تخويف نه په ٢ آيت کښ بيا زجر دے په صفاتو قبيحو سره په ٣ آيت کښ بيا تاکيد د دعوے د سورت چه رسولان ليږلی شوی دی په ٤ دے مقصد سره په ٤ آيت کښ بيا دليل نقلی دے د موسٰی عليه السلام نه د پاره د تاکيد د دعوے د سورت ٥ نه تر ٨ پورے۔
تفسير :- په دے آيت کښ دعوی د سورت ده چه هغه تشجيع ده په تبليغ باندے او په دے کښ ذکر دے د حکمت د انزال د قرآن او مراد د ظلمات نه کفر او شرک او بدعت جهل او شک دے او مراد د نور نه ايمان او توحيد او سنت او علم او يقين دے۔
فائده :- لفظ د ظلمات جمع ده او لفظ نور مفرد دے په دے کښ اشاره ده چه لارے د شرک او بدعت ډيرے دی او لار د خير يوه ده۔
بِاِذۡنِ رَبِّهِمۡ، اشاره ده چه نبی صلی الله عليه وسلم هم په اخراج من الظلمات کښ حکم د الله تعالی او د هغه توفيق ته محتاج دے۔
اِلٰی صِرَاطِ، دا بدل دے د الی النور نه اشاره ده چه په هغے باندے په تللو سره نور حاصليږی۔
او لفظ د الۡعَزِیۡزِ، الۡحَمِیۡدِ، کښ اشاره ده چه دا صراط سبب د عزت او حمد دے د الله تعالی د طرف نه۔

مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ط

هغه څه چه په آسمانونو کښ دي او هغه څه چه په زمکه کښ دي،

وَوَيْلٌ لِّلْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ

او تباهي ده کافرانو لره دَ وجې دَ عذاب

شَدِيْدِنِ ﴿۲﴾ الَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ

سخت نه ـ دا هغه خلق دي چه خوښوي

الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ

ژوند دنیوي لره په آخرت باندے

وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا

او منع کوي (خلقو لره) دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه او لټوي په هغے کښ

عِوَجًا ط اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ ﴿۳﴾

کږ لیچ ، دغه خلق په ګمراهئ لرے کښ دي۔

ﺳ۲ :۔ په دے آیت کښ مختصر دلیل عقلي دے او تخویف دے۔
لِلْكٰفِرِيْنَ ، کښ اشاره ده اصحاب الظلمات ته۔
لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ، یعنی ملکیت او بادشاهي ټوله دَ الله تعالیٰ ده او دا متعلق دے باذن ربهم سره یعنی دَ هغه اذن نه ځکه ضرورت دے چه ټول څه اختیار دَ هغه دے۔
ﺳ۳ :۔ په دے آیت کښ ذکر دَ صفتونو قبیحوؤ دَ منکرینو دے دَ پاره دَ زجر او دا صفتونه اسباب دَ ظلماتو دي۔
يَسْتَحِبُّوْنَ ، کښ مبالغه ده په نسبت دَ يحبون یعنی دا لفظ دلالت کوي په ښکاره کولو دَ محبت او دلالت کوي په ترجیح ورکولو دنیا ته په آخرت باندے او دا معنیٰ په یحبون کښ لازم نه دي۔
عِوَجًا ، مراد دَ دینه شبهات او شکونه دي او تابع کول دَ دین دي دَ خپل غرض او خواهش سره۔ ضَلٰلٍۢ بَعِيْدٍ ، اشاره ده ظلماتو ته۔

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ

او نه دے لیږلے مونږ هیڅ رسول مګر په ژبه

قَوْمِهٖ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ فَيُضِلُّ اللّٰهُ

د قوم د هغه د پاره د دے چه بیان کړی دوی ته (احکام د الله تعالیٰ) نو بے لارے کوی الله تعالیٰ

مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

هغه څوک چه او غواړی او په سمه لار بوځی هغه څوک چه او غواړی،

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝۴ وَلَقَدْ

او هغه الله تعالیٰ زور آور او حکمتونو والا دے. او یقینًا

اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَآ اَنْ اَخْرِجْ

مونږ لیږلے وو موسیٰ علیه السلام په آیتونو خپلو سره چه او باسه

قَوْمَكَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۙ

قوم خپل د تیارو نه رڼړا ته

سک:- په دے آیت کښ تاکید د دعوے د سورت دے یعنی لیږل د رسولانو په ژبه د خپل قوم د پاره د تبلیغ د دے د پاره چه خلق د ظلماتو نه رڼړا کښ داخل شی۔

فائده:- په دے آیت کښ د قوم ذکر دے د امت نه دے او زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم هم را لیږلے شوے وو په لغت د خپل قوم سره او قوم د هغه عرب وو اګرچه امت ئے ټوله دنیا ده انس او جن۔

فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ، په دیکښ اشاره ده چه د انبیاء علیهم السلام کار دعوت کول دی او اضلال او هدایت د الله تعالیٰ په اختیار کښ دے۔

اَلْعَزِيْزُ، د يهدی سره او اَلْحَكِيْمُ، د يضل سره ښکاره تعلق لری۔

وَذَكِّرْهُمْ بِاَيّٰمِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ

او وریادکړه دوی ته عبرتناک واقعات دَ الله تعالیٰ، یقینًا په دیکښې

لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ⑤

دلیلونه دی هر ډیر صبرناک او ډیر شکر ګذار لره۔

۵ :- دا دلیل نقلی دے دَ موسیٰ علیه السلام نه دَ پاره دَ تاکید
دَ دعوے دَ سورت او دَ اخراج دوه طریقے ذکر کړیدی
یو آیت الهیه (تورات) او دویم تذکیر بایام الله۔
وَذَكِّرْهُمْ بِاَيّٰمِ اللّٰهِ ، ایام الله نه مراد واقعات دی دَ الله
تعالیٰ دَ طرف نه په امتونو تیرشوی کښې او داخل دے په
دیکښې ذکر دَ نعمتونو او عذابونو دَ الله تعالیٰ او دا آیت دلیل
دے په دے خبره چه وعظ کول جائز دی په داسے طریقے سره
چه زړونه نرموی او یقین پیدا کوی او خالی وی دَ هر بدعت
نه او پاک وی دَ ګمراهئ او دَ شکونو پیدا کولو نه داسے په
تفسیر قرطبی کښې هم ذکر دی۔
فائده :- میلاد النبی کوونکے او عرس کوونکے وَذَكِّرْهُمْ
بِاَيّٰمِ اللّٰهِ په دلیل کښې پیش کوی ؟
جواب دا دے چه دا دلیل باطل دے ځکه چه پیغمبر او
صحابو او سلف صالحینو دَ دے آیت نه په دغه بدعاتو باندے
دلیل نه دے پیش کړے او نه ئے دغه بدعات کړی دی او
قاعده دَ تفسیر دا ده چه کوم تفسیر دَ نبی او دَ صحابو او دَ سلفو
نه نقل نه وی نو هغه تحریف وی۔ او بله خبره دا ده چه صرف
دَ ولادت یا دَ وفات ورځ منانځل هیڅ فائده نه لری بلکه دَ
هغه هدایت او سیرت یادول هر وخت او په هغے باندے عمل
کول سبب دَ نجات دے۔
صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ، صیغے دَ مبالغے دَ دے دَ پاره دی چه مراد دَ
دینه مؤمن دے ځکه چه کله کله صبر او شکر خو کافران هم
کوی۔

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهِ اذْكُرُوْا
او کله چه اُوئیل موسیٰ علیه السلام خپل قوم ته یاد کړئ
نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ اَنْجٰكُمْ مِّنْ
احسان دَ الله تعالیٰ په تاسو باندے کله چه بچ ئے کړی تاسو دَ
اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ
فرعونیانو نه رسول ئے تاسو ته ناکاره
الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ
عذابونه او حلالول ئے ځامن ستاسو
وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ۭ وَفِيْ ذٰلِكُمْ
او بے شرمه کولے ئے ساتلے زنانه ستاسو ، او په دے کښ
بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ⑥
امتحان وُ ستاسو دَ رب دَ طرف نه لوئے -
وَاِذْ تَاَذَّنَ رَبُّكُمْ لَئِنْ شَكَرْتُمْ
او کله چه عام خبر درکړو رب ستاسو که تاسو شکر اوکړو
لَاَزِيْدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ اِنَّ
نو زیات به درکړم تاسو ته او که تاسو ناشکری اوکړه یقیناً

ع ۱۴ | ۱۴

سـ ۶ :- پدے آیت کښ تذکیر دَ عذابونو او دَ نعمت دَ نجات دے بنی اسرائیلو باندے پدے سورت کښ تفصیل دَحادثاتو او دَ نعمتونو مقصود دے دَدے وجے نه وَيُذَبِّحُوْنَ ، ئے عطف کړو په يَسُوْمُوْنَكُمْ . باندے چه په کثرت باندے دلالت اوکړی -

عَذَابِیْ لَشَدِیْدٌ ۞ وَقَالَ مُوْسٰٓی

عذاب زما ډیر سخت دے۔ او اُوئیل موسیٰ علیه السلام

اِنْ تَكْفُرُوْٓا اَنْتُمْ وَمَنْ فِی الْاَرْضِ

که ناشکری اوکړه تاسو او هغه چا چه په زمکه کښ دی

جَمِیْعًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ لَغَنِیٌّ حَمِیْدٌ ۞

ټولو یقیناً الله تعالیٰ خامخا بے حاجته دے ستائیلے شوے دے۔

اَلَمْ یَاْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

آیا نه دے راغلے تاسو ته خبر د هغه کسانو چه پخوا وو ستاسو نه

قَوْمِ نُوْحٍ وَّعَادٍ وَّثَمُوْدَ ۛ۬

قوم د نوح علیه السلام او عادیان او ثمودیان

وَالَّذِیْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ ۛ۬ لَا یَعْلَمُهُمْ

او هغه خلق چه روستو وو د دوی نه ، نه دی خبر په هغوی

ـــــ :- شکر کول شامل دے توحید ته او اطاعت د رسول ته او تبلیغ د دین ته او معنیٰ د شکر تفسیر قرطبی ذکر کړیده چه هغه اقرار د نعمت دے د پاره د منعم او خرچ کول د نعمت دے صرف په طاعت د الله تعالیٰ کښ او زیادت نه مراد زیاتول د نعمتونو او د ثوابونو دی او دنیوی اخروی ترقیٔ ورکول دی۔

فائده :- غوره قول دا دے چه دا آیت هم داخل دے په تبلیغ د موسیٰ علیه السلام کښ او دا عطف دے په نعمت د الله تعالیٰ باندے په آیت مخکښ کښ۔

ـــــ :- په دے آیت کښ تخویف ورکول دی او تاکید دے د تیر شوی آیت۔

اِنْ تَكْفُرُوْٓا ، د دے اصل جزا پټه ده یعنی الله تعالیٰ ته ستاسو ناشکری هیڅ نقصان نشی ورکولے۔

إِلَّا اللَّهُ ۛ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ

سوا د الله تعالی نه، هیڅوک نه پوهیږي راوړي وو هغوی ته رسولانو د هغوي ښکاره دلیلونه

فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ

نو واړول دوي لاسونه خپل په خلو د هغوی کښې

وَقَالُوا إِنَّا كَفَرْنَا بِمَا أُرْسِلْتُمْ

او دوی اوئیل یقینًا موږ انکار کوو د هغې نه چه تاسو رالیږلے شوی یئ

بِهِ وَإِنَّا لَفِي شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُونَنَا

په هغې سره او یقینًا موږ په شک کښې یو د هغې (مسئلو) نه چه تاسو بلئ موږ

إِلَيْهِ مُرِيبٍ ۞ قَالَتْ رُسُلُهُمْ

هغې ته پوخ شک۔ اوئیل رسولانو د دوی

فَإِنَّ اللَّهَ، علت دے د دغه پټے جزاء د پاره او دا سے په سورت زمر ۶ آیت کښې هم دی۔

۹۔ خلاصه :۔ د دے آیت نه دویم باب شروع کیږی تر آیت ۱۸ پورے د دے په اول کښې لفظ د آلمْ دے د پاره د تذکیر او پدیکښې واقعات د انبیاؤ مخکنو دی د خپلو قومونو سره په طریقه د مقابلے د نور او د ظلماتو والو یعنی رسولانو په تبلیغ سره ویستل قوم لره د ظلماتو نه نور ته او قوم د هغوی تکذیب او مخالفت کوؤ او رسولان ئے او ښکل د خپلو کلو نه او ذکر کړیے بیان د رسولانو او توکل د هغوی او صبر د هغوی بیا هلاکت د منکرینو دا مضمون دے د آیت ۹ نه تر ۱۷ پورے بیا تخویف اخروی دے په درے آیاتو کښې او بیا مثال ذکر کوی د پاره د بربادئ د عمل د مشرک په آیت ۱۸ کښې۔

تفسیر :۔ دے آیت کښې ذکر دے د تیر شوؤ قومونو چه هغوی مقابله کړے وه د رسولانو سره په درے طریقو سره۔

اول فَرَدُّوا أَيْدِيَهُمْ فِي أَفْوَاهِهِمْ، پدیکښې درے تفسیره دی۔

أَفِي اللّٰهِ شَكٌّ فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ

آیا دَ الله تعالیٰ په توحید کښې شک دے چه اول پیدا کوونکے دَ آسمانونو

وَالْأَرْضِ ۖ يَدْعُوكُمْ لِيَغْفِرَ لَكُم

او دَ زمکے دے، بلی تاسو (دا سے مسئلے ته) چه او به بخنی تاسو ته

مِّن ذُنُوبِكُمْ وَيُؤَخِّرَكُمْ إِلَىٰ

(په سبب دَ هغې) گناهونو ستاسو او روستو به اوسوی تاسو (په مزو سره)

أَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ قَالُوا إِنْ أَنتُمْ

نیټے مقرر ے ته، دوی اوئیل نه یئ تاسو

اول دا چه کیفو دل منکرینو لاسونه خپل په خپلو خلو باندے دَ پاره دَ دے چه چک اولگوی په هغه باندے دَ وجے دَ غصے نه - او دویم کیخودل دوی لاسونه خپل دَ پیغمبرانو په خلو باندے دَ پاره دَ دے چه هغوی چپ شی. امام بخاری وائی دا په طریقه دَ تمثیل دے. مثل کفوا عما امر به او کرځول دوی لاسونه دَ هغوی په خلو کښې. او دریم دا چه کنایه ده دَ منع کولو دَ پیغمبرانو دَ دعوت کولو نه.

دویمه طریقه دَ مقابلے داده وَقَالُوا إِنَّا كَفَرْنَا بِمَا أُرْسِلْتُم بِهِ، او دریمه طریقه دا ده چه وَإِنَّا لَفِي شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُونَنَا إِلَيْهِ مُرِيبٍ، مراد دا دے چه مونږ گمان کوو چه تاسو بادشاهی او دنیا غواړئ په دے دعوت سره.

لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا اللّٰهُ، دا ښکاره دلیل دے په نفی دَ علم غیب او علم کلی دَ رسولانو نه او دَ ټولو بندگانو نه او ابن کثیر نقل کړیدی چه دے آیت نه معلومه شوه چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم نسب نامه تر آدم پورے ذکر کول دروغ دی دَ هغه نسب تر معد بن عدنان پورے په صحیح دلیل سره ثابت دے او دَ دینه بره ثبوت نشته.

إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۖ تُرِيدُونَ أَن تَصُدُّونَا

مګر بشر یئ زمونږ پشان ، غواړئ تاسو چه واړوئ مونږ ده

عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُنَا فَأْتُونَا

دَهغه طریقې نه چه بندګي پرے کوله مشرانو زمونږ نو راوړئ مونږ ته

بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ⑩ قَالَتْ لَهُمْ

معجزه ښکاره . اوئیل دوی ته

ف: پدیکښ اول جواب ورکول دی دَ رسولانو قومونو ته۔
أَفِي اللَّهِ شَكٌّ ، مراد دَ دیته شک کول په توحید کښ دی ځکه چه دَ وجود دَ الله تعالیٰ نه دوی انکار نه دے کړے او دا استفهام په طریقه دَ انکار او دَ تعجب سره دے او بیا په یدعوکم لیغفر آه ذکر کولو کښ دوه فائدې دَ دعوت دَ توحید ته اشاره ده یو مغفرت او دویم مهلت او بیا ذکر دَ مخالفت دَ قومونو دے دَ رسولانو نه په دریے طریقو سره۔
اوله طریقه دا ده چه تاسو زمونږ په شان بشریئ او بشر نبی نشي کیدے. او دویمه طریقه دا ده چه تاسو مونږ لره دَ مشرانو دَ لارے نه منع کوئ چه هغه شرکی تقلید دے او دریمه طریقه دا ده چه دوی معجزے طلب کولے دَ انبیاؤ نه او ګمان به ئے کوؤ چه معجزے دَ انبیاؤ په اختیار کښ دی۔
قَالُوا إِنْ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ، دا دلیل دے چه هره زمانه کښ دَ منکریتو دا عقیده وه چه دَ بشریت او دَ رسالت په مینځ کښ منافات دے یعنې بشر رسول نشي کیدلے نو رسول بشر نشي کیدے۔
تُرِيدُونَ الخ ، نو دوی اوئیل چه مونږ خو تاسو سره بشریت کښ ګډاره کوؤ لیکن تاسو مونږ دَ زور مسلک نه اړوئ. نو په فَأْتُونَا الخ سره ئے طلب دَ معجزے او کړو۔

رُسُلُهُمْ اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ

رسولانو دَ دوی موږ نه يو مګر بشر يو

مِّثْلُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَمُنُّ عَلٰى

ستاسو پشان ليکن الله تعالىٰ احسان کوي په

مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ؕ وَمَا كَانَ

هغه چاچه اوغواړي دَ بندګانو خپلو نه او نشته

لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ

وس موږ لره چه راوړو تاسو ته معجزه سِوا دَ اذن

اللّٰهِ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

دَ الله تعالىٰ نه ، او خاص په الله تعالىٰ دِ توکل کوي

الْمُؤْمِنُوْنَ ⑪ وَمَا لَنَآ اَلَّا

مؤمنان . او څه عذر به وي زموږ چه

سلا ، په دې کښ ذکر کړے دی جوابونه دَ انبیاؤ خپلو قومونو ته دا دَ دعوی دَ اول او دَ دريم اعتراض جواب دے دَ اول جواب خلاصه دا ده چه دَ بشريت او دَ رسالت (چه احسان دَ الله تعالىٰ دے) منافات نشته او دَ دريم جواب مقصد دا دے چه په معجزاتو کښ دَ پيغمبرانو اختيار او قدرت نه وی . او دويم اعتراض دَ جواب حاجت نه لري ځکه چه انبياؤ په حقيقت کښ دَ ګمراهانو مشرانو دَ لارے نه منع کوله وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ . او په آخرے جمله کښ تعليم دے مؤمنانو ته دَ توکل کولو په وخت دَ مقابلے دشمنانو کښ او دا مسئله په سورت آل عمران سلا آيت کښ هم دی .

نَتَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ وَقَدْ هَدٰىنَا

توکل نه کوو په الله تعالیٰ باندے او حال دا چه خودلے یې دي مونږ ته

سُبُلَنَا ۖ وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰى مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا

لارے زمونږه او خامخا صبر به کوو مونږ په هغه تکلیفونو چه مونږ ته یې تاسو

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ﴿۱۲﴾

او خاص په الله تعالیٰ د توکل کوي توکل کوونکي۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِرُسُلِهِمْ

او اُوئیل کافرانو خپلو رسولانو ته

لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِّنْ اَرْضِنَآ اَوْ لَتَعُوْدُنَّ

خامخا اوبه باسو تاسو لره د خپل ملک نه یا به راواوګرځئ

۱۲:۔ پدے آیت کښ ذکر د توکل او د صبر د انبیاؤ دے او ذریعه د نجات او د کامیابۍ ده او دا جواب د سوال د مشرکانو دے چه هغوی اُوئیل چه زمونږ په معبودانو باندے ولے توکل نه کوئ نو د هغوی جواب یې اوکړو او دا رنګ پدے جمله کښ علت دے د مخکنۍ جملے چه وعلی الله فلیتوکل المؤمنون۔ وَقَدْ هَدٰىنَا ۔ مراد دا دے چه لارے د کامیابۍ دنیوی او اخروی الله تعالیٰ مونږ ته خودلے دي نو توکل هم په هغه پیورے خاص دے ځکه چه توکل کښ معنیٰ د یقین ده او په هدایت سره یقین حاصلیږي۔

وَلَنَصْبِرَنَّ عَلٰى مَآ اٰذَيْتُمُوْنَا ۔ دا خطاب دے مشرکانو ته اشاره ده چه مشرکانو همیشه مؤحدینو ته اذی ورکوله۔

فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ۔ مؤمن چه هر کله په الله تعالیٰ باندے خاص توکل اوکړي نو د هغه صفت متوکل جوړشي د دے وجے نه یې اول آیت کښ مؤمنون او په دویم کښ متوکلون ذکر کړو۔

فِي مِلَّتِنَا ۚ فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ
زمونږ دین ته ، نو وحی اوکړه دوی ته رب د دوی
لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ ﴿١٣﴾ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ
خامخا هلاک به کړو مونږ ظالمانو لره - او خامخا به اوسوو تاسو لره
الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِهِمْ ۚ ذَٰلِكَ
په زمکه کښې روستو د هغوی نه ، دا وعده ده
لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ ﴿١٤﴾
هغه چا سره چه یریږی د پیشئ زمانه او یریږی د عذاب زما نه .

۱۳ :- په دے آیت کښې ذکر د دباؤ کولو د کافرانو دے په رسولانو بانډے چه زمونږ دین ته به واپس کیږئ یا به زمونږ د ملک نه اوځئ لکه چه سورت اعراف ۸۸ آیت کښې دی او معنیٰ د عود په تفسیر د سورة اعراف کښې ذکر شوے ده - او بیا تسلی ورکول دی

د الله تعالیٰ

د طرف نه پیغمبرانو ته په هلاکولو د ظالمانو سره -
۱۴ :- په یکښې دویمه تسلی ده انبیاؤ ته خصوصًا او نورو حق پرستو ته عمومًا او د دے مثال په سورت بنی اسرائیل ۱۰۳ ۱۰۴ کښې راځی -
ذٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ ، په یکښې د دے وعدے د عموم ذکر دے د هر مؤحد سره - مَقَامِي ، په معنیٰ د مصدر دے دا اضافت دے فاعل ته نو مراد ترینه قیام د الله تعالیٰ په طریقه د علم او قدرت سره دے لکه په سورة رعد ۳۳ کښې دی نو د خاف نه مراد یقین او علم دے - یا دا اضافت دے مفعول ته قیام د بنده د الله تعالیٰ په مخکښې په ورځ د قیامت لکه په سورة مطففین ۶ آیت کښې دی او خوف پخپله معنیٰ دے -

وَاسْتَفْتَحُوْا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ

او هغوی فیصله اوغوختله او نا امیده شو هر سرکش

عَنِيدٍ ﴿١٥﴾ مِّنْ وَّرَآئِهٖ جَهَنَّمُ وَيُسْقٰى

ضدی . چه د هغه څخه ته دوزخ دے او څکولے کیږی به ده ته

مِنْ مَّآءٍ صَدِيدٍ ﴿١٦﴾ يَّتَجَرَّعُهٗ

د اوبو نه چه وینے زوے دی . چه کوټ کوټ به ئے څکی

وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهٗ وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ

او نه به ئے شی په آسانه تیرولے او راځی به په ده باندے اسباب د مرګ

مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَّمَا هُوَ بِمَيِّتٍ ؕ

د هرے غاړے نه خو نه به مړ کیږی ،

وَمِنْ وَّرَآئِهٖ عَذَابٌ غَلِيظٌ ﴿١٧﴾

او د ده څخه ته عذاب دے سخت .

۱۵ :- په دے کښں تخویف دے منکرینو ته . وَاسْتَفْتَحُوْا ، یعنی انبیاؤ مدد طلب کړو د الله تعالیٰ نه یا دا چه فیصله طلب کړه کافرانو د الله تعالیٰ نه لکه په سورة الانفال ۱۹ کښں دی .

جَبَّارٍ ، هغه چا ته وائی چه په ځان باندے د بل حق نه منی .
او عَنِيدٍ ، هغه چا ته وائی چه ډیره کوی د حق نه د ضد د وجے سره . وَخَابَ ، دا اشاره ده د نتیجے د وَاسْتَفْتَحُوْا ته .

۱۶ ، ۱۷ :- په دے دواړو آیتونو کښں تفصیلی تخویف اخروی دے منکرینو ته په شپږ طریقو سره .

مِّنْ وَّرَآئِهٖ ، دا لفظ د اضدادو نه دے یعنی روستو او مخے دواړو ته وئیلے شی دلته مخه مراد ده یعنی په عذاب د دنیا او قبر پسے عذاب د آخرت دے .

يَّتَجَرَّعُهٗ ، دا د وجے د ډیر ګرم والی او د ډیرے بد بوئی د

مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ

مثال دَ هغه کسانو چه کفرئې کړیدے په رب خپل باندے

اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ اِشْتَدَّتْ بِهِ

دَ دوی عملونه پشان دَ ایرے دی چه سخته اوچلیږی په هغے باندے

الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ ۖ لَا يَقْدِرُوْنَ

سیلئ په اسے ورځ کښ چه تیزے سیلئ والا دی، هیڅ وس نه ری

مِمَّا كَسَبُوْا عَلٰى شَيْءٍ ۚ ذٰلِكَ هُوَ

دَ کړے عملونو نه په هیڅ ثواب باندے، دا خو

الضَّلٰلُ الْبَعِيْدُ ۞ ۱۸ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ

گمراهی ډیره لرے ده (دَ حد نه). آیا نه گورئ چه یقینًا الله تعالیٰ

وجے نه - وَيَاْتِيْهِ الْمَوْتُ، مراد دَ دینه اسباب دَ مرګ دی چه هغه مختلف عذابونه دی دَ هر طرف نه اویا مراد دَ موت نه غم اوحزن دے - دا رنګ په سورة فاطر ۳۶ کښ هم دی.
فائده :- پدے آیت کښ دلیل دے پدے خبره چه جهنم والا به نه فنا کیږی.
وَمِنْ وَّرَآئِهٖ عَذَابٌ غَلِيْظٌ، یعنی دا دَ خښکلو عذاب دے اودَ دینه علاوه دَ طعام، ضریع، غسلین، زقوم او اور عذابونه دی.
۱۸ :- هر کله چه تیر شوی آیت کښ ذکر شو عذاب دَ کافرانو نو اعتراض اوکړے شو چه دَ هغوی نیک اعمال شته دے نو دے آیت کښ اشاره ده جواب ته په مثال ذکر کولو سره دَ برباد ئ دَ هغه عملونو - حاصل دَ مثال دا دے لکه څنګه چه ډیری دَ ایرے باندے تیزه سیلئ راشی او تولے ورځ دا سیلئ اوچلیږی نو دا ایره والوځی او هیڅ پاتے نشی نو دا رنګ اعمال دَ مشرکانو چه په هغے سخت حساب اوکړے شی په ورځ دَ حساب کښ نو هغه عملونه به بیکاره معلوم شی دَ وجے دَ کفر او دَ

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۭ

پیدا کړی دی آسمانونه او زمکه د پاره د حق (رښتیا کارونو)۔

اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ وَيَاْتِ بِخَلْقٍ

که اوغواړی نو فنا به کړی تاسو او راوړه به ولی خلق (مخلوق)

جَدِيْدٍ ۝ وَّمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ

نوے۔ او نه دے دا کار په الله تعالیٰ باندے

شرک کولو نه او مثال ئے د رماد سره پدے وجه ذکر کړو چه د رماد نه هیڅ فائده نه اخستلے کیږی نو دارنګ عملونه د مشرک بے فائدے دی۔ او دارنګ رماد پیدا کیږی د سوزیدلو د لرګو نه نو دارنګ عملونه د دوی به وروستو او سوزیږی نو مراد د اَعْمَالُهُمْ نه هغه عملونه دی چه په ظاهر کښ نیک وی۔ لَا يَقْدِرُوْنَ مِمَّا كَسَبُوْا عَلٰى شَيْءٍ، ضمیر راجع دے کافرانو ته یا راجع دے اصحاب الرماد ته لیکن اول قول غوره دے۔

۱۹:۔ خلاصه:۔ د دے آیت نه دریم باب دے تر ۲۳ آیت پورے او دا هم شروع دے په لفظ د الم سره پدے باب کښ عقلی دلیلونه دی مختصر په ۱۹، ۲۰ کښ بیا تذکیر دے په واقعاتو اخروی سره چه هغه براءت د معبودان باطله او د شیطان دے د خپل عبادت کوونکو نه په ۲۱، ۲۲ کښ او بشارت دے په ۲۳ آیت کښ۔

ربط:۔ ربط د دے آیت د مخکښ سره دا دے لکه چه په مثال سره معلومه شوه چه اعمال د شرک برباد دی نو دارنګ په عقلی دلیل سره هم د دے بربادی معلومه ده۔ دارنګ لکه چه هغه د مشرکانو د عملونو په بربادولو باندے قادر دے دارنګ د دے په هلاکولو باندے (اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ) باندے هم قادر دے۔

تفسیر:۔ په آیت ۱۹، ۲۰ کښ بیان دے د خالقیت د الله تعالیٰ

بِعَزِيْزٍ ⑳ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ جَمِيْعًا

څه گران - او میدان ته به شي الله تعالیٰ ته ټول

فَقَالَ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا

نو وائي به کمزوري کسان هغه چاته چه لوئي يې کوله

اِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا فَهَلْ اَنْتُمْ

یقیناً مونږ ستاسو تابع وو نو آیا تاسو

مُّغْنُوْنَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ

لرې کوونکي یئ زمونږ نه د عذاب د الله تعالیٰ نه

مِنْ شَيْءٍ ؕ قَالُوْا لَوْ هَدٰىنَا اللّٰهُ

څه شي ، دوی به اووائي که چرې هدایت کړې وې مونږ ته الله تعالیٰ

لَهَدَيْنٰكُمْ ؕ سَوَآءٌ عَلَيْنَآ اَجَزِعْنَآ

نو هدایت به مونږ تاسو ته کړې وې برابر دې حال زمونږ که فریاد دو نه کوو

اَمْ صَبَرْنَا مَا لَنَا مِنْ مَّحِيْصٍ ㉑

او که صبر کوو نشته مونږ لره ځائے د تختیدلو -

اود قدرتِ کامله د هغه - او بِالْحَقِّ ، نه مراد ښکاره کول د توحید د الله تعالیٰ دی نو معلومه شوه چه حکمت د خلق د الله تعالیٰ ذات د نبي نه دے لکه څنګه چه نقل شوېدے په حدیث د لولاک کښ ځکه چه دغه حدیث د محدثینو په نیز موضوعی دے او د دے آیت نه هم خلاف دے او په آخر د آیت کښ ذکر د قدرت د الله تعالیٰ دے او تخویف هم دے۔

۲۱ ۔ دا د مخکښ په مضمون باندے عطف دے یعنی واستفتحوا فاهلکوا وبعثوا للحساب او ښکاره به شي او ماضي په معنیٰ د مستقبل ده - پدے آیت کښ تخویف اخروی دے په ذکر

وَقَالَ الشَّيْطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الْاَمْرُ

او وائی به شیطان هر کله چه فیصله اوشی د ټولو خبرے

اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ

یقیناً الله تعالیٰ تاسو سره وعده کړیوه وعده حقه

وَوَعَدْتُّكُمْ فَاَخْلَفْتُكُمْ ؕ وَمَا كَانَ

او ما دروغ وئیلی وو تاسو ته (خلاف مے اوکړو) ، او نه وو

لِيَ عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ اِلَّآ اَنْ

ما لره په تاسو باندے هیڅ زور (دلیل) سوا د دینه چه

دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِيْ ۚ فَلَا تَلُوْمُوْنِيْ

ما تاسو ته بلنه اوکړه نو تاسو قبوله کړه (بے دلیله) زما خبره، نو ما لره مه ملامته کوئ

وَلُوْمُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ؕ مَآ اَنَا بِمُصْرِخِكُمْ

او ملامته کوئ ځانونه خپل زه ستاسو هیڅ فریاد رسی نه شم کولے

د براءت ، د مشرانو باطل پرستو د خپلو تابعدارو نه او بیان د عجز د معبودو دے د دفع کولو د عذاب نه۔

الضُّعَفٰٓؤُا ، نه مراد هغه جاهلان دی چه په عقل او په علم کښ کمزوری وو او روند تقلید د مشرانو ئے کولو۔

لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْٓا ، د دینه مراد هغه علماء او پیران او اقتدار والا دی چه د حق دین سره ئے ضد او عناد کوو ، او کفر او شرک او بدعات ئے خپل دین جوړ کړے وو۔ اسْتَكْبَرُوْٓا ، یعنی لویی ئے کړے وه د توحید د الله تعالیٰ او د اتباع د رسول نه۔

مُّغْنُوْنَ عَنَّا مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ، یعنی تاسو به مونږ سره دعوے د جنت کولے اوس خو صرف مونږ د عذاب نه بچ کړئ او داسے په سورة مؤمن ۴۷ ، ۴۸ کښ هم دی او پدے سورت کښ دا مکالمه د میدان حشر ده د دے وجے نه د دوی جواب

وَمَآ اَنۡتُمۡ بِمُصۡرِخِیَّ ؕ اِنِّیۡ كَفَرۡتُ

او نه تاسو زما فریاد رسي کولے شئ ، یقینًا ما انکار اوکړو

بِمَاۤ اَشۡرَكۡتُمُوۡنِ مِنۡ قَبۡلُ

دَ هغې نه چه تاسو ما لره دَ الله تعالی سره شریک کړیوو پخوا (مخکښ)،

اِنَّ الظّٰلِمِیۡنَ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِیۡمٌ ﴿۲۲﴾

یقینًا ظالمانو لره عذاب دردناک دے۔

وَاُدۡخِلَ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا

او داخل به کړے شي هغه خوک چه ایمان ئې راوړیدے او عملونه ئې کړیدي

الصّٰلِحٰتِ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا

په طریقه دَ نیکئ جنتونو ته چه بهیږي لاندے دَ هغې نه

الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَا بِاِذۡنِ رَبِّهِمۡ ؕ

ولے همیشه به وي په هغې کښ په حکم دَ رب خپل،

لَوۡ هَدٰىنَا اللّٰهُ لَهَدَیۡنٰكُمۡ ، سره دے او دَ سورت مؤمن ۴۸ مکالمه په اور دَ جهنم کښ ده نو هلته جواب په اِنَّا كُلٌّ فِیۡهَا سره دے۔

۲۲ ۔ هر کله چه تیر شوي آیت کښ حال دَ انسي شیطانانو ذکر شو نو پدے آیت کښ حال دَ جني شیطان ذکر کوي چه ابلیس دے په پنځو طریقو سره۔

اوله طریقه ، اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمۡ ...الخ ، مراد دا دے چه الله تعالی تاسو ته حق دین رالیږلے وو په دلیلونو سره او ما تاسو ته دروغ ویلي وو۔

دویمه طریقه وَمَا كَانَ لِیَ عَلَیۡكُمۡ مِّنۡ سُلۡطٰنٍ ...، مراد سلطان نه دلیل دے یعني تاسو زما خبره بے دلیله منلے وه یا مراد دَ سلطان نه زور دے یعني ما په تاسو دَ څه زور نه وو کړے۔

دریمه طریقه دا ده چه فَلَا تَلُوۡمُوۡنِیۡ ... الخ ، ځکه چه تاسو دلیلونو

تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلٰمٌ ﴿٢٣﴾ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ

(بیشکه) هرکلے دَ دوی به په هغے کښ سلام وی۔ آیا نه گوری ته چه

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً

څنګه بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال دَ کلیمے پاکے

كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ

پشان دَ ونے فائده مندے (پاکے) چه جرړے دَ هغے پلخے دی

وَّفَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ ﴿٢٤﴾ تُؤْتِيْ

او څانګے ئے په اوچت طرف کښ دی۔ ورکوی

تابعداری پریخودلے وه تو پدیکښ په ما باندے ملامتیا نشته دے او څلورمه طریقه مَآ أَنَا بِمُصْرِخِكُمْ وَمَآ أَنْتُمْ بِمُصْرِخِيَّ۔
او پنځمه طریقه إِنِّي كَفَرْتُ ... الخ، او دَ دے مطلب دا دے چه زهٔ انکار کوم دَ هغے نه چه تاسو زهٔ دَ الله تعالیٰ سره په طاعت کښ شریک کړے ووم یا دا مطلب دے چه زما دَ کفر سبب دا دے چه تاسو زهٔ دَ الله تعالیٰ سره شریک کړے یم۔
۲۳:- پدے آیت کښ بشارت دے مؤمنانو ته او بِإِذْنِ رَبِّهِمْ، کښ اشاره ده چه جنت حاصلول په مشیت دَ الله تعالیٰ سره دی نه په عمل سره۔
تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلٰمٌ، کلمه دَ پیشکشئ سلام دے دَ طرف دَ الله تعالیٰ او دَ ملائکو نه۔
۲۴:- خلاصه:- دَ دے ځائے نه څلورم باب دے تر آیت ۲۷ پورے دا هم شروع دے په لفظ دَ الم سره۔ پدے باب کښ تذکیر دے په دوو مثالونو سره اول دَ پاره دَ توحید په ۲۴، ۲۵ کښ او دویم مثال دَ پاره دَ شرک په آیت ۲۶ کښ بیا بشارت دے په مضبوطوالی دَ ایمان والو او تخویف دے په محروم کولو دَ باطل پرستو سره په آیت ۲۷ کښ۔

تُؤْتِیْٓ اُكُلَهَا كُلَّ حِیْنٍۭ بِاِذْنِ رَبِّهَا ؕ

میوے خپل هر وخت په حکم دَ رب خپل سره،

وَ یَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ

او بیانوی الله تعالیٰ مثالونه خلقو لره

لَعَلَّهُمْ یَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۵﴾ وَ مَثَلُ كَلِمَةٍ

دَ دے دَپاره چه نصیحت تر ینه اخلی. او مثال دَ خبرے.

۲۴ـ ۲۵۔ په یکښ مثال دَ کلمے دَ توحید دے چه په زړه دَ مؤمن کښ ده حاصل دَ مثال دا دے لکه چه اونه دَ کجورے ډیرو فائدو والا ده او وبیخ دَ هغے ډیر مضبوط دے او څانګے دَ هغے دَ زمکے نه اوچتے دی او میوے دَ هغے هر وخت کښ موجود وی په مختلفو قسمونو سره نو د غسے عقیده دَ مؤمن ده، وبیخ دَ هغه دَ عقیدے کلک دے په شکونو او شبهو سره نه زائل کیږی او دا عقیده په زړه کښ ده او هغه عملونه چه دَ دے عقیدے نه پیدا کیږی پورته خیژی آسمان ته دَپاره دَ قبولیت او فائدے او برکات دَ دے عقیدے په هر وخت کښ ملاویږی هم په دنیا کښ هم په قبر کښ او هم په آخرت کښ

کَشَجَرَةٍ، په حدیث دَ امام بخاری سره ثابت ده چه دا اونه دَ کجورے ده.

طَیِّبَةٍ، صورت ئے مزیدار دے فائدے یکښ ډیرے دی پانړے لرګی ټولو کښ فائدے شته او دَ شجرے مثال کښ اشاره ده چه دَ هغے ترقی او تازګی په اوبو دَ باران سره وی دا رنګ ایمان دَ مؤمن په قرآن سره تازه وی او زیاتیږی دا رنګ دَ شجرے دَ قیام دَپاره درے څیزونه دی جرړے، تنه او څانګے نو دَ ایمان دَپاره درے ارکان دی عقیده دَ قلب، اقرار دَ ژبے او عمل په اندامونو سره.

خَبِيْثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيْثَةِ ۨاجْتُثَّتْ

پلیتې پشان دَ بوټي تر بخ دے چه سرسري او په آسانه را ویستلے کیدشي

مِنْ فَوْقِ الْاَرْضِ مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ ﴿۲۶﴾

مخ دَ زمکې نه نشته دَ هغې مضبوطوالے.

تُؤْتِیْٓ اُكُلَهَا كُلَّ حِیْنٍۭ بِاِذْنِ رَبِّهَا، ثمره يُّ نده وئيلے ځکه چه اکل لفظ عام دے هغه قسم خوراکونو ته چه دَ کجورو نه جوړ يږي او هغه هر وخت موجود وي.

لَعَلَّهُمْ یَتَذَكَّرُوْنَ، دلته مشبه په او وجه شبه محسوس دي چه دَ هغې تذکر آسان دے ځکه يُّ يتذکرون راوړو او په سورت حشر ۲۱ کښ دَ غرونو خشوع او تصدع معقولي څيز دے نو هلته يُّ يتفكرون ذکر کړيدے.

۲۶:- پدے آیت کښ مثال دَ مشرک دے چه دَ هغه په زړه او په ژبه باندے دَ شرک کلمه ده.

كَشَجَرَةٍ، دیته دَ مخکښ دَ مشاکلت په وجے سره شجرة راوړه دی وئيلے ده او مراد دَ هغې بوټے دَ حنظله (ترخه هندوانه) ده.

خَبِیْثَةٍ، په خوند کښ ترخه او په بوئ کښ بدبويه ده او بے فائدے ده.

اجْتُثَّتْ، اجتثاث راویستلو ته وئيلے شي. مِنْ فَوْقِ الْاَرْضِ، دَ مخ دَ زمکې نه یعنی دَ هغې څانګے او پانړے په مخ دَ زمکے باندے پرتے وي او جړے خټلے نشي.

مَا لَهَا مِنْ قَرَارٍ، یعنی جړے او زیلئ يُّ نشته، نو دا رنګ مشرک پلیت او نجس دے خبره يُّ هم پلیته او ګنده ده تول عملونه ورله هم ګنده کوي او ترخه وي، او خوراکونه دَ مشرک ګنده او پلیت دي په جهنم کښ او په دنيا کښ هم حرام خوراکونه کوي دده عملونه بیره طرف ته دَ قبولیت دَ پاره نه ورخيژي او دَ توحید په مقابله کښ دَ دے هیڅ قرار نشته، او دلیل او حجت يُّ نشته توحید والو لَه دَ هغې مقابله کول او دَ جړے نه ویستل آسان کار دے.

يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ
كلكوى الله تعالى مؤمنانو لره په وينا

الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي
كلكه په ژوند دنيوى كښ او په

الْاٰخِرَةِ ۚ وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ ۙ
آخرت كښ او خطا كوى په الله تعالى (په جواب كولو كښ) ظالمانو لره

وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ۲۷ اَلَمْ تَرَ
او كوى الله تعالى څه چه غواړى. آيا نه گورے ته

اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ
هغه كسانو ته چه بدل كړى دى نعمت دَ الله تعالى

۲۷:۔ په دے آيت كښ تفريع ده په ما قبل دواړو مثالونو باندے په طريقه د لف نشر مرتب سره نو اول بشارت دے ايمان والو ته چه الله تعالى مضبوطوى دوى لره په سبب دَ توحيد په دنيا كښ په مقابله دَ دشمنانو او دَ ميصيبتونو كښ او په قبر كښ په وخت دَ سوال او جواب كښ ځكه چه مراد دَ آلاخِرَةِ، نه په دے آيت كښ قبر دے لكه چه په حديث دَ براء بن عازب رضی کښ دى چه ذكر كړے دے امام بخارى رحمه الله ويضل الله الظالمين او بيا په دے جملے سره تخويف دے ظالمانو ته چه الله تعالى به خطا كوى مشركانو لره دَ دليل نه په دنيا كښ او دَ جواب نه په قبر كښ يعنى په جواب كښ به وائي لا ادرى (زهٔ نه پوهيږم)۔

كُفْرًا وَّاَحَلُّوْا قَوْمَهُمْ دَارَ
په کفر سره او ورکوز ئې کړو قوم خپل لره په کور
الْبَوَارِ ﴿۲۸﴾ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا ط
دَ هلاکت کښې. چه جهنم دے ورننوځی به په هغې کښې
وَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿۲۹﴾ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ
او ناکاره دے ځائے دَ اوسیدلو. او جوړ کړیدی دوی الله تعالیٰ لره

۲۸۔ خلاصه:۔ دَدے ځائے نه پنځم باب دے دَ سورت تر آخره پورے او دا هم شروع دے په المر سره پدے باب کښې اول زجر دے مشرکانو ته سره دَ تخویف نه په آیت ۲۸، ۲۹، ۳۰ کښې بیا ذکر دے دَ دریو امورو دپاره دَ دفع دَ عذاب په آیت ۳۱ کښې بیا درے عقلی دلیلونه دی په آیت ۳۲، ۳۳، ۳۴ کښې بیا نقلی دلیل دے دَ ابراهیم علیه السلام نه دَ آیت ۳۵ نه تر ۴۱ پورے بیا تخویف اخروی دے په ۴۲، ۴۳ کښې او تخویف دنیوی دے په ۴۴، ۴۵ کښې بیا تخویف اخروی دے دَ ۴۶ نه تر ۵۱ پورے او اختتام دَ سورت دے په ترغیب ورکولو سره قرآن او توحید ته په آیت ۵۲ کښې۔

تفسیر ۲۸، ۲۹:۔ پدیکښې زجر دے مشرکانو ته او تخویف دے دا علت دے دَ مخکښې دَ پاره چه دَ يُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ، او دَ هغوی دوه صفتونه ذکر شویدی اول دا چه دوی دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو ناشکری کړیده په کفر او شرک سره او دویم دا چه دوی دعوت ورکړیدے خپل قوم ته دَ شرک او دا دواړه سبب دَ عذاب ابدی دی یعنی ضالین او مضلین دواړه دی۔
اَلْبَوَارِ، په معنیٰ دَ هلاکت دے او کور دَ هلاکت جهنم دے چه هغه ځائے دَ تباهئ دے او وروسته ۲۹ آیت کښې دَ هغې بیان دے۔

اَنْدَادًا لِّيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ ؕ قُلْ

شریکان دَ دے دَ پاره چه تورخلق هم واړوی دَ الله تعالیٰ دَ لارے نه ، او وایه

تَمَتَّعُوْا فَاِنَّ مَصِيْرَكُمْ اِلَى النَّارِ ﴿۳۰﴾

مزے اوکړئ بیا یقیناً ستاسو ورتلل اور ته دی .

قُلْ لِّعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقِيْمُوا

او وایه ته بندګانو زما ته هغه چه ایمان والا دی چه پابندی دِ کوی

الصَّلٰوةَ وَيُنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ

دَ مونځونو او خرچ دِ کوی دَ هغه څیز چه موږ دوی ته ورکړیدی

سِرًّا وَّعَلَانِيَةً مِّنْ قَبْلِ اَنْ

پټ او ښکاره مخکښ دَ دینه چه

يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خِلٰلٌ ﴿۳۱﴾

راشی ورځ چه نه به وی خرڅول په هغے کښ او نه به وی دوستانه .

ن۳۰ :- په دے آیت کښ تفسیر دے دَ تیرشوی آیت په ترتیب سره یعنی بدلوا تفسیر ئے کړیدے پدے قول سره وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا ، او داحلوا تفسیر ئے کړیدے پدے قول سره لِيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ ، او ثانیں دَ دے آیت په سورة زمر ۸ کښ دے. قُلْ تَمَتَّعُوْا ، مدارک نقل کړیدی چه تمتع دیته وئیلے شی چه انسان خپل ټول شهوات دَ خپل وس مطابق پوره کړی او مراد دا دے چه دَ دوی دَ پاره صرف دَ دنیا مزے دی .

ن۳۱ :- پدے آیت کښ ذکر دے دَ هغے اعمالو چه دفع کوی عذاب لره په مقابله دَ هغه صفاتو دَ مشرکانو کښ چه مخکښ آیتونو کښ ذکر شول او هغه سبب دَ عذاب وو .

يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَيُنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ ، اقامت دَ مونځ او انفاق دَ مال مقابل دے دَ تمتعوا سره . پدیکښ لام

اللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه

وَاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ

او را اورولے ئے دی د بره طرف نه اوبه را ویستلی دی

بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۚ

په هغے سره ډیرے میوے د پاره د فائدے ستاسو

وَسَخَّرَ لَكُمُ الْفُلْكَ لِتَجْرِیَ فِی

او تابع کړیده پخپل حکم سره ستاسو د پاره کشتئ چه چلیږی په

الْبَحْرِ بِاَمْرِهٖ ۚ وَسَخَّرَ لَكُمُ الْاَنْهٰرَ ﴿۳۲﴾

دریاب کښ په حکم د هغه سره او تابع کړیدی د حکم خپل تاسو لره سیندونه۔

مقدر دے او دا مقوله ده د پاره د قل سِرًّا وَّعَلَانِیَةً ، کله پټ او کله ښکاره د حال مناسب دواړه جائز دی لا بیع فیه و لا خلال دا اسے په سورة بقره ۲۵۴ کښ ذکر دی او مراد دا دے چه نور خیزونه په هغه ورځ فائده نه ورکوی ما سوا د دغه عملونو نه او هغے ته تقوای وئیلے شی نو دوستانه د وجے د تقوای نه فائده ورکوی په دلیل د سورة زخرف ۶۷ سره۔

۳۲۔ په دے کښ دلیل عقلی دے د پاره د تذکیر د توحید په پنځه صفاتو فعلیو د الله تعالیٰ سره وسخرلکم الانهار هر کله چه په اوبو د بحر سره د فصل اوبه کول یا پخپله د ښکلو فائده نشته نو د هغے په باره کښ تسخیر د فلک ئے ذکر کړو او په نورو سیندونو او خوړونو کښ د اوبو ډیرے فائدے دی نو د هغے په باره کښ تسخیر انهار ئے ذکر کړو۔

او بِاَمْرِهٖ، کښ اشاره ده چه فائدے اخستل د کشتو او نهرونو نه موقوف دی په امر د الله تعالیٰ باندے۔

وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ

او تابع کړی دی حکم خپل تاسو لره نمر او سپوږمۍ چه

دَآئِبَيْنِ ۚ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ

همیشه روان دی او تابع کړیدی د حکم خپل ستاسو د پاره شپه

وَالنَّهَارَ ﴿۳۳﴾ وَاٰتٰىكُمْ مِّنْ كُلِّ

او ورځ ـ او درکړی دی تاسو ته د هر

مَا سَاَلْتُمُوْهُ ۗ وَاِنْ تَعُدُّوْا

هغه څیز نه چه تاسو ورته حاجت لرئ، او که تاسو شماره شروع کړئ

نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا ۗ اِنَّ الْاِنْسَانَ

د نعمتونو د الله تعالی نو سرته نه شئ رسولے، یقیناً انسان

لَظَلُوْمٌ كَفَّارٌ ﴿۳۴﴾ وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ

خامخا ډیر ظلم کوونکے ډیر ناشکره دے ـ او کله چه اووئیل ابراهیم علیه السلام

ع ۵ / ۱۷

۳۳ :- دا هم دلیل عقلی دے د پاره د تذکیر د توحید په ذکر د تسخیر د څلورو څیزونو سره او په تیر شوی آیت کښ اصول د نعمتونو ذکر کړیدی او مکانیات ئے ذکر کړیدی او په دے آیت کښ زمانیات ذکر کوی۔

دَآئِبَيْنِ ، په دیکښ معنیٰ ده د همیشوالی سره د دے چه حال او عادات نه بدلوی۔

۳۴ :- په دیکښ هم دلیل عقلی دے د پاره د تذکیر او په آخر کښ زجر دے هغه انسان ته چه بدلوی نعمتونه د الله تعالی په کفر یعنی الْاِنْسَانَ ، کښ الف لام عهدی دی هر انسان مراد نه دے ناشکره انسان مراد دے۔

مَا سَاَلْتُمُوْهُ ، مراد د سوال نه په دے ځائے کښ احتیاج دے که سوال په ژبه وی او که نه وی او دا سے په سورة رحمٰن ۲۹

رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا

اے ربه اوګرځوه دا ښار امن والا

وَّاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ اَنْ نَّعْبُدَ

او په ډډه ساتے ما او ځامن زما دَ بندګئ

الْاَصْنَامَ ﴿۳۵﴾ رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ

دَ غیر الله نه۔ اے ربه یقینًا دوی (بندګئ دَ دوی) بے لارے کړیدی

آیت کښ ذکر دی۔

۳۵:۔ دا دلیل نقلی دے دَ ابراهیم علیه السلام نه چه امام دَ نور والو دے دَ پاره دَ تذکیر حاصل دا دے چه ابراهیم علیه السلام دَ الله تعالیٰ دَ نعمتونو شکر کړے وو په طریقه دَ اجتناب دَ هر قسم شرک نه او په طریقه دَ اوسولو دَ بعضے اهل په مرکز دَ توحید کښ دَ پاره دَ نشر دَ توحید او دا دَ دعوے دَ سورت سره هم متعلق دے یعنی ابراهیم علیه السلام دَ ظلما تو نه دَ ویستلو دَ پاره امن دَ ښار او دَ شرک نه بچ کیدل او په مکه کښ اهل اوسول او دَ بچو دَ پاره دُعا غوختل دا ټول کارونه کړے وو۔

اٰمِنًا۔ دَ امن معنیٰ دا ده چه څوک په ئے نړولے نشی تر نزدے دَ قیامت پورے او په قریب دَ قیامت کښ به ورانیږی یا مراد دا دے چه اهل دَ دے به په امن کښ وی۔

وَاجْنُبْنِيْ وَبَنِيَّ ، مراد په بنی سره صلبی اولاد دی او کوم چه په وخت دَ دے دُعا کښ موجود وو ټول اولاد تر قیامته مراد نه دے ځکه چه وروسته دَ دۀ په اولاد کښ ډیر مشرکان پیدا شویدی۔ پدے آیت کښ ذکر دَ دُعا دَ ابراهیم علیه السلام دے په باره دَ امن مکی کښ دا سے په سورة بقره ۱۲۶ کښ تیر شویدی او په باره دَ بچ کیدلو کښ دَ شرک نه۔

الْاَصْنَامَ ، جمع دَ صنم ده او دَ صنم درے معنے دی۔

كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ فَمَن تَبِعَنِي

ډیرو خلقو لره نو چاچه تابعداري اوکړه زما

فَإِنَّهُ مِنِّي وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ

نو یقیناً هغه زما د ډلې نه دے او چاچه نافرماني اوکړه زما نو یقیناً ته

غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣٦﴾ رَّبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ

بخښنه کوونکے رحم کوونکے یې . اے ربه زمونږ یقیناً ما آباد کړې دي

مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ

بعض د اولاد خپل نه په کنده بے فصله (شاړه) کښ

اوله معنیٰ هغه جوسه چه جوړه کړے شی د لرګی یا ګټے وغیره نه او عبادت یې لیدیشی.
دویمه معنیٰ دا ده هر هغه شے چه بندګي کیږے شی سوا د الله تعالیٰ نه نولو معبودانو باطلو ته شامل دے که ژوندی وی او که مړه وی او دریمه معنیٰ چه مشغوله کوی انسان لره د الله تعالیٰ نه او دا معنیٰ ذکرشویده په مفردات د امام راغب کښ ص۵۰ . او په دے آیت کښ مراد آخری معنیٰ ده چه مناسب د شان د ابراهیم علیه السلام سره یا دا معنیٰ ده چه بچ اوساتی مونږ لره همیشه د بندګۍ د غیرالله نه او مقصود په دے سره طلب د استقامت دے په توحید باندے .
۳۶ :- په دے آیت کښ نسبت د ګمراه کولو اصنامو ته په طریقه د سببیت سره دے یعنی بندګی د اصنامو سبب د ګمراهۍ د خلقو وی .
وَمَنْ عَصَانِي ، مراد د دینه عصیان دے بغیر د شرک نه ځکه چه مشرک نه بخښلے کیږی . یا مراد دا دے چه من عصانی نو ته هغه له توفیق د توبے ورکړے ، نو عصیان کښ شرک او کفر داخل دے .

عِنْدَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ رَبَّنَا لِيُقِيمُوا

په خوا (نیزدے) ستا دَ کور عزتمند کښ اے ربه زمونږ دَ دے دپاره چه پابندی

الصَّلٰوةَ فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ

اوکړی (جاری کړی) دَ مونځ نو اوګرځوه زړونه دَ بعضے خلقو

تَهْوِي إِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُم مِّنَ

چه مائل شی دَ دوی طرف ته او روزی ورکړے دوی لره دَ

الثَّمَرٰتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ ۝٣٧

قسما قسم غلو نه دَ دے دپاره چه ستا شکر اوکړی۔

۳۷:۔ په دے آیت کښ ذکر دَ ابتلاء دَ ابراهیم علیه السلام دے په او سولو دَ اسماعیل علیه السلام او دَ مور دَ هغه په شاړ ځائے کښ دپاره دَ اقامت دَ صلوٰة او مراد دَ دینه اقامت دَ دین توحید دے۔

مِنَ النَّاسِ ، مِنَ ، بعضیه دے دَ دے وجے نه بعضے خلق دَ کعبے سره محبت لری۔

لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ ، مراد دَ دینه شکر کول دی په توحید منلو سره او په دعوت کولو سره توحید ته ، او دا دعا ګانے دَ ابراهیم علیه السلام قبولے شوی دی۔

فائده علـ ۱:۔ دا کار دَ ابراهیم علیه السلام په امر دَ الله تعالیٰ سره وو لکه چه ذکر دی په صحیح حدیث کښ نو دا اعتراض نشی کیدلے چه دا ئے دَ ساره رضی الله عنها دَ خوشحالولو دپاره اوکړو لکه چه یهودیان وائی او دا رنګ بل چالره ندی جائز چه اهل عیال سره دغسے کار اوکړی په اقتداء دَ ابراهیم علیه السلام سره لکه چه اوس خلق دا سے کار کوی۔ بعضے متصوفه وائی چه دا توکل دے ذکر شوے دے دا تفصیل په تفسیر قرطبی کښ۔

فائده علـ ۲:۔ لِيُقِيمُوا ، کښ اشاره ده چه دا ځائے مرکز دَ توحید

رَبَّنَآ اِنَّكَ تَعْلَمُ مَا نُخْفِيْ

اے ربه زمونږ یقیناً ته پوهیږے په هغه څیز چه مونږ پټوؤ

وَمَا نُعْلِنُ ؕ وَمَا يَخْفٰى عَلَى اللّٰهِ

او په هغه څیز چه ښکاره کوؤ، او نه پټیږی په الله تعالی

مِنْ شَيْءٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ﴿۳۸﴾

هیڅ څیز (شے) په زمکه کښ او نه په آسمان کښ۔

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ وَهَبَ لِيْ

ټول صفتونه د الوهیت خاص الله تعالی لره دی هغه ذات چه را اوبخښلے ماته

عَلَى الْكِبَرِ اِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ ؕ

سره د زوروالی نه ربه بوډا والی کښ) اسماعیل علیه السلام او اسحاق علیه السلام

اِنَّ رَبِّيْ لَسَمِيْعُ الدُّعَآءِ ﴿۳۹﴾

یقیناً رب زما خامخا قبلوونکے د دُعا دے۔

جوړشی او مرکز جوړیدل په دوه څیزونو باندے موقوف وی یو د خلقو میلان اوبل د هغوی دپاره خوراک د دے وجے نه دا دواړه دعا ګانے یئے اوغوختلے۔

۳۸، ۳۹:- په دے دواړو آیتونو کښ ذکر دے د توسل د ابراهیم علیه السلام په صفاتو د الله تعالی سره او دا شرعی وسیله ده۔

مَا نُخْفِيْ وَمَا نُعْلِنُ، عام دے ټولو اقوالو او افعالو د انسانانو ته۔ وَمَا يَخْفٰى، په دیکښ د ماقبل نه زیات عموم دے سوا د انسانانو نه نورو څیزونو ته هم شامل دے۔ او دا قول هم د ابراهیم علیه السلام دے او بعضو وئیلی دی چه دا قول د الله تعالی د طرف نه دے دپاره د تتمه د قول د ابراهیم علیه السلام۔

اِسْمٰعِيْلَ، د ده دپاره یئے خو دُعا غوختلے ده لکه چه په سورة صافات ۱۰۰ کښ دی او وَاِسْحٰقَ، د ده په باره کښ بشارت

رَبِّ اجْعَلْنِیْ مُقِیْمَ الصَّلٰوةِ وَمِنْ
اے ربه اوګرځوے ما پابندې کوونکے دَ مانځه او دَ

ذُرِّیَّتِیْ ۖ رَبَّنَا وَتَقَبَّلْ دُعَآءِ ﴿۴۰﴾ رَبَّنَا
اولاد زما نه هم اے ربه زموږه او قبوله کړے دُعا زما۔ اے ربه زموږه

اغْفِرْ لِیْ وَلِوَالِدَیَّ وَلِلْمُؤْمِنِیْنَ
او بخښه ما او مور او پلار زما او ټول مؤمنان

یَوْمَ یَقُوْمُ الْحِسَابُ ﴿۴۱﴾ وَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ
په کومه ورځ چه شروع کیږي حساب۔ اوګمان مه کوه په الله تعالیٰ باندے

غَافِلًا عَمَّا یَعْمَلُ الظّٰلِمُوْنَ ۬
دَ غافل دَ هغه کارونو نه چه کوي ئے ظالمان ،

اِنَّمَا یُؤَخِّرُهُمْ لِیَوْمٍ تَشْخَصُ
یقینًا مهلت ورکوي دوی ته هغه ورځ ته چه ګروغے په راؤځي

بغیر دَ دعا نه ورکړے شوے وؤ صافات ۱۰۲۔
سَمِیْعُ الدُّعَآءِ، مراد دَ سمیع نه قبلونکے دے او دا هم وسیله ده په نوم دَ الله تعالیٰ سره۔
۴۰، ۴۱۔ دَ اقامت صلوٰة نه مراد اقامت دَ ټول دین دے او په دے دواړو آیتونو کښ دعا دَ ابراهیم علیه السلام ده دَ پاره دَ خپل ځان او دَ پاره دَ اولاد او دَ پاره دَ مور او پلار او دَ ټولو مؤمنانو۔ او دعا دَ ابراهیم علیه السلام په مغفرت سره دَ پاره دَ پلار خپل په هغه وخت وه چه ده ته لا نه وه معلومه شوے چه دے دښمن دَ الله تعالیٰ دے او دا ذکر شوے دے په سورة التوبه ۱۱۴ کښ۔ او په دے آیت کښ ورځ دَ حساب ئے په دے وجه خاص کړے ده چه دَ مغفرت فائده ښکاره کیږي په ورځ دَ حساب۔

فِيهِ الْأَبْصَارُ ﴿۴۲﴾ مُهْطِعِينَ مُقْنِعِي

په هغې کښې سترګې . منډې به وهي اوچت کړي به ئې وي

رُءُوسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۚ

سرونه خپل نه به راګرځي دوی ته سترګې د دوی

وَأَفْئِدَتُهُمْ هَوَاءٌ ﴿۴۳﴾ وَأَنذِرِ

او زړونه د دوی به خالي وي (د پوهې نه) . او ویره ورکړه

النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ

خلقو ته د داسې ورځې نه چه رابه شي په دوی عذاب

فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا

نو وائي به هغه کسان چه ظالمان دي اے ربه زمونږه

أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ ۙ نُّجِبْ

مهلت راکړې مونږ لره تر نیټې نزدې پورې قبول به کړو مونږ

۴۲ ، ۴۳ :- په دے آیت کښې تسلی ده رسول ته په مخالفت کولو د ظالمانو د دین د ابراهیم علیه السلام نه او په دے دواړو آیتونو کښې تخویف اخروی هم دے په ذکر د هیبت د قیامت سره او وئیلی دی میمون بن مهران چه دا آیت وعید دے د پاره د ظالم او تعزیه ده د پاره د مظلوم .

تَشْخَصُ ، شخوص دے ته وئیلے شی چه د هیبت د وجے نه سترګے وازے وی او نه رپیږی .

مُقْنِعِي ، د اقناع دو نه دے پورته کوونکی او خکته کوونکی دواړو ته وئیلے شی دلته په قرینه د لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ ، سره اوله معنیٰ مراد ده .

هَوَاءٌ ، په معنیٰ د خالی د هوش او علم و فکر نه . مطلب د آیت دا دے چه د هیبت اثر به د دوی په سترګو او سرونو او

دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ؕ اَوَلَمْ
دعوت دَ (توحید) ستا او تابعداری به اوکړو دَ رسولانو، آیا نه
تَكُوْنُوْٓا اَقْسَمْتُمْ مِّنْ قَبْلُ مَا
وو کړی تاسو قسمونه دَ دینه مخکښې چه نشته
لَكُمْ مِّنْ زَوَالٍ ﴿۴۴﴾ وَّسَكَنْتُمْ فِيْ
تاسو لره هیڅ فنا۔ او اوسیدلی یئ تاسو په
مَسٰكِنِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ
ځایونو دَ اوسیدلو دَ هغه کسانو کښې چه ظلم ئې کړیوو په ځانونو خپلو
وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ
او ښکاره شویده تاسو ته چه څه رنګ کار کړیدے مونږ دَ دوی سره

زړونو پاندے وی۔

ربط :- دا عطف دے په وَلَا تَحْسَبَنَّ پاندے یعنی په وخت دَ مهلت دَ دوی کښې انذار اوکړه۔ پدے آیت کښې تخویف دنیاوی دے ځکه چه مراد دَ عذاب نه عذاب دَ دنیا دے په دلیل دَ دے لفظ سره چه رَبَّنَآ اَخِّرْنَآ، او دَ بعضے مفسرینو په نیز دَ يَوْمَ او الْعَذَابُ نه مراد ورځ دَ عذاب دَ قیامت ده او اَخِّرْنَآ، په معنیٰ دَ ارجعنا (واپس کړے مونږ دنیا ته) دے۔ او پدے آیت کښې اشاره ده چه مخالفت کول دَ ظالمانو په دوؤ طریقو سره وی یو انکار دَ دعوت دَ توحید نه او دویم انکار دَ تابعدارئ دَ رسول نه۔

مَا لَكُمْ مِّنْ زَوَالٍ، مراد دَ زوال نه عذاب دے یا مراد دَ زوال نه فنا ده نو حاصل دا معنے دا دے چه نشته تاسو لره فنا په اجتماعی طور سره یعنی دَ دنیا دَ فنا نه تاسو انکار کوو لکه اوس هم دا عقیده ده دَ ملحدینو اګرچه دَ افرادو دَ مرګ نه انکار نشی کولے لیکن دنیا قدیم ګنړی او دَ قیامت نه انکار کوی۔

وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْاَمْثَالَ ﴿٤٥﴾ وَقَدْ
او بیان کړي دي موږ تاسو ته مثالونه ۔ او یقیناً
مَكَرُوْا مَكْرَهُمْ وَعِنْدَ اللّٰهِ مَكْرُهُمْ ط
مکرونه کړي وو دوی مکرونه خپل او په نیز د الله تعالیٰ مکر د دوی دے ،
وَاِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُوْلَ مِنْهُ
او نه دے مکر د دوی چه لرے شي د وجې د هغې نه
الْجِبَالُ ﴿٤٦﴾ فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ
غرونه ۔ نو گمان مه کوه په الله تعالیٰ باندے

۴۵ :- په دے آیت کښې زجر دے منکرینو ته چه ستاسو د انکار د پاره هیڅ وجه نه وه روستو د دے درے حالتونو نه ۔ اول دا چه د تیرو شوو ظالمانو کورونه تاسو لیدلی وو او د هغوی د عذاب نښے تاسو ته ښکاره شوے وے او تاسو ته واقعات د عذاب هم بیان شوی وو نو تاسو عبرت ولے نه اخستو او د دے حالاتو خلاصه دا ده چه په مشاهدے سره تاسو ته علم حاصل شوے دے او د رنگ د مخکنو په تاریخي واقعاتو آورېدلو سره او د رنگ د وحي په ذریعه سره ۔
۴۶ :- مراد د مکر د دوی نه شرک کول او انکار د رسولانو نه دے یا مراد د دینه مقابله کول دي د انبیاؤ او د موحدینو سره په مختلفو تدبیرونو سره ۔
وَاِنْ كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُوْلَ مِنْهُ الْجِبَالُ ، په دے کښې یو توجیه دا ده چه د دوی مکرونه کمزوری دي په هغې د الله تعالیٰ غرونه لښتی بے ځایه کولے په دے کښې جبال په خپله معنیٰ سره مراد دے او سپکوالے د مکرونو مراد دے ۔ په دے توجیه سره ان نافیه دے او لام په لتزول کښې په معنیٰ د حتیٰ سره دے ۔
دویمه توجیه دا ده چه مراد د جبال نه توحید او دین د

مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

خلاف کوونکے دَ وعدے خپلے دَ رسولانو خپلو سره ، یقیناً الله تعالیٰ

عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴۷﴾ يَوْمَ تُبَدَّلُ

زور آور دے بدله اخستونکے دے - پہ هغه ورځ چه بدله به کړے شی

الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ

دا زمکه دَ دینه په بله سره او هم آسمانونه

انبیاؤ دے په طریقه دَ مثال سره نو جبال په معنیٰ مثالی سره دے.
دریمه توجیه دا ده چه شرک دَ دوی سبب دَ زوال دَ غرونو او دَ دنیا دے لکه سورۃ مریم آیت ۹۰ کښ چه ذکر دی پدے توجیه سره ان محفف دے دَ مثقل نه یعنی وانّهٗ یعنی شرک سبب دَ زوال دَ دنیا دے لیکن استغفار دَ ملائکو مانع دے دَ هغے نه لکه په سورۃ شوریٰ ۵ کښ دی۔
څلورمه توجیه دا ده چه مراد دَ دینه ختوالے دَ مکر دے رلکه چه مکراً کباراً راغلے دے) او اِن وصلیه دے یا مخفف عن المثقل دے او لام مفتوح دے او په قراءت دَ عبدالله بن مسعود کښ دا سے ثابت دی۔
۴۷ :- په دے کښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته په بله طریقے سره او مراد دَ وعدے نه وعده دَ نصرت ده په دنیا او آخرت کښ او هر کله چه مخکښ دَ اقوام مکذب عذابونه ذکر کړے شو نو په هغے پاندے په فاء سره تفریع اوکړه دَ پاره دَ تسلیٔ ورکولو نبی صلی الله علیه وسلم ته۔

وَبَرَزُوا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿۴۸﴾

او پیش به شي الله تعالیٰ ته چه یو دے زورآور دے۔

وَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِيْنَ

او ته به اوینے مجرمان په دغه ورځ یوځائے تړلے شوي

فِي الْاَصْفَادِ ﴿۴۹﴾ سَرَابِيْلُهُمْ مِّنْ قَطِرَانٍ

په زنځیرونو کښ۔ قمیصونه د دوي به د رانړ یونه وي

وَتَغْشٰى وُجُوْهَهُمُ النَّارُ ﴿۵۰﴾ لِيَجْزِيَ اللّٰهُ

او پټوي به مخونو د دوي لره اور۔ د دے د پاره چه بدله به ورکړي الله تعالیٰ

ف۴۸ :- دا تخویف اخروي دے او ذکر د هغے ورځے دے چه په هغے کښ وعده پوره کیږي او په باره د تبدیل کښ دوه قوله دي۔
یو قول دا دے چه دا تبدیل ذاتي دے یعني دا آسمانونه او زمکه به فنا شي او هرکله چه ذات او صفت دواړه بدلیږي نو لفظ د تبدیل او غیرئے دواړه ذکر کړیدی او حدیث د مسلم کښ راغلی دي چه عائشه رضي الله عنها تپوس اوکړو چه په وخت د تبدیل د زمکے کښ انسانان به کوم ځائے وي ؟
نو رسول الله صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو چه په جسر (پل) باندے به وي نو هرکله چه دا آسمانونه او زمکه به فنا کړے شي نو د دوي په بدل کښ به نور پیدا کړے شي او دویم قول دا دے چه دا تبدیل وصفي دے یعني د آسمانونو او د زمکے دا موجوده کیفیت به بدل کړے شي ، لکه چه د جهنم والو څرمنے پس د سوزیدلو نه بدلولے شي۔
ف۴۹ :- مُقَرَّنِيْنَ . کښ اشاره ده چه د یو قسم مجرمان به یوځائے تړلے کیږي یا دا چه لاسونه او خپے به ئے یوځائے تړلے شي۔
ف۵۰ :- پدے آیت کښ اشاره ده چه عذاب د جهنم به احاطه کړے وي په دوي باندے د هر طرف نه لکه قمیص چه په ټول بدن

كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ إِنَّ اللَّهَ

هر نفس لره جزا دَ عمل دَ هغه يقيناً الله تعالیٰ

سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٥١﴾ هَٰذَا بَلَٰغٌ

ذر حساب كوونكے دے۔ دا (قرآن) دَپاره دَ رسولو دے

لِّلنَّاسِ وَلِيُنذَرُوا بِهِ وَلِيَعْلَمُوا

خلقو ته او دَ دے دَپاره چه او ويرولے شي پدے سره (خلقولره) او دَ دے دَپاره چه

أَنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ وَلِيَذَّكَّرَ

چه يقيناً الله تعالیٰ حقدار دَ بندګئ دے يو دے او دَ دے دَپاره چه نصيحت واخلی

أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿٥٢﴾

صاف عقل والا۔

باندے احاطه کړے وی ليکن سرابيل نه مراد معنیٰ حقيقي ده۔ او قطران رانسزړو ته وائی چه په هغے سره اوښان غوړول کيږی په وخت دَ مرض دَ خارښ کښ نو پدے کښ اشاره ده چه په جهنميانو باندے عذاب دَ خارښ به وی او دا رنګ رانزړه چه دی نو سبب دَ تيزيدلو دَ اُور دے او بدبويه هم وی۔ (اعاذنا الله منها)

سه۵ :۔ سَرِيعُ الْحِسَابِ، کښ دوه معنے دی يوه دا چه ورځ دَ حساب زر راتلونکے ده او دويم دا چه حساب کول شروع کړی نو زر به ئے ختموی۔

سه۵ :۔ دا دَ ابتداء دَ سورت سره تعلق لری پدے کښ ترغيب دے قرآن ته چه هغه سبب دَ بچ کيدلو دے دَ عذاب نه او په دے کښ دَ قرآن کريم څلور فائدے ذکر کړے شوی دی۔

اوّل دا چه قرآن تبليغ دَپاره دَ عامو خلقو دے۔

دويم دا چه دا انذار دے دَ عذاب نه۔

دريم دا چه دا دَ تعليم دَ توحيد دَپاره دے۔

او څلورم دا چه دا تذکير دَ خالص عقل والو دَپاره دے او په

دے آیت کښ تصریح ده چه موضوع دَ قرآن توحید دے۔
وَلِيَذَّكَّرَ، اشاره ده چه دَ توحید نه علاوه ستور احکام هم اولوالالباب خلق را ویستلے شی په طریقه دَ تدبر او تفکر سره۔

ختم شو تفسیر دَ سورة ابراهیم په فضل دَ غفور رحیم۔

سورة الحجر مكية | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰياتها ۹۹ رکوعاتها ۶

خاص په نوم دَ الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښ چه رحمٰن او رحیم دے۔

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ وَقُرْاٰنٍ مُّبِيْنٍ ①

الله تعالیٰ ذَدے په مراد بنه پوهه دے، دا آیتونه دی دَ کتاب اَوْ قرآن واضح بیان کوونکی۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة الحجر

ربط:- دَ دے سورت ربط دَ تیر شوی سورت سره دا دے چه سورة ابراهیم کښ تذکیر وۇ په ایام الله سره نو پدے سورت کښ دَ هغے پنځه نمونے پیش کوی۔ دویم دا چه په هغه سورت کښ دَ اخراج عن الظلمات دَپاره دَ قرآن ذکر وۇ نو پدے سورت کښ دَ هغے دَپاره عقلی دلیلونه ذکر کوی۔

دعوٰی:- دَ دے سورت تخویف دے په عذاب سره منکرینو دَ توحید ته په ذکر دَ هلاک شوو قومونو اجمالًا په آیت ۴ کښ او تفصیلًا په ذکر دَعذاب سره په دریو قومونو تیر شوۇ باندے او دَ دوۇ دلو دَمکے والو ته۔ او سبب دَ دوی دَ عذاب انکار دے دَ توحید ته نو اثبات دَ توحید ئے کړیدے پدے سورت کښ په دریو طریقو سره اوله طریقه لس عقلی دلیلونه او دویمه طریقه ردکول په درے اقسامو دَ شرک باندے چه هغه شرک فی التصرف او شرک فی العبادة دے او شرک فی العلم دے۔ او دریمه طریقه ذکرکول دَ اوۇ اسماء حسنیٰ دَ الله تعالیٰ دی او دعوٰی دَ توحید په آخر دَ سورت کښ ذکر کړے شویده په آیت ۹۸، ۹۹ کښ۔

خلاصه دَ سورت:- دا سورت تقسیم دے دریو بابونو ته۔ اول باب تر ۱۵ آیت پورے دے پدیکښ اول ترغیب دے قرآن ته په آیت ۱ کښ بیا تخویف دے په ذکر دَ تمنا کولو

رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ
ډير كرته ارمانونه به كوي كافران چه كاش
كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ ﴿۲﴾ ذَرْهُمْ يَاْكُلُوْا
دوي توحيد قبول كړے وے. پريږده دوي چه خوراک كوي

دَ ايمان په آيت ۲ كښ بيا زجر په دريم آيت كښ بيا تخويف دنيوي په ۴، ۵ كښ او دا دعوي دَ سورت ده بيا زجر دے په انكار دَ رسول په آيت ۶، ۷، ۸ كښ بيا ترغيب دے قرآن ته په ۹ آيت كښ بيا زجر دے په استهزاء كولو په رسولانو پورے دَ آيت ۱۰ نه تر ۱۳ پورے بيا زجر دے په انكار دَ معجزاتو سره عنادًا په ۱۴، ۱۵ آيت كښ.

تفسير: ۱ :- په دې كښ ترغيب دے دے قرآن ته. الٓرٰ، بحث دَ مقطعاتو مخكښ تير شوے دے او دا دليل دے په اعجاز دَ قرآن كريم باندے او دَ اَلْكِتَابِ، نه مراد مخكښ كتابونه دي او په دې كښ اشاره ده چه په دے سورت كښ ذكر كيږي واقعات دَ مخكنو قومونو. وَقُرْاٰنٍ مُّبِيْنٍ، كښ اشاره ده روستنو قومونو ته يعني دَ مكے والا دوو ډلو ته چه مقتسمين او مستهزئين دي يا عطف دَ قرآن مبين په الكتاب باندے عطف دَ صفت دے په صفت باندے او مصداق ئے يو دے.

۲ :- په دے آيت كښ ذكر دَ تخويف دے چه مشركان به په وخت دَ عذاب كښ دَ توحيد دَ منلو ارمان كوي.

رُبَمَا، دَ تقليل او تكثير دواړو دَ پاره راځي دلته تكثير مراد دے او بعضو وئيلي دي چه تقليل مراد دے ځكه چه په عذابونو كښ به مشغول وي نو دَ تمنّي دَ پاره به وخت لږ ملاويږي.

وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ

او مزے د دنیا اخلی او غافل کړی دی دوی لره امیدونو

فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ۝٣ وَمَا أَهْلَكْنَا

نو زر ده چه دوی په پوهه شی. او نه دے هلاک کړے مونږ

مِنْ قَرْيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ

یو کلے مګر د هغے د پاره لیکلی دی

مَعْلُومٌ ۝٤ مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ

مقرر. نه شی وړاندے کیدے یو امت

أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ۝٥ وَقَالُوا

د خپلے نیټے نه او نه شی روستو کیدے. او دوی وائی

۳ :- په دیکښ زجر دے په محبت د دنیا چه هغه خوراک او نورے مزے د دنیا دی او زجر دے په غفلت سره د توحید نه په سبب د امیدونو او د اسباب د انکار دی او حدیث مرفوع کښ نقل دی چه څلور څیزونه سبب د بد بختۍ دی اول د سترګو اوچوالے دویم د زړه سختوالے او دریم اوږدوالے د امیدونو او څلورم حرص د دنیا دا رنګ یا کُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا ، اشاره ده حرص د دنیا ته او وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ ، کښ امیدونه ذکر دی او په حدیث کښ ذکر دی چه انسان بوډا کیږی او دوه خصلتونه پکښ ځوانیږی حرص او امیدونه.

۴ ،۵ :- په دے آیتونو کښ تخویف دنیوی دے چه عذاب به راځی په نیټه مقرر یعنی اګرچه دوی له مهلت ورکړے شویدے د پاره د خوراک او د مزو لیکن زر ده چه په دوی به عذاب راځی لیکن د هغے د پاره اجل مقرر شته دے . او دا دعوی د سورت ده.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِىۡ نُزِّلَ عَلَيۡهِ الذِّكۡرُ

اے داسے سړیه چه نازل کړے شوے دے په هغه باندے وحی رښتیا

اِنَّكَ لَمَجۡنُوۡنٌ ؕ‏ ﴿۶﴾ لَوۡ مَا تَاۡتِيۡنَا

(گمان کښ) یقیناً ته خامخا لیونے یې۔ ولے نه راولے موږ ته

بِالۡمَلٰۤـئِكَةِ اِنۡ كُنۡتَ مِنَ الصّٰدِقِيۡنَ ﴿۷﴾

ملائک که ته یې د رشتینو نه۔

مَا نُنَزِّلُ الۡمَلٰۤـئِكَةَ اِلَّا بِالۡحَـقِّ وَمَا

موږ نه نازلوو ملائک مګر په عذاب سره او نشي ورکیدے

كَانُوۡۤا اِذًا مُّنۡظَرِيۡنَ‏ ﴿۸﴾ اِنَّا نَحۡنُ

دوی ته دغه وخت کښ مهلت۔ یقیناً موږ

نَزَّلۡنَا الذِّكۡرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰـفِظُوۡنَ‏ ﴿۹﴾

نازل کړیدے وحی او یقیناً موږ د هغے حفاظت کوو۔

ف ۶:۔ په دے کښ زجر دے په استهزاء کولو سره په رسول پورے۔ نُزِّلَ عَلَيۡهِ الذِّكۡرُ، یعنی ستا په دعوے او گمان سره او دا معطوف دے په ف ۳ آیت باندے او د منکرینو صفات قبیحه ذکر کوی۔

ف ۷:۔ په دے آیت کښ طلب کول دی د رسول نه د ملائکو راوستلو دپاره د شهادت ورکولو په صداقت د نبی صلی الله علیه وسلم یا دپاره د امداد کولو لکه چه فرعون موسیٰ علیه السلام نه هم دا مطالبه کړے وه سورت زخرف ف ۵۳۔

ف ۸:۔ په دے کښ جواب دے د تیرشوی دریم سوال د هغوی او مراد د اَلۡحَقِّ، نه عذاب یا وحی ده۔

ف ۹:۔ په دے آیت کښ جواب د اول اعتراض دے اِنَّكَ لَمَجۡنُوۡنٌ، او صداقت د قرآن دے او تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته په حفاظت د قرآن کریم په مقابله د اعتراضونو د عنادیانو کښ۔

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ فِیْ

او یقیناً لیږلي دي موږ ستا نه مخکښې (رسولان) په

شِیَعِ الْاَوَّلِیْنَ ⑩ وَ مَا یَاْتِیْهِمْ

ډلو دَ مخکنو کښې. او نه به راتللو هغوی ته

مِّنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا کَانُوْا بِهٖ یَسْتَهْزِءُوْنَ ⑪

رسول مګر دوی به په هغه پورې ټوقې کولې۔

او صدق دَ قرآن دلیل دے چه نبي مجنون نه دے ځکه چه دَ مجنون شخص په ذریعه دَ هیڅ څیز حفاظت نشي کیدے۔ او حفاظت دَ الفاظو او دَ معنے دَ تغیر تبدیل او تحریف نه په دے آیت کښې واضح دے۔ او دا بداهةً معلومه ده چه په سوونو کلونو تیر شول او دشمنان دَ قرآن هم بے شماره دي او تحریفونه هم لفظاً او معناً کړیدي لیکن هغه تحریفونه چلیدلي نه دي او الله تعالیٰ داسے بندګان هره زمانه کښې پیدا کړیدي چه دَ تحریفونو ازاله کوي او دَ دے یو شاهد هغه قصه ده چه قرطبي په تفسیر دَ دے آیت کښې ذکر کړیده بلکه الله تعالیٰ دَ احادیثو دَ نبي صلی الله علیه وسلم حفاظت هم کړیدے ځکه چه هغه هم ذکر منزل دے دَ هغے صحیح ضعیف او موضوع علماء حق په تفصیل سره ښکاره کړیدي او دا آیت صریح رد دے په شیعه ګانو باندے چه هغوی دا قرآن محرف ګنړي دَ کتابونه پدے باندے ګواه دي۔

۱۰، ۱۱:- پدے دواړو آیتونو کښې هم تسلي ده نبي صلی الله علیه وسلم ته په صبر کولو سره په استهزاء دَ عنادیانو چه په تیر شوي انبیاؤ پورے استهزاء ګانے کړے شوے دي۔

اَرْسَلْنَا، مفعول حذف دے یعني رسلاً۔

شِیَعِ، جمع دَ شیعة ده هغه ډله چه دَ چا تابعداري کوي که ښه دي او که بد دي۔

كَذٰلِكَ نَسْلُكُهٗ فِيْ قُلُوْبِ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۱۲﴾

دغسې ورننه باسو موږ (دا استهزاء) په زړونو دَ مجرمانو کښې.

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ

ایمان نه راوړی په دے (قرآن باندے) او یقینًا تیره شویده طریقه

الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۳﴾ وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ

دَ مخکنو خلقو. او که پرانځو موږ په دوی باندے

بَابًا مِّنَ السَّمَآءِ فَظَلُّوْا فِيْهِ يَعْرُجُوْنَ ﴿۱۴﴾

دروازه دَ آسمان نه نو په (رڼا ورځ) به په هغې کښې او خیژی.

لَقَالُوْٓا اِنَّمَا سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا

خامخا او به وائی یقینًا بند کړے شوی دی نظرونه زموږ

۱۲، ۱۳ :- په دے کښې زجر دے منکرینو ته چه دَ دوی عادت په شانتے دَ مخکنو دے په استهزاء او په تکذیب کښې او دَ دے وجه ئې ذکر کړیده په نَسْلُكُهٗ، سره ۀ ضمیر راجع دے استهزاء او تکذیب ته او ابن کثیر شرک ته راجع کړیدے مقصد یو دے او دا سے ذکر دے په سورة شعراء ۲۰۰، ۲۰۱ کښې. هرکله چه په دے آیت کښې مراد دَ راتلونکې زمانے مجرمان دی نو فعل مضارع ئې نسلكه ذکر کړه او په سورة شعراء کښې دَ تیرے شوے زمانے دَ مکذبینو ذکر وو نو هلته ئې فعل ماضی ذکر کړیده. او دَ دے مراد هم هغه دے چه په ختم الله او طبع الله کښې دے او ۀ ضمیر قرآن ته راجع کول ضعیف قول دے.

۱۴، ۱۵ :- په دے آیتونو کښې زجر دے په انکار دَ معجزاتو سره عنادًا او بعضے دَ معجزاتو نه آسمان ته پورته کول دی.

فَظَلُّوْا، کښې اشاره ده چه دا پورته کول بالکل ښکاره او حقیقت دے ځکه چه ظلوا دلالت کوی په عمل دَ ورځې باندے.

اِنَّمَا سُكِّرَتْ اَبْصَارُنَا، مراد دا دے چه دوی به وائی چه موږ

بَلۡ نَحۡنُ قَوۡمٌ مَّسۡحُوۡرُوۡنَ ﴿۱۵﴾ وَلَقَدۡ

بلکه موږ داسې قوم یو چه جادو راباندې شوي دې. او یقینًا

جَعَلۡنَا فِی السَّمَآءِ بُرُوۡجًا وَّ زَیَّنّٰهَا

پیدا کړي دي موږ په آسمان کښې غټ ستوري او ښائسته کړي دې موږ

لِلنّٰظِرِیۡنَ ﴿۱۶﴾ وَحَفِظۡنٰهَا مِنۡ کُلِّ

دپاره د نظر کوونکو. او ساتنه کړې ده موږ د دې (آسمان) د هر

آسمان ته نه یو راخیژولي شوي لیکن زموږ نظر بند کړے شوے دے بیا په او وائي چه هاں آسمان ته راخیژولے شوخو موږه په جادو سره راخیژولي شوي یو.

۱۶ :- د دے آیت نه دویم باب دے تر ۲۰ آیت پورے په دے باب کښې لس عقلي دلیلونه دي د ۱۶ نه تر ۲۰ پورے او په دے دلیلونو کښې اتلس صفتونه د قدرت او د علم د الله تعالیٰ ذکر کړے شوي دي. بیا ذکر د واقعے د سجود د آدم علیه السلام دے، متعلق د دعوے د سورت سره چه هغه تخویف دے منکرینو ته بیا ذکر د تخویف اخروي دے په آیت ۴۳، ۴۴ کښې او بیا بشارت اخروي دے د ۴۵ نه ۵۰ پورے.

تفسیر :- هر کله چه ذکر کړے شو انکار د منکرینو د توحید او س ذکر کوي دلیلونه د توحید دپاره د رد په هغوي باندے. او مراد د بُرُوۡجًا، نه غټ ستوري دي په دلیل د دے قول سره چه وَزَیَّنّٰهَا ځکه چه زینت په ستورو سره دے لکه سورۃ صافات ۶ او سورۃ تبارك ۵ کښې چه ذکر دي یا مراد د بروج نه هغه منزلونه دي د نمر او سپوږمۍ وغیره چه دوي وخت په وخت په هغے کښې ښکاره کیږي، ځکه چه برج په اصل کښې ښکاره کیدلو ته وئیلے شي او په دے آیت کښې دوه صفتونه د قدرت د الله تعالیٰ ذکر کړے شوي دي.

شَيۡطٰنٍ رَّجِيۡمٍ ﴿١٧﴾ اِلَّا مَنِ اسۡتَرَقَ

شیطان رټلی شوی نه. مګر هغه شیطان چه غوږ

السَّمۡعَ فَاَتۡبَعَهٗ شِهَابٌ مُّبِيۡنٌ ﴿١٨﴾

ساږنه او کړی نو روانه شی په هغه پسے شغله ښکاره.

وَالۡاَرۡضَ مَدَدۡنٰهَا وَاَلۡقَيۡنَا فِيۡهَا

او زمکه خوره کړیده مونږ او اچولی دی مونږ په دیکښی

رَوَاسِىَ وَاَنۡۢبَتۡنَا فِيۡهَا مِنۡ كُلِّ

پاخه غرونه او زرغون کړیدی مونږ په دیکښی هر

شَىۡءٍ مَّوۡزُوۡنٍ ﴿١٩﴾ وَجَعَلۡنَا لَكُمۡ

څیز وزنی (په اندازه). او پیدا کړیدی مونږ تاسو لره

س۱۷:- په دے آیت کښی دریم صفت دَ قدرت ذکر دے چه هغه حفاظت دے په ستورو سره لکه په سورة ملک س۵ او سورة صافات س۷ کښی.

س۱۸:- په دے آیت کښی طریقه دَ حفاظت ذکر ده چه هغه ویشتل دَ شیطانانو دی لکه سورة جن س۸، س۹ کښی او سورة صافات س۸ س۹، س۱۰ کښی چه ذکر دی.

س۱۹:- په دے آیت کښی درے صفات دَ قدرت ذکر دی او مَدَدۡنٰهَا، مد دَ زمکے قرآن کښی درے کرته ذکر دے سورت رعد س۳ او سورة قٓ س۷ اودا سورت او په لفظ دَ دحو سره ذکر دے په سورة نازعات س۳۰ کښی او په لفظ دَ فرش سره ذکر دے په سورة الذاریات س۴۸ کښی او سورة بقره آیت س۲۲ کښی او مراد دَ دے نه دا دی چه هیڅوک دَ زمکے دی په داسے طریقے سره چه انسانان دَ هغے نه فائده اخستلے شی او کوم چه ذکر دَ مد دَ زمکے دے په علاماتو دَ قیامت کښی لکه سورة انشقاق په آیت س۳ کښی نو مراد دَ هغے دا دے چه دَ زمکے

فِيهَا مَعَايِشَ وَمَن لَّسْتُمْ لَهُ
په دې کښې اسباب د ژوند تيرولو او داسې مخلوق چه تاسو هغوی له

بِرَازِقِينَ ﴿٢٠﴾ وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا
روزي نه شئ ورکولے. او نشته هيڅ شئے مګر

عِندَنَا خَزَائِنُهُ وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا
زموږ سره د هغې خزانې دی او نه راکوزوو (هغه شئے) مګر

بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ ﴿٢١﴾ وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ
په اندازه مقرر سره. او ليږلے دی موږ هواګانې

نه به غروته او ډيرئ اوکندے لړے کړے شی او بيو مېدان به شی.

مَوْزُونٍ، مراد د دينه هغه څيزونه دی چه تللے کيدے شی په وزن سره لکه سره زر او سپين زر او تانبه وغيره شوه يا مراد د موزون نه هغه شئے دے چه مناسب وی د حکم د الله تعالى سره.

ن۲:. په دے آيت کښ دوه صفتونه د قدرت ذکر دی. مَعَايِشَ، د دينه مراد اسباب د ژوند تيرولو دی.

وَمَن لَّسْتُمْ لَهُ بِرَازِقِينَ، د دينه مراد څاروی او وحوش او طيور او اولاد او خدمتګاران دی چه فائده لے ستاسو دی او روزی ورله الله تعالى ورکوی.

ن۲۱:. په دے آيت کښ دوه صفتونه د قدرت ذکر دی او په دے آيت کښ دليل دے چه خزانے د رزق وغيره الله تعالى د خپل حکمت مناسب تقسيموی او په هغه باندے څه اعتراض نشی کيدے.

فائده:. دا آيت دليل دے په دے خبره چه څوک عقيده لری چه اختيار د خزانو د الله تعالى نبی يا ولی له ورکړے شوی دے نو هغه مشرک دے لکه چه جاهلان داتاګنج بخش په لاهور

لَوَاقِحَ فَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ

پورته کوونکي د وریځو نو را اورو مونږ د آسمان د طرف نه

مَآءً فَاَسْقَيْنٰكُمُوْهُ وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ

او به پس څکوو تاسو ته هغه او نه یئ تاسو هغې لره

بِخٰزِنِيْنَ ﴿۲۲﴾ وَاِنَّا لَنَحْنُ نُحْيٖ

جمع کوونکي۔ او یقیناً مونږ ژوندي کول

وَنُمِيْتُ وَنَحْنُ الْوٰرِثُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَلَقَدْ

او مړه کول کوو او مونږ یو باقي پاتې کیدونکي۔ او یقیناً

عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنْكُمْ وَلَقَدْ

پیژنو مونږه مخکني ستاسو نه او یقیناً

کښ د علی هجویري په صفت کښ وائي۔

۲۲ ۲۳۔ په دے آیتونو کښ درے صفات د قدرت ذکر دي او په آخر کښ عجز د مخلوق ذکر کړے دے په دے لفظ سره وَمَآ اَنْتُمْ لَهٗ بِخٰزِنِيْنَ۔

لَوَاقِحَ ، په معنیٰ د حوامل دے یعني حوالګانے پورته کوي وریځے او او به او خاورے دوړے وغیره او دارنګ په اونو کښ پانړے میوے پیدا کوي۔ په دے آیت کښ درے صفات د قدرت ذکر دي ،

وَنَحْنُ الْوٰرِثُوْنَ ، مراد د وارث نه آخري مالک دے او داسے په سورة آل عمران ۱۸۰ او سورة مریم ۴۰ ، ۸۰ کښ ذکر دي۔

عَلِمْنَا الْمُسْتَاْخِرِيْنَ ﴿۲۴﴾ وَاِنَّ رَبَّكَ

او یقیناً ستا رب | روستنی خلق ۔ | پیژنو مونږ

هُوَ يَحْشُرُهُمْ ۚ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۵﴾

هغه به جمع کړي دوي ټول ، یقیناً هغه حکمتونو والا دے پوهه دے په هر څیز

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ

او یقیناً پیدا کړیدی مونږ انسان دَ ټنګار کوونکے

مِنْ حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿۲۶﴾ وَالْجَآنَّ

دَ خټے زړے شوے نه ۔ او پلار دَ پیریانو

۲۴ :۔ په دے آیت کښ صفت دَ علم دَ الله تعالیٰ ذکر دے په طریقه دَ احاطے سره ۔ او مستقدمین او مستاخرین عام او شامل الفاظ دی دَ دے لاندے داخل دی هغه خلق چه مخکښ تیر شوی دی ، او هغه چه روستو دی یعنی پیدا شوی نه دی ، او دا رنګ هغه څوک چه مړه دی او هغه څوک چه اوس ژوندی دی ، او دا رنګ مخکنی امتونه او دا امت ، او دا رنګ هغه څوک چه وړاندے دی په خیر او طاعت کښ او هغه څوک چه وروسته پاتے دی په ګناه او په شرکښ ، او دا رنګ مخکنی صفونه دَ جهاد او وروستنی صفونه دَ جهاد ، او دا رنګ مخکنی صفونه دَ مانځه او روستنی صفونه دَ مانځه ، او دا رنګ هغه څوک چه شهیدان شو بیږی په جهاد کښ او هغه څوک چه نه دی شهیدان شوی ، او دا رنګ تیر شوے مخلوق او روستنے مخلوق ، نو معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ دَ علم نه هیڅ څیز بهر نه دے ۔

۲۵ :۔ په دے آیت کښ یو صفت دَ قدرت ذکر دے او دوه اسماء حسنیٰ ذکر دی ۔

۲۶ :۔ دا هم عقلی دلیل دے په مخکښ باندے عطف دے او په دے آیت کښ هم یو صفت دَ قدرت دے چه هغه پیدا

خَلَقْنٰهُ مِنْ قَبْلُ مِنْ نَّارِ السَّمُوْمِ ﴿۲۷﴾

پیدا کړی وو مونږ مخکښ (د آدم علیه السلام نه) د اور نه چه ګرم باد والا دے.

وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّیْ

او کله چه اُوئیل ستا رب ملائیکو ته یقینًا زهٔ

خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ

پیدا کوونکے یم یو بشر لره د ټنګار کوونکے د

کول د آدم علیه السلام دی.

صَلْصَالٍ، او چه خټه چه کلهٔ وی د شګو سره او ګړنګار کوی خو په اُور سره نه وی پخه شوے او چه په اور پخه کړے شی نو هغے ته فخار وائی.

او حَمَاٍ، هغه خټه ده چه ډیر وخت لونده پریخودے شی نو خمیره شی او رنګ ئے بدل شی تور والی طرفته.

مَسْنُوْنٍ، هغه ده چه ډیر کلوته ورباندے تیر شی نو زړه شی.

فائده :- ترتیب د پیدائش د آدم علیه السلام دا دے چه اول خاوره وه (تراب) بیا لونده کړے شوه نو خټه شوه (طین) څه وخت پریخودے شوه نو سلیخناکه (لازب) بیا څه وخت پریخودے شوه نو خمیره شوه او رنګ ئے بدل شو نو (حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ) شوه بیا ئے اوچه شوه چه ګړنګار ئے کوؤ نو (صَلْصَالٍ) شو او آواز ئے مشابه وؤ د ټکری سره نو (کالفخار) شو.

۲۷ :- په دیکښ هم یو صفت د قدرت ذکر دے چه هغه پیدائش د جان دے د هغه اُور نه چه هغے سره تیزه ګرمه سیلئ وه او لوګے ورسره نه وؤ.

او وَالْجَآنَّ، کښ دوه قوله دی یو دا دے چه جان د جناتو پلار دے او مخکښ وؤ د ابلیس نه او ابلیس خو پلار د شیطانانو دے، دویم قول دا دے چه جان او ابلیس یو دے، اول قول غوره دے.

حَمَاٍ مَّسْنُوْنٍ ﴿۲۸﴾ فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ

| خټې | ژبړے شوے نه۔ | نو هر کله چه برابر ئے کړم |
|---|---|---|

وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا

| او پُو کړم | په هغه کښ | د | روح خپل نه نو پريوځئ |
|---|---|---|---|

السَّمُوْمِ، هغه هوا چه ګرمه وی او ورننوځی په مساماتو د بدن کښ۔

فائده :۔ هغه حديث چه امام مسلم راوړے دے او دلالت کوی چه د آسمانونو او د زمکے په پيدائش پسے متصل آدم عليه السلام پيدا شوے دے هغه په ظاهره کښ د دے آيت نه خلاف دے د دے وجے نه محدثينو هغه رد کړے دے، او ابن کثير په خپل تفسير کښ دا تفصيل راوړے دے۔

۲۸ :۔ د دے آيت نه تر ۴۲ پورے واقعه د سجود د آدم عليه السلام ده او دا دريم کرت دے د دے واقعے د ذکرکولو په قرآن کريم کښ او لوے مقصد د دينه په دے سورت کښ تخويف دے منکرينو ته لکه چه ابليس انکار کړے وو د حکم د الله تعالیٰ نه د وجے د استکبار نه نو هغه له عذاب ورکړے شو په رجيم سره او په لعنت سره تر ورځ د جزا پورے۔ نو دا رنګ چه څوک انکار کوی د توحيد د الله تعالیٰ نه په ضد وعناد او تکبر سره نو د هغه عاقبت هم عذاب دے او دا آيت صريح دليل دے چه آدم عليه السلام بشر وو نو اولاد د هغه هم بشر دے که انبياء وی او که اولياء وی او که عام انسانان وی۔

لَهٗ سٰجِدِيْنَ ﴿۲۹﴾ فَسَجَدَ الْمَلٰٓئِكَةُ

هغهٔ ته سجده کوؤنکي . نو سجده اوکړه ملائکو

كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ ﴿۳۰﴾ اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ اَبٰٓى

ټولو په جمع سره . مګر ابليس ، انکار اوکړو

اَنْ يَّكُوْنَ مَعَ السّٰجِدِيْنَ ﴿۳۱﴾ قَالَ

دَ دینه چه شي دے دَ سجده کوؤنکو سره . الله تعالی اوفرمائیل

۲۹ :- مِنْ رُّوْحِيْ ، روح نه مراد هغه شے دے چه په هغے سره په بدن کښ ژوند پیدا کیږي او هغه مخلوق دے خو الله تعالی ته یې اضافت شوېدے دَ پاره دَ شرافت .

سٰجِدِيْنَ ، قرطبي وغیره دي مراد دَ دینه سجده دَ سلام او دَ اکرام ده نه دَ عبادت .

۳۰ ، ۳۱ :- تفصیل دَ سجدے او دَ استثناء دَ ابلیس مخکښ سورۃ بقره او سورۃ اعراف کښ تیر شوے دے .

فائده :- سوال :- دَ سورۃ بقره دَ ترتیب نه معلومیږي چه امر دَ سجدے ملائکو ته پس دَ پیدائش دَ آدم علیه السلام او دَ استخلاف دَ هغه نه وۀ او دَ دے سورت دَ آیتونو نه معلومیږي چه حکم دَ سجدے ملائکو ته دَ آدم علیه السلام نه مخکښ وۀ دا په ظاهر کښ تعارض دے نو غوره جواب دَ دے دا دے چه دَ پیدائش دَ آدم علیه السلام نه مخکښ امر تعلیقاً کړے شوے وۀ او هر کله چه پیدا شو او خلیفه شو نو ملائکو ته امر دَ سجدے تنجیزاً اوکړے شو ؟

نو حاصل دَ جواب دا دے چه په دے سورت کښ دَ آیت ۲۹ ، ۳۰ په مینځ کښ کلام محذوف دے او هغه دا دے چه آدم علیه السلام پیدا کړے شو او خلیفه اوګرځولے شو او تعلیم دَ اسماؤ ورته اوکړے شو نو امر اوکړے شو ملائکو ته چه اسجدوا لآدم .

يَآبِلِيسُ مَا لَكَ اَلَّا تَكُونَ مَعَ

اے ابلیسه څه عذر دے ستا چه نشوے دَ

السّٰجِدِينَ ۝۳۲ قَالَ لَمْ اَكُنْ لِّاَسْجُدَ

سجده کوونکو سره. اوئیل هغه زه نه یم چه سجده اوکرم

لِبَشَرٍ خَلَقْتَهٗ مِنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَاٍ

بشر ته چه تا جوړ کړے دے دَ ټنګار کوونکے دَ خټې

مَسْنُونٍ ۝۳۳ قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا

زړے شوے نه. اوفرمائیل الله تعالیٰ نو اوځه دَ دے ځائے نه

فَاِنَّكَ رَجِيمٌ ۝۳۴ وَّ اِنَّ عَلَيْكَ

نو یقیناً ته رټلے شوے یې. او یقیناً په تا باندے

۳۲:- په دے آیت کښ اشاره ده چه ابلیس یو ګناه دا کړے وه چه امر دَ الله تعالیٰ یې اونه منلو هغه په لفظ ابیٰ سره ذکر شو او دویمه ګناه دا وه چه دَ جماعت دَ ملائکو نه یې مخالفت اوکړو. مَا لَكَ ، څه عذر او دلیل دے ستا چه دَ ساجدینو ملائکو سره شریک نه شوے.

۳۳:- په یکښ صریح انکار ذکر کوی او دا جواب دَ ده په طریقه دَ حسد او دَ تکبر سره وو.

۳۴ ، ۳۵:- دے آیتونو کښ عذاب دَ ابلیس ذکر دے. اول راویستل دَ هغه دَ جنت نه دَ جماعت دَ ملائکو او آسمانونو نه او دویم رجم دَ هغه چه مراد دَ هغې نه رټل او شړل دی دَ دربار دَ الله تعالیٰ نه یا دا چه وبشتلے کیږی به په شغلو دَ اور سره. او هم اولاد دَ ده. او دریم عذاب دَ لعنت دے تر ورځ دَ جزاء پورے او په ورځ دَ جزاء کښ بیا عذاب ابدی دے او دا رنګ ذکر دے په سورة ص ۷۷ او ۷۸ کښ.

اللَّعۡنَةَ إِلَىٰ يَوۡمِ الدِّيۡنِ ﴿۳۵﴾ قَالَ

لعنت دے تر ورځ دَ جزاء پورے۔ اُوئیل هغه

رَبِّ فَاَنۡظِرۡنِيۡۤ اِلٰى يَوۡمِ يُبۡعَثُوۡنَ ﴿۳۶﴾

اے ربه نو مهلت راکړه ما لره دَ ورځ دوباره پورته کیدو پورے۔

قَالَ فَاِنَّكَ مِنَ الۡمُنۡظَرِيۡنَ ﴿۳۷﴾

اوفرمائیل الله تعالیٰ نو یقینًا ته دَ مهلت ورکړے شوؤ نه یے۔

اِلٰى يَوۡمِ الۡوَقۡتِ الۡمَعۡلُوۡمِ ﴿۳۸﴾

تر وخت مقرر پورے۔

قَالَ رَبِّ بِمَاۤ اَغۡوَيۡتَنِيۡ لَاُزَيِّنَنَّ

اُوئیل هغه اے ربه په دے وجه چه تا زهٔ بے لاره کړم خامخا خائست به ښکاره کوؤم

لَهُمۡ فِى الۡاَرۡضِ وَلَاُغۡوِيَنَّهُمۡ

دوی ته دَ دنیا په څیزونو کښ او ګمراه کوؤم به دوی

۳۶ :- دا هم زیات جرم دَده دے چه توبه یے او نه کړه بلکه مهلت یے اوغوختلو دَ پاره دَ ګمراه کولو دَ خلقو اِلٰى يَوۡمِ يُبۡعَثُوۡنَ ، اراده دَ ابلیس دا وه چه په دے مهلت سره دَ مرګ نه بچ شم ځکه چه په ورځ دَ بعث او دَ هغے نه روستهٔ مرګ نشته۔

۳۷ :- الۡمُنۡظَرِيۡنَ ، هغه خلق دی چه ژوندی به وی دَاولے شپیلۍ په وخت کښ او بیا به فنا شی۔ نو معلومه شوه چه ابلیس به هم پدغه وخت فنا کیږی۔

۳۸ :- دَ دینه ورځ دَ فنا کیدلو دَ ټولو خلقو مرا دده، نو اشاره شوه دیته چه ابلیس به هم هغه وخت کښ مر کیږی هغه وخت ته یے الۡمَعۡلُوۡمِ ، ځکه اوئیل چه دَ هغے حالات او صفات په قرآن او په حدیث کښ بیان شوی دی دا مراد

لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۳۹﴾

دوي ته دَ دنیا په شیزونو کښ او گمراه کوم به دوی ټولو لره.

إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴿۴۰﴾

سِوا دَ بندګانو ستا دَ دوي نه چه پَهٔ ساتلے شوے دی.

قَالَ هَٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ ﴿۴۱﴾

او فرمائیل الله تعالیٰ دا لاره ده په ما پاندے نیغه.

نه دے چه دَ هغے تاریخ مخلوق ته معلوم دے ځکه چه علم دَ هغے خاص دے په الله تعالیٰ پورے.

۳۹:- بِمَا أَغْوَيْتَنِي، باء، سببیه ده او مراد دَ اغواء نه گمراه کول دی یا حکم کول دی هغه ته په وتلو سره دَ جنت او آسمانونو نه. فِي الْأَرْضِ، مراد دَ زمکے نه دنیا او دَ دنیا مالونه وغیره دی. مراد دَ تزیین فی الارض نه مشغوله کول دی په محبت دَ دنیا سره په طریقه دَ وسوسو اچولو او مراد دَ اغواء دَ انسانانو نه خاشته کول دَ گناهونو او ترغیب ورکول گناهونو ته دی په طریقه دَ وسوسے سره.

۴۰:- په دے کښ اشاره ده چه نیکان بندګان دَ ابلیس نه په بچ کیدلو کښ الله تعالیٰ ته محتاج دی ځکه چه مخلصین ئے په صیغه دَ مفعول سره ذکر کړیدے.

فائده:- دا آیت دلیل دے په عصمت دَ انبیاؤ علیهم السلام دَ ټولو گناهونو نه ځکه که انبیاء علیهم السلام معصوم نه شي نو هغه نور خلق چه دَ دے آیت مصداق وی هغوی به غوره شي دَ انبیاؤ نه او دا دَ اصولو دَ شرعے نه خلاف ده.

۴۱:- په دے آیت کښ یو توجیه دا ده چه هَٰذَا، اشاره ده عبدیت دَ الله تعالیٰ ته چه په لفظ دَ عِبَادَكَ، کښ ذکر شو، نو معنیٰ دا ده چه دا بندګی کول دَ الله تعالیٰ نیغه لار ده چه زما په ذمه بیانول دَ هغے دی نو عَلَيَّ، سره تقدیر دَ عبارت دے یعنی عَلَيَّ بَيَانُهُ وَهِدَايَتُهُ. او دویمه توجیه دا ده چه دا بندګی

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ
يقيناً بندګان زما نشته تا لره په دوی باندې
سُلْطَٰنٌ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ ﴿۴۲﴾
وس دګمراه کولو سوا دَ هغه چا نه چه تابعداري کوي ستا دَ سرکشانو نه.

دَ الله تعالی نبغه لار ده زما طرف ته يا په دې سره علی په معنیٰ د الی سره دې. اودریمه توجیه دا ده چه هذا کښې اشاره مضمون دَ آیت روستنی ته ده او په مخصلین کښې هغوی ته اشاره شوې ده. یعنې دغه فیصله ده مضبوطه زما په نیز باندې یعنی مُسْتَقِيمٌ، نه مراد عدل دې او علی په معنیٰ دَ واجب علی دې.

۴۲:- په وروسته توجیه سره دَ هٰذَا صِرَاطٌ، تمهید دې او په مخکنو توجیهاتو سره دا علت دې دَ ۴۱ لپاره که څوک شبهه اوکړي چه په سورت ابراهیم آیت ۲۲ کښې معلومه شویده چه دَ شیطان په خپلو تابعدارو باندې هیڅ سلطان نشته او دارنګ سورة سبا ۲۱ کښې او دې آیت نه معلومیږي چه دَ ده پخپلو تابعدارو باندې سلطان شته دې دا په ظاهر کښې تعارض دې، نو جواب دا دې چه دلته سلطان نه مراد اغواء او ګمراه کول دي په داسې طریقې چه توبه اونه باسي او دا سلطان دَ شیطان دَ پاره خاص دې دَ هغه په تابعدارو پورې. لکه چه په سورة النحل آیت ۱۰۰ کښې. او سورة ابراهیم کښې دَ سلطان نه مراد دلیل یا زور دې او دا استثناء منقطع ده الْغَاوِينَ، کښې اشاره ده غوایت دَ حکم دَ الله تعالی نه سبب دې دَ پاره دَ تسلط دَ شیطان په هغوی باندې.

وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۴۳﴾

او یقیناً جهنم ځائے مقرر شویدلے دوی ټولو لره۔

لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ ۖ لِكُلِّ بَابٍ

دَ هغې اووه دروازے دی، دَ هرے دروازے دَپاره

مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُومٌ ﴿۴۴﴾ إِنَّ الْمُتَّقِينَ

دَ دوی نه برخه مقرر شویده۔ یقیناً متقیان خلق په

فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿۴۵﴾ ادْخُلُوهَا

په باغونو او چینو کښ وی۔ (وئیلے کیږی به) ورننوځئ دیته

بِسَلَامٍ آمِنِينَ ﴿۴۶﴾ وَنَزَعْنَا مَا

په سلامتیا سره بے غمه به وی۔ او اوباسو به هغه چه دَ دوی

۴۳، ۴۴:۔ په دے آیتونو کښ تخویف اخروی دے تابعدارو دَ ابلیس ته۔

فائده:۔ هر کله چه دَ تابعدارو دَ ابلیس لوے ډلے اووهٔ دی۔ ۱ عام گنهگار دَ دے امت۔ ۲ نصارٰی ۳ یهود۔ ۴ صابئون ۵ مجوس ۶ مشرکان غیر کتابی ۷ او منافقین نو دَ دے دَپاره ئے ذکر کړه اووهٔ ابواب دَ جهنم چه هغه دا دی۔ ۱ جهنم ۲ لظی ۳ حطمه ۴ سعیر ۵ سقر ۶ جحیم ۷ او هاویه۔

قرآن کریم کښ چه کوم سورت او آیت کښ دَ دیته یو طبقه ذکر شویده نو ورسره دَ هغې مناسب اهلِ معصیت هم ذکر دی هغوی ته مقسوم وئیلے کیږی۔

۴۵ نه تر ۴۸:۔ په دے آیتونو کښ بشارت دے هغه چاته چه ځان ئے بچ کړیدے دَ تابعدارئ دَ ابلیس نه او په دے بشارت کښ لس امور ذکر دی۔

بِسَلَامٍ، سلامونه به وی دَ طرف دَ الله تعالیٰ او ملائکو نه

فِي صُدُورِهِمْ مِنْ غِلٍّ إِخْوَانًا

په سینو کښې څه خفګان وي رونړه به وي

عَلَىٰ سُرُرٍ مُتَقَابِلِينَ ﴿٤٧﴾ لَا يَمَسُّهُمْ

(آرام به کوي) په تختونو باندې یوبل ته به مخامخ وي. نه به رسي دوی ته

فِيهَا نَصَبٌ وَمَا هُمْ مِنْهَا بِمُخْرَجِينَ ﴿٤٨﴾

په هغې کښې ستړې کیدل او نه به دوی د هغې نه ویستلې کیدی شي.

نَبِّئْ عِبَادِي أَنِّي أَنَا الْغَفُورُ

خبر کړه بندګان زما چه یقینًا زه بخښنه کوونکې

الرَّحِيمُ ﴿٤٩﴾ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ

رحم کوونکې یم. او یقینًا عذاب زما هغه

الْعَذَابُ الْأَلِيمُ ﴿٥٠﴾ وَنَبِّئْهُمْ

عذاب دردناک دې. او خبر کړه دوی

په دوی باندې په وخت د داخلیدلو کښې جنت ته اٰمِنِیْنَ،
یعني په امن وي د هرې ویرې او ویستلو د جنت
نه او د ختمیدلو د لذتونو نه او د فنا او مرګ نه.
غِلٍّ، د دینه مراد هغه خفګان دې بې اختیاره چه پیدا
کیږي په زړونو د انسانانو کښې د وجې د تفاوت د مرتبو
نه.
نَصَبٌ، ستړې کیدل د وجې د محنت او مشقت نه که د عبادت
د وجې نه وي یا د غیر عبادت د وجې نه وي.
۴۹، ۵۰ :. هر کله چه مخکښې تخویف او بشارت تیر شو
نو په دې دوو آیتونو کښې تتمه د هغې ده په طریقه د لف
نشر غیر مرتب سره او په دې کښې تنبیه ده چه ایمان به
په مینځ د رجاء او د خوف کښې وي یعني په اول آیت کښې رجاء

عَنْ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ ﴿٥١﴾ إِذْ دَخَلُوا

دَ میلمنو دَ ابراهیم علیه السلام نه - کله چه داخل شول

عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلٰمًا قَالَ إِنَّا

هغه ته نو دوی اوئیل سلام دِ وی، اُوئیل هغه، یقیناً

مِنْكُمْ وَجِلُونَ ﴿٥٢﴾ قَالُوا لَا تَوْجَلْ

مونږ ستاسو نه یریدونکی یو - دوی اُوئیل مه ویریږه

دَه او په دویم آیت کښ خوف دے۔

سلف :۔ خلاصه :۔ دَ دے آیت نه تر آخرِ دَ سورت پورے دریم باب دے په دیکښ اول قصّه دَ میلمنو دَ ابراهیم علیه السلام ده چه تمهید دے دَ پاره دَ واقعے دَ لوط علیه السلام، بیا ذکر دے دَ نزول دَ عذاب الٰهی په دریو قومونو تیر شوؤ باندے، چه قوم دَ لوط علیه السلام او قوم دَ صالح علیه السلام او قوم دَ شعیب علیه وؤ۔ او دا درے ئے ځکه خاص کړه چه قوم دَ لوط علیه السلام او دَ شعیب علیه السلام دَ حجاز په لار کښ واقع وؤ او قوم دَ صالح علیه السلام هم دوی ته نزدے وؤ او بیا ذکر کړیدے عذاب دَ مقتسیمینو په ۹۰ آیت کښ۔ او عذاب دَ مستهزئینو په ۹۵ کښ۔ او بیا ذکر کړے ده تسلی دَ نبی صلی الله علیه وسلم ته او تشجیع په تبلیغ باندے په بیان دَ لس ادا بو سره۔ او اختتام دَ سورت په دعوت دَ توحید سره دے۔

تفسیر :۔ دَ دے آیت سلف نه تر آیت شپیته پورے واقعه دَ میلمنو دَ ابراهیم علیه السلام ده دَ دے ربط دَ ماقبل سره دا دے چه په واقعه دَ ابراهیم علیه السلام او راتلونکو قصّو کښ بشارت دے مؤمنانو ته دَ اهلاک دَ مجرمانو او تخویف دے مجرمانو ته نو اول دَ سلف سره او دویم دَ سلف سره متعلق شول، او دَ دے قصّے په تقدیم کښ یو حکمت دا دے چه دغه میلمانه ملائک بیا راغلی وؤ دَ قوم دَ لوط علیه السلام

إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ ﴿٥٢﴾ قَالَ

یقیناً تاله زیرے درکوؤ په هلک پوهه سره۔ اُوئیل هغه

أَبَشَّرْتُمُونِي عَلَىٰ أَن مَّسَّنِيَ الْكِبَرُ

آیا زیرے راکوئ ماته سره د دے چه رسیدلے دے ماته بوډا والے

د هلاکت د پاره او دویم حکمت دا دے چه په اهلاک د قوم لوط علیه السلام سره ابراهیم علیه السلام ته څه خفګان رسیدلو نو د هغے د زائل کولو لپاره ملائک اول هغه له راغلل او بشارت ئے ورکړو او په دے آیت کښ د ضیف (میلمنو) اطلاق په ملائکو باندے د دے وجے نه شوے دے چه ابراهیم علیه السلام په هغوی باندے د میلمنو ګمان کړے وو۔

۵۲ :- په دے آیت کښ اختصار کړے شوے دے ځکه چه جواب د سلام دلته نه دے ذکر کړے۔ هاں ذکر کړے شوے دے په سورة هود ۶۹ کښ او سورة ذاریات آیت ۲۵ کښ۔ دا رنګ په دے کښ نه دی ذکر کړی د ابراهیم علیه السلام پیش کول د طعام لره او د هغوی نه خوړل چه هغه سبب د خوف وو او هغه په سورة هود او سورة الذاریات کښ دی او په دے آیت کښ دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام په غیب باندے نه پوهیږی ځکه چه مقصد په دے کښ بشارت دے او هغه ئے ذکر کړے دے۔

۵۳ :- په دے آیت کښ د بِغُلٰمٍ، نه مراد اسحاق علیه السلام دے او عَلِيمٍ، نه مراد خاوند د نبوت دے۔

فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ ﴿۵۴﴾ قَالُوْا بَشَّرْنٰكَ

نو په څه څيز ماله زيرے راكوئ تاسو۔ دوی اُوئيل زيرے دركړو مونږ تاله

بِالْحَقِّ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ ﴿۵۵﴾

په يقيني څيز نو مه كيږه ته دَ نااميدئ كوونكو نه۔

قَالَ وَمَنْ يَّقْنَطُ مِنْ رَّحْمَةِ

اُوئيل ده او نااميدی نه كوی دَ رحمت

رَبِّهٖٓ اِلَّا الضَّآلُّوْنَ ﴿۵۶﴾ قَالَ

دَ رب نه مگر گمراهان۔ اُوئيل ده

۵۴:۔ دا تعجب دَ ابراهيم عليه السّلام په اعتبار دَ عام عادت سره دے نه دَ انكار دَ قدرت دَ الله تعالىٰ نه۔

فَبِمَ تُبَشِّرُوْنَ، په دیكښ استفهام حقيقی دے يعنی بشارت په څه طريقه دے يعنی بوډا والے به زائل كيږی او كه په داسے حال به وی۔

۵۵:۔ دَ حق نه مراد يقينی شے دے چه په هغے كښ څه شك نه وی اوچونكه تعجب كول سبب دَ نااميدئ دے ظاهرًا دَ دے وجے نه ملائكو اُوئيل فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْقٰنِطِيْنَ۔

۵۶:۔ يعنی تعجب دَ ابراهيم عليه السلام دَ وجے دَ نااميدئ نه نه دے بلكه دَ وجے دَ ظاهری اسبابو نه دے او نااميدی دَ الله تعالىٰ دَ رحمت نه پدے وجه گمراهی ده څكه چه نااميدی كوونكی دَ رحمت دَ الله تعالىٰ نه جاهل وی۔ او دَ قدرت دَ الله تعالىٰ نه منكر وی او دا رنگ ذكر دی په سورة يوسف آيت ۸۷ كښ۔

فائده:۔ سورة يوسف كښ يے دَ اياس سره كفر ذكر كړيدے او په دے سورت كښ دَ قنوط سره ضلال ذكر كړے دے دَ دے حكمت دا دے چه اياس دَ زړه نااميدئ

فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ﴿۵۷﴾

نو کوم لوئے کار دے ستاسو اے رالیږلے شوو (ملائکو).

قَالُوْٓا اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ

اُوئیل دوی یقینًا موږ رالیږلے شوی یو قوم

مُّجْرِمِيْنَ ﴿۵۸﴾ اِلَّآ اٰلَ لُوْطٍ ؕ اِنَّا

مجرم ته. سوا د کورنئ د لوط علیه السّلام نه، یقینًا

لَمُنَجُّوْهُمْ اَجْمَعِيْنَ ﴿۵۹﴾ اِلَّا امْرَاَتَهٗ

بچ کوو دوی ټولو لره. مګر ښځه د ده

ته وائی او کفر هم فعل د زړه دے. او قنوط هغه ناامیدئ ته وائی چه د هغے اثر خفګان په مخ باندے ښکاریږی او ضلال هم په ظاهری ګمراهئ کښ استعمالیږی نو په الفاظو کښ د یو بل سره پوره مناسبت دے.

۵۷:- هر کله چه ملائکو ابراهیم علیه السلام ته بشارت ورکړو په ولد سره نو حقیقت دادے چه د دے بشارت د پاره یو ملك هم کافی وو لیکن چونکه ډیر ملائیک چه راغلی دی نو معلومیږی چه د دوی په ذمه غټ کار شته دے نو ابراهیم علیه السلام ځکه دا تپوس اوکړو ځکه چه خطب په غټه حادثه کښ استعمالیږی.

۵۸، ۵۹، ۶۰:- په دے آیتونو کښ د ملائکو دوه مقصدونه ذکر کړے شویدی اول اهلاك د مجرمانو چه هغه صیحه او کانړی رالیږل دی او کلی د قوم لوط علیه السلام پورته کول او اُلټه راغورځول، دا ټول په ذریعه د دے ملائکو کیدونکی وو. دویم مقصد د دوی بچ کول دی د لوط علیه السلام او د کورنئ د هغه بغیر د ښځے د هغه نه.

فائده:- ۱- که مشرکان دا شبه اوکړی چه ملائک نجات

قَدَّرْنَآ ۙ اِنَّهَا لَمِنَ الْغٰبِرِيْنَ ﴿۶۰﴾

مقرر کړې ده مونږ چه یقیناً دا به د پاتے خلقو نه وي په عذاب کښ.

فَلَمَّا جَآءَ اٰلَ لُوْطِ ِۨالْمُرْسَلُوْنَ ﴿۶۱﴾

نو هر کله چه راغلل کورنۍ د لوط ته رالیږلے شوي .

قَالَ اِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنْكَرُوْنَ ﴿۶۲﴾

اُوئیل دهٔ (لوط علیه السلام) یقیناً تاسو قوم یئ نا اشنا .

ورکولے شی د عذاب او د مصیبت نه نو انبیاء او اولیاء به هم ورکولے شی.
جواب دا دے چه اِنَّا لَمُنَجُّوْهُمْ، د اِنَّآ اُرْسِلْنَآ، د لاندے داخل دے
مطلب دا دے چه مونږ قاصدان یو او دا پیغام د الله تعالیٰ دے چه اِنَّا
لَمُنَجُّوْهُمْ، ځکه رسول خپل کلام نشی ذکر کولے بلکه د مرسل
پیغام به ذکر کوی او دلیل پدے باندے لفظ د قدرنا دے ځکه چه
تقدیر د ملائکو په اختیار کښ نه دے .
نحوی فائده ع۱ :- پدے کلام کښ دوه استثناء دی . نو دویمه
استثناء د اولے استثناء نه استثناء ده یعنی قوم مجرمان به هلاکیږی
مګر آل لوط به بچ وی او آل لوط به ټول بچ کیږی مګر ښځه به ئے
نه بچ کیږی لکه دا قول د یو تن " لَهٗ عَلَيَّ عَشَرَةٌ دَرَاهِمَ اِلَّا
اَرْبَعَةً اِلَّا دِرْهَمًا " د فلانکی په ما باندے لس روپۍ دی مګر څلور
او په څلورو کښ یو کمه ده یعنی درے روپۍ د لسو نه کمے دی نو
دا استثناء من المستثنیٰ ده دا دوه استثنا ګانے د یو مستثنیٰ
منه نهٔ دی ځکه چه هغه جائز نه ده په عربیت کښ .
سا ۶۱، سا ۶۲، سا ۶۳، سا ۶۴ :- دا دلیل دے چه لوط علیه السلام هم په غیب
باندے علم نه لرلو .
بِمَا كَانُوْا فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ ، د دینه مراد عذاب دے چه دوی د هغے
په نزول کښ په ځان باندے شک کوؤ یا مراد د دینه مسئله د
توحید ده چه دوی په هغے کښ شک کوؤ او کلام کښ تقدیر دے
معنیٰ دا ده چه عقاب ما كانوا يمترون .

قَالُوْا بَلْ جِئْنٰكَ بِمَا كَانُوْا

دوی اُوئیل بلکه راوړے دے موږ تاته هغه شے

فِيْهِ يَمْتَرُوْنَ ﴿٦٣﴾ وَاَتَيْنٰكَ بِالْحَقِّ

چه دوی پکښې شک کوؤ . او راوړے دے موږ تاته یقینی خبرۀ

وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿٦٤﴾ فَاَسْرِ بِاَهْلِكَ

عذاب او یقینًا موږ رشتینیا وایو . نو بوځه کورنۍ خپله

بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَاتَّبِعْ اَدْبَارَهُمْ

په یو ټکړه دَ شپے کښې او روستو ځه په دوی پسے

وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ اَحَدٌ وَّامْضُوْا حَيْثُ

او نه دے ګوری شاته ستاسو نه هیڅوک او ځروئ لاړشئ هغه ځائے ته

تُؤْمَرُوْنَ ﴿٦٥﴾ وَقَضَيْنَآ اِلَيْهِ ذٰلِكَ الْاَمْرَ

چه تاسو ته حکم کیږی . او فیصله اولیږله موږ دۀ ته دَ دے خبرے

او وَاَتَيْنٰكَ بِالْحَقِّ، دَ الحق نه مراد رشتینی خبر دے یا عذاب مراد دے .

وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ، دَ ډیر تاکید دَ پاره دے .

ف۶۵ : په دے کښې دَ نجات دَ پاره څلور اصول ذکر شوی دی . ع۱ دَ شپے تلل ع۲ دَ امیر او مشر دَ ټولو ملګرو نه روستو تلل . چه دَ هغوی دَ حال نه خبر وی او چه څوک پاتے نشی . ع۳ او دَ شا ته کتلو نه منع کول ځکه چه په روستو کتلو سره مقصد ته په رسیدلو کښې سستی پیدا کیږی . ع۴ او هغه ځائے ته هجرت کول چه الله تعالیٰ دَ کوم ځائے امر کړے وی ، او هغه زمکه دَ شام وه .

أَنَّ دَابِرَ هَٰؤُلَاءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ ﴿٦٦﴾

چه جرړې د دې کسانو به پریکړې شي په وخت د صبا کښې.

وَجَاءَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿٦٧﴾

او راغلل کلي والا خوشحالیدل.

قَالَ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ ضَيْفِي فَلَا تَفْضَحُونِ ﴿٦٨﴾

اُووئیل لوط علیه السلام یقینًا دا میلمانه زمادي نو مه شرمنده کوئ ما لره.

وَاتَّقُوا اللَّهَ وَلَا تُخْزُونِ ﴿٦٩﴾ قَالُوا

اوویره کوئ د الله تعالیٰ نه او ما مه رسوا کوئ. اُووئیل دوي

ف۶۶:- په دَابِرَ کښې اشاره ده چه عذاب به په دوي باندې احاطه کوي هیڅوک د هغې نه بچ کیدلے نشي. او داسې ذکر په سورة انعام ف۴۵ کښې د عامو قومونو په باره کښې ذکر شوے دے.

ف۶۷:- په دے سورت کښې په دے قصّه کښې د ترتیب لحاظ نه دے کړے شوے ځکه چه د دے قوم راتلل په میلمنو پسے اول وو او بیا د لوط علیه السلام د طرف نه د هغوي دفعه کول وو پس د هغې نه د ملائکو لوط علیه السلام ته خبر ورکول وو او داسې ترتیب په سورة هود او سورة شعراء کښې ذکر دے نو د دے یوه وجه دا ده چه په دے واقعه کښې اول مقصد بشارت دے مؤمنانو ته نو هغه یې اول ذکر کړو او بیا دویم تخویف دے نو هغه یې روستو ذکر کړے دے. دویمه لفظي وجه ده هغه دا چه وَجَاءَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ، حال دے د بصریانو په نیز په قد (یت) سره او د کوفیانو په نیز بغیر د قد نه هم صحیح دے او واو هم په ترتیب باندې دلالت نه کوي نو معنیٰ دا ده چه حال دا دے چه راغلي وو ښار والا په دے میلمنو پسے په ناکاره اراده سره هرکله چه هغه میلمانه لوط علیه السلام ته راغلل.

ف۶۸، ف۶۹:- فَلَا تَفْضَحُونِ، فضیحت معنیٰ دا ده چه د میمنو په مخکښې ما لره مه شرمنده کوئ ځکه چه میلمنو بے عزتي د کوربه شرمول وي.

أَوَلَمْ نَنْهَكَ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۷۰﴾ قَالَ

آیا ته نه یې منع کړے مونږ د تعلق ساتلو د خلقو نه۔ وئیل هغه

هٰٓؤُلَآءِ بَنٰتِیْٓ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ﴿۷۱﴾

دا ربیبیانے ستاسو) زما لونړه دی که تاسو څه حاجت پوره کول غواړئ۔

لَعَمْرُكَ اِنَّهُمْ لَفِیْ سَكْرَتِهِمْ

قسم دے ستا په ژوند یقینًا دوی په خپله نشه کښ دی

يَعْمَهُوْنَ ﴿۷۲﴾ فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ

پریشانه۔ پس اونیولو دوی لره یو هیبتناک آواز

وَلَا تُخْزُوْنِ، اوخزی معنی دا ده چه ما لره مه ذلیل کوئ ځکه د یو مشر خبره نه منل دا د هغه تذلیل او سپکول دی۔

وَاتَّقُوا اللّٰهَ، کښ مراد د الله تعالی او د رسول خبره منل دی۔

سٹ:۔ دا د هغه قوم ډیره بے انتها بے حیائی وه او مطلب یې دا دے چه مونږ ته د خلقو د میلمستیا نه منع کړے یئ. یعنی دوی په هغه پابندی لګولے وه چه هیڅ میلمه به د ځان سره نه ساتی۔ یا دا چه د خلقو په باره کښ د سفارش کولو نه مونږ ته منع کړے یئ۔

سٹ:۔ د دے تشریح په سورة هود کښ تیره شوې ده چه مراد د بنات نه زنانه د قوم دی چه پشان د لونړو د لوط علیه السلام دی۔

سٹ:۔ غوره قول په دے کښ دا دے چه دا خطاب لوط علیه السلام ته دے او سلسله د کلام به نه منقطع کیږی. یعنی د دومره نصیحت باوجود په دوی باندے ځکه اثر نه کیدلو چه دوی په خپله نشه او جهل کښ ړانده او شکور دی۔

لَعَمْرُكَ. لام د قسم د پاره دے او عَمر او عُمر یو شے دے لیکن د قسم په وخت کښ عین په زور سره استعمالیږی دا قسم د الله تعالی دے او الله تعالی لره جائز دی او اختیار دے چه په هر څیز باندے قسم کوی او قسم د الله تعالی د پاره د تاکید او شهادت دے لکه په ابتداء

مُشْرِقِيْنَ ﴿۷۳﴾ فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا

په وخت د نمر ختلو کښې - نو اوګرځولو مونږه بره طرف د دغه کلو

سَافِلَهَا وَ اَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً

لاندے طرف ته او راووروَل مونږ په دوی باندے کاڼي

د تفسير د سورة يٰس کښې ذکر شوی دی - ليکن مونږ مکلف يو په حکم د الله تعالیٰ او د رسول صلی الله عليه وسلم باندے او د رسول صلی الله عليه وسلم صحيح حديث دے چه چا غير د الله تعالیٰ نه په بل چا باندے قسم اوکړو نو يقينًا شرک ئے اوکړو - نو مونږ د دے حکم نه خلاف نه شو کولے - د دے وجے نه د امام مالک رحمه الله نه قرطبی نقل کړی دی چه داسے مواضعو کښې لفظ د خالق مقدر مراد دے - او ابراهيم نخعی نه نقل دی چه داسے قسم کول بندګانو باندے منع دے او امام مالک نه نقل دی چه داسے قسمونه کمزوری خلق او زنانه کوی نارينه ئے نه کوی او د الله تعالیٰ په قول باندے قياس نشی کيدلے -

فائده :- قسم د الله تعالیٰ په يو څيز باندے د تاکيد او د شهادت په طور سره وی ، داسے نه ده چه الله تعالیٰ د هغه څيز نه ويره کوی يا نزينه امين ساتی - الله تعالیٰ د دينه پاک دے دلته مراد دا دے چه اے نبی ستا دا ژوند د تکاليفو په دے قوم کښې ګواه دے چه دا قوم جاهلان او ړانده دی - او قسم د انسانانو په څه څيز باندے د دے وجے نه وی چه د هغه څيز نه ويره کوی يا تربينه امين د نفع ساتی او دا عقيده ساتل په الله تعالیٰ پورے خاص دی د دے وجے نه چه انسان د الله تعالیٰ نه سوا په بل چا باندے قسم اوکړی نو شرک اوکړی -

سَكْرَتِهِمْ ، نه مراد ګمراهی د دوی ده -

يَعْمَهُوْنَ ، غفلت دے د مقصد د ژوند نه او سرګردانی ، پريشانی ده -

۷۳ ، ۷۴ :- په دے آيتونو کښې درے عذابونه په هغه قوم باندے

مِّنْ سِجِّيْلٍ ﴿٧٤﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ

دَ پخو کاڼرو نه ۔ یقینًا په دے واقعه کښ ډیر عبرتونه دی

لِّلْمُتَوَسِّمِيْنَ ﴿٧٥﴾ وَاِنَّهَا لَبِسَبِيْلٍ

فکر کوونکو لره ۔ او یقینًا دا کلی پراته دی په نیغه

مُّقِيْمٍ ﴿٧٦﴾ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً

لار باندے ۔ یقینًا په دیکښ لوئے دلیل دے

ذکر کړے شوی دی۔
سوال :- په سورة هود کښ ذکر دی چه وخت دَ عذاب دَ دوی وخت دَ صبا دے ؟
جواب :- ابتداء دَ عذاب په وخت دَ صبا کښ ده او په وخت دَ نمر ختلو کښ دَ دوی معامله ختمه کړے شوه ۔
وَاَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ ، واو دَ ترتیب دَ پاره نه دے نو باران دَ کاڼرو مخکښ وؤ او کلی الټه کول روستو وؤ او دا هم دَ قدرت دَ الله تعالی نه لرے نه ده چه الټه کړے شوؤ کلو دَ پاسه ئے دَ کاڼرو باران کړے وی او داسے په سورة هود کښ تیر شوی دی۔
۵۷ :- لِلْمُتَوَسِّمِيْنَ ، هغه خلق وی چه څیز ته نظر کوی په علامتونو سره او په هغے کښ فکر کوی ، چونکه په هغه علاقه کښ روستو دَ عذاب نه نشانات وؤ نو ځکه ئے متوسمین ذکر کړو او په فکر کولو سره عبرتونه ډیر حاصلیږی ځکه آیت ئے جمع ذکر کړو۔
۷۶ :- لَبِسَبِيْلٍ مُّقِيْمٍ ، نه هغه لار مراد ده چه دَ حجاز نه دَ بحر میت په لار شام (سوریا) ته رسیږی او دَ دے ذکر په سورة صافات ۱۳۷ کښ دے او ظاهر دا ده چه دا لار دَ غښته (چه امام مبین) لارے نه جدا شوے ده دَ دے وجے نه دائے جدا ذکر کړه او بیا ئے دواړه په امام مبین کښ ذکر کړل۔

لِّلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۷۷﴾ وَاِنْ كَانَ اَصْحٰبُ

دَپاره دَ ایمان والو۔ او یقیناً بنړ

الْاَيْكَةِ لَظٰلِمِيْنَ ﴿۷۸﴾ فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ

(جنګلی) والا وو دَ ظالمانو نه۔ نو بدله واخسته موږ دَ دوی نه

وَاِنَّهُمَا لَبِاِمَامٍ مُّبِيْنٍ ﴿۷۹﴾ وَلَقَدْ

او یقیناً دا دواړه کلی په مشهوره لار باندے دی۔ او یقیناً

۷۷:۔ دَ مؤمنانو دَپاره یو آیت هم کافی وی ځکه یئے مفرد ذکرکړو مراد دَآیت نه دلیل دے په نجات ورکولو مؤمنانو ته دَعذاب نه۔

۷۸:۔ دا دویمه تموزنه دَعذاب ده او دا قوم دَ شعیب علیه السلام وو او ایکه ګڼړو او ډیرو ونو ته وائی یعنی ینړ والا۔ غوره قول دا دے چه روسنودَ هلاکت دَاهل مدین نه شعیب علیه السلام ایکه ته اولیږلے شو او په دوی باندے عذاب دَیوم الظله راغلے دے چه په سورة شعراء کښ ذکر دے۔ او شعیب علیه السلام دَدے قوم دَجنس نه نهٔ وو بلکه دَمدین والا دَقوم نه وو دَ دے وجے نه دَ مدین سره لفظ دَ اخوهم ذکرکړے شوے دے او ایکه سره اخوهم نه دے ذکر کړے شوے لکه سورة شعراء ۱۷۶ نه تر ۱۸۹ پورے۔

لَظٰلِمِيْنَ، دَ معنوی ظلمونه په سورة اعراف او هود او شعراء کښ ذکر کړی دی۔

وَاِنْ كَانَ، اِنْ مخفف دے دَمثقل نه په اصل کښ وَاِنَّهٗ دے۔

۷۹:۔ وَاِنَّهُمَا لَبِاِمَامٍ مُّبِيْنٍ، امام، نه مراد هغه لار ده چه ډیر خلق په هغے باندے تلل کوی یعنی لویه لار۔ کلی دَ قوم لوط علیه السلام او دَ قوم شعیب علیه السلام دَمکے والو په لویه لاره کښ واقع وو کله چه دوی به شام ته سفر کولو نو هغه به یئے لیدل۔

كَذَّبَ اَصْحٰبُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۸۰﴾

دروغژن کړل وو حجر والو پیغمبرانو لره۔

وَاٰتَيْنٰهُمْ اٰيٰتِنَا فَكَانُوْا عَنْهَا مُعْرِضِيْنَ ﴿۸۱﴾

او ورکړے وو مونږ دوی ته معجزات نو وو دوی د هغې نه مخ گرځوونکی۔

وَكَانُوْا يَنْحِتُوْنَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوْتًا

او وو دوی چه کنستل به یې د غرونو نه کوټې

اٰمِنِيْنَ ﴿۸۲﴾ فَاَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِيْنَ ﴿۸۳﴾

او بے غمه به اوسیدل۔ نو اونیول دوی لره هیبتناکے چغے په وخت د صبا کښ۔

ف۸۰:۔ دا دریمه نمونه د عذاب ذکر کوی د قوم صالح علیه السّلام او اوس د هغوی مقام په مدائن صالح سره مشهور دے د مدینے او د تبوک په مینځ کښ واقع دے۔ حجر په ډیر معانو کښ استعمالیږی دلته مراد هغه نه مرکزی ښار د ثمودیانو دے۔
وَلَقَدْ كَذَّبَ، په دے لفظ کښ سبب د عذاب ذکر دے۔
الْمُرْسَلِيْنَ، تکذیب د یو رسول پشان د تکذیب د ټولو رسولانو دے۔
ف۸۱:۔ اٰيٰتِنَا، آیات یې جمع راوړیدی ځکه چه په ناقه (اوښه) د صالح علیه السلام کښ ډیر آیات وو لکه د کمټ نه راوتل، زر بچے پیدا کیدل، ډیرے اوبه څکل، ډیر پئ ورکول او غټ والے د بدن د هغې. یا داچه سوا د اوښې نه نورے معجزے ورکړے شوے وے اگرچه مونږ ته نه دی بیان کړے شوے۔
ف۸۲:۔ په دیکښ د دوی دنیا پرستئ ته اشاره ده۔ اٰمِنِيْنَ، کښ اشاره ده چه د الله تعالٰی د عذاب نه هیڅ یره په دوی کښ نه وه۔
ف۸۳:۔ د صبا په وخت کښ مجرمان خلق غافل وی نو دغه وخت کښ ناگهانه عذاب راځی۔

فَمَآ اَغۡنٰى عَنۡهُمۡ مَّا كَانُوۡا يَكۡسِبُوۡنَ ﴿۸۴﴾

نو وانه روڅ ډ دوی نه عذاب هغه عملونو چه دوی کول.

وَمَا خَلَقۡنَا السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ

او نه دی پیدا کړی مونږ آسمانونه او زمکه

وَمَا بَيۡنَهُمَاۤ اِلَّا بِالۡحَـقِّ‌ؕ وَاِنَّ السَّاعَةَ

او ډ دے په مینځ کښ چه څه دی مګر حق بشکاره کولو ډپاره، او یقینًا قیامت

لَاٰتِيَةٌ‌ فَاصۡفَحِ الصَّفۡحَ الۡجَمِيۡلَ ﴿۸۵﴾

خامخا راتلونکے دے نو مخ اوګرځوه په ښائسته طریقه مخ ګرځول.

ف۸۴:۔ مَّا كَانُوۡا يَكۡسِبُوۡنَ ، نه مراد ډ هغوی پاخه مکانونه او قلعه گانے دی یا اعمال شرکیه ډ هغوی عبادات او نذرونه ډ غیر الله وغیره او تکذیب ډ رسول او قتل ډ اوښے وغیره او دا رنګ په سورۃ هود ف۱۰۱ او سورۃ احقاف ف۲۶، ف۲۸ کښ هم دی۔

ف۸۵:۔ دا علت دے ډ پاره ډ عذاب ډ تیرو شوو قومونو یعنی الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه ډ عدل ډ پاره پیدا کړے دی او ډ عدل تقاضا دا ده چه مجرمانو او مشرکانو ته عذاب ورکړیشی او حق په معنیٰ ډ عدل سره دے او دا عذاب صرف په دنیا کښ نه دے بلکه په قیامت کښ هم دے ځکه وروستو ئے اوفرمائیل وَاِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ یا مراد ډ حق نه توحید دے یعنی دا موجودات ټول په توحید باندے دلیل دے نو ولے دا خلق انکار کوی۔

بیا ډ دے آیت نه لس آدابِ مبلغ ډ پاره بیانیږی، او دا تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او ذکر ډ اول ادب دے۔ فَاصۡفَحِ الصَّفۡحَ الۡجَمِيۡلَ ، صفح جمیل دیته وائی چه مخ اوګرځولے شی او براءت اوکړے شی خاص ډ الله تعالیٰ ډ پاره بغیر ډ دنیا ډ مقصدونو نه او دا سے په سورۃ مزمل آیت ف۱۰ کښ هم دی او مراد ډ دینه دا دے چه معافی اوکړه ډ دوی نه په خپلو حقوقو کښ نو دا منسوخ نه دے او

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلَّٰقُ الْعَلِيمُ ﴿٨٦﴾

یقیناً ستا رب هغه پیدا کوونکی دے پوهه دے په هر څه باندے.

وَلَقَدْ اٰتَيْنٰكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ

او یقیناً درکړیدی مونږ تاته اووه آیاتونه چه بیا بیا لوستلے کیږی

وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيمَ ﴿٨٧﴾ لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ

او قرآن لوے شان والا. او مه اوږدوه سترګے خپلے

مراد د دینه دا دے چه د مشرکینو نه براءت اوکړه او دا هر وخت فرض دی، د نسخ احتمال نه لري.

۸۶:- دا دلیل دے د تیرے شوے جملے د پاره. وَاِنَّ السَّاعَةَ لَاٰتِيَةٌ، ځکه چه خالقیت د الله تعالی هر څیز لره سره د علم نه په هر څیز باندے ښکاره دلیل دے چه الله تعالی دوباره ژوندی کول کولے شی.

۸۷:- دا علت دے د فاصفح د پاره او دارنګ د روستو (لاتمدان) د پاره. یعنی د قرآن والو د پاره لازم ده چه د مشرکینو هیڅ پرواه او نه ساتی.

سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِيْ، پدیکښ غوره قول دا دے چه مراد د دینه سورة فاتحه ده ځکه دا په حدیث صحیح او مرفوع د بخاری د ابوسعید بن المعلی کښ راغلی دی. او مثانی ورته ځکه وائی چه سورة فاتحه په هر رکعت کښ د ټولو مونځونو نه بیا بیا لوستل کیږی. یا دا چه د دے مضمون په قرآن کښ مکرر شوی دے.

وَالْقُرْاٰنَ الْعَظِيمَ، د دینه هم مراد سورة فاتحه ده او دا هم په صحیح حدیث کښ راغلی دی ځکه چه دا سورت مشتمل دے په لویو مضامینو د قرآن پاک باندے.

إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِۦٓ أَزْوَٰجًا مِّنْهُمْ

طرف دَ هغه مالونو ته چه مونږ پرې مزې ورکړی دی مختلفو قسمونو کافرانو ته د دوئ نه

وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ

او مه خفه کیږه په دوی باندې او ښکته کړه

جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾ وَقُلْ إِنِّيٓ

وزر خپل مؤمنانو ته۔ او اووایه یقیناً زه

أَنَا ٱلنَّذِيرُ ٱلْمُبِينُ ﴿٨٩﴾ كَمَآ أَنزَلْنَا

زه ویره درکوونکے ښکاره یم۔ لکه څنګه چه مونږ عذاب نازل کړو

۸۸ :- پدې آیت کښې ذکر دَ دریو ادابو دے دَ پاره دَ مبلغ اول دا چه دَ دنیا سامانونو ته او دنیا پرستو خلقو ته مه پسخیږه۔

لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ، نظر اوګډول کنایه ده دَ نظر دَ حرص او دَ پسخیدلو ته۔

أَزْوَاجًا، هغه مالدارو خلقو ته وئیل کیږی چه دَ یو بل سره مشابه وی په مالدارئ کښې او دا رنګ په سورة طٰهٰ ۱۳۱ آیت کښې دی۔ او بل ادب (لاتحزن عَلَيْهِمْ، دا دے که چرې دا مشرکان دنیا پرست ایمان ته راوړی نو په دوی باندې مه خفه کیږه او مراد دَ دینه دا دے حزن او خفګان دے چه مشغوله کوی انسان لره دَ دعوت او دَ تبلیغ نه۔ او بل ادب دا دے (وا خفض جناحك) چه دَ ایمان والو سره نرمی او شفقت کوه او ځان ته یې رانزدې کوه لکه څنګه چه مرغئ وزرې اوغوړوی او خپل بچی دَ وزرو لاندې پټ کړی او دا سې په سورة شعراء ۲۱۵ آیت کښې هم دی۔

۸۹ :- پدې آیت کښې ذکر دَ بل ادب دے۔ الْمُبِينُ، یعنی په انذار کولو کښې هیڅ تلبیس او حق پټول او دَ چا رعایت کول نشته

عَلَى الْمُقْتَسِمِينَ ﴿٩٠﴾ الَّذِينَ جَعَلُوا

په تقسیم کوونکو باندے . هغه کسان چه کړی دی

الْقُرْآنَ عِضِينَ ﴿٩١﴾ فَوَرَبِّكَ

قرآن لره ټوټې ټوټې . نو قسم دے په رب ستا

لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٩٢﴾ عَمَّا كَانُوا

خامخا به تپوس اوکړو د دے ټولو نه . د هغه عملونو

۹۰ :- په دے آیت کښ د تخویف دنیوی یو مثال دے چه په مکے والو کښ واقع وو . او معنیٰ د آیت دا ده چه ویره درکوم د عذاب نه چه په شان د هغه عذاب به وی چه نازل کړے وو مونږ په مقتسمین باندے . په یکښ غوره قول دا دے چه دا شپارس کسان وو او ولید بن مغیره مقرر کړی وو په وخت د موسم د حج کښ او تقسیم کړے وے دوی لارے د مکے او خلق به یے منع کول د رسول الله نه نو الله تعالیٰ په دوی عذاب را اولیږو . او مقتسمین ورته ځکه وائی چه دوی تقسیم کړے وے لارے د مکے یا دا چه دوی قسمونه کړی وو په مقابله کولو د نبی صلی الله علیه وسلم کښ .

۹۱ :- ټوکړے کول د قرآن دا دی چه ایمان لری په هغه باندے چه کوم د دوی د تقاضا موافق وی او انکار کوی د باقی نه یا د ټوکړے کولو دا مطلب دا دے چه دوی مختلف فتوے کولے په باره د قرآن کښ کله به یے اُوئیل چه دا دروغ دی او کله به یے وئیل چه دا سحر دے او کله به یے اوئیل چه دا شعر دے او کله به یے وئیل چه دا کهانت دے .

۹۲ ، ۹۳ :- په یکښ صحیح قول دا دے چه تپوس کول په ورځ د قیامت عام دے د امتونو نه او د انبیاؤ او د اقوالو او اعمالو ټولو په باره کښ به پوښتنه ، تپوس وی په دلیل د سورة اعراف ۶ آیت باندے .

فائده ۱ :- که اعتراض اوکړے شی چه سورة قصص آیت ۷۸

يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٣﴾ فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ

چه دوی کول ۔ نو صفا صفا بیان کړه هغه چه تا ته حکم کړی شوی دی

و سورة الرحمٰن آیت ۳۹ کښی عدم دَ سوال ذکر شوی دے نو دا تعارض دے ظاهرًا ؟
جواب :۔ په څلورو طریقو سره دے۔
اوله طریقه دا ده چه یو نفس عمل کول او نه کول دی او دویم باعث دَ عمل کولو او طریقه دَ عمل کولو ده نو دَ اول تپوس نشی کیدے او دَ دویم تپوس به کیدیشی په لِمَ او کَیْفَ سره۔
دویمه طریقه دا ده چه تپوس په دوه قسمه دے یو دَ پاره دَ خبر حاصلولو او دویم دَ پاره دَ زورنے ورکولو نو دَ اول قسم تپوس نشی کیدے او دَ دویم قسم به کیدیشی۔
دریمه طریقه دا ده چه په قیامت کښی مختلف ځایونه دی نو په بعضو ځایونو کښی تپوس کیدیشی او په بعضو ځایونو کښی نشی کیدے او دا جوابونه خازن ذکر کړیدی۔
څلورمه طریقه دا ده چه په سورة القصص او سورة الرحمٰن کښی مراد دا دے چه په باره دَ ګناه دَ یوتن کښی دَ بل کس نه تپوس نشی کیدے او په دے سورت کښی مقصد دا دے چه دَ هرچا نه دَ خپل عمل تپوس کیدیشی۔
فائده ع۲ :۔ تپوس کول عام دی دَ حساب کولو نه ځکه چه حساب دَ بعضے کسانو سره نه کیږی بے حسابه به جنت ته داخلیږی او تپوس دَ هرچا نه کیدے شی۔
فائده ع۳ :۔ دلته ئے یعملون ذکر کړیدے دیکښی اشاره ده دے خبرے ته چه صرف قول ته اعتبار نشته بلکه اعتبار عمل کولو ته دے اګرچه دَ قول په باره کښی به هم سوال کیدیشی۔

وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ﴿٩٤﴾ إِنَّا
او مخ اړوګرځوه د مشرکانو نه ـ یقیناً
كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ ﴿٩٥﴾ الَّذِينَ
کافی یو مونږ تاله په مقابله دَ توقو کوونکو کښې ـ هغه کسان
يَجْعَلُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ ۚ
چه جوړوی دَ الله تعالیٰ سره بل مددګار
فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٩٦﴾ وَلَقَدْ نَعْلَمُ
نو زر ده چه دوی به پوهه شی ـ او یقیناً پوهیږو مونږ

ف۹۴ :- په دې کښې دوه آداب ذکر دی دَ اول (فاصدع) یو مطلب دا دے چه ښه ښکاره کړه هغه مسئلے چه امر شویدے تاته دَ تبلیغ دَ هغے او دویمه معنیٰ دا ده چه اوچوه زړونه دَ مشرکانو په بیان دَ مسئلے توحید او دریمه معنیٰ دا ده چه ټس ټس کړه ډله دَ مشرکانو په بیان دَ توحید سره ـ او دَ دویم ادب (و اعرض عن المشرکین) مقصد دا دے چه دَ مشرکانو دَ ټوقو او مسخرو او دَ هغوی دَ مقابلے کولو څه پرواه مه لره ـ

ف۹۵ :- په دے آیت کښې تسلی ده نبي صلی الله علیه وسلم ته او دَ تخویف دنیوی بله نمونه ده یعنی اَلْمُسْتَهْزِئِينَ ، پنځه کسان وو دَ سردارانو دَ مکے والو نه او دوی هلاک کړیشو په ورځ دَ بدریا هلاک کړے شویدی جدا جدا لکه چه خازن دَ هغے تفصیل ذکر کړے دے ـ

ف۹۶ :- دا اشاره وه سبب دَ استهزاء ته یعنی دوی شرک کوؤ په الوهیت کښې نو پدے وجه ئے استهزاء کوله په نبی صلی الله علیه وسلم پورے ـ

اَنَّكَ يَضِيْقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُوْلُوْنَ ﴿٩٧﴾

یقینًا ته چه ته تنګیږی سینه ستا په هغه خبرو چه دوی وائی۔

فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ

نو تسبیح وایه سره د ستائینې د رب ستا ته او همیشه یه

مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ﴿٩٨﴾ وَاعْبُدْ

د سجده کوونکو نه۔ او بندګی کوه

۹۷ :- په دے آیت کښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او ننګوالے د زړه طبعًا او بے اختیاره دے۔

۹۸، ۹۹ :- په دے آیتونو کښ بیان د علاج دے په وخت د تنګوالی د زړه کښ او په دے کښ بیان د دریو آدابو دے او دا رنګ دا دعوه د توحید ده په اختتام د سورت کښ۔

اَلْيَقِيْنُ، مراد د دینه مرګ دے لکه سورة مدثر آیت ۴۷ کښ او دا رنګ په حدیث د عثمان بن مظعون رضی الله عنه کښ چه ذکر دی (فقد جاءه الیقین) او دا امام بخاری رحمه الله راوړیدے او مرګ ته یقین ځکه ویلے کیږی چه راتلل د مرګ په هر نفس باندے اتفاقی مسئله ده۔

فائده :- ملحدینو متصوفو د یقین نه معرفت د الله تعالی اراده کړے دے نو په دے آیت سره ئے دلیل نیولے دے چه هر کله یو انسان په عبادت کولو سره معرفت ته اورسیږی نو د هغه نه تکلیف شرعی ساقط شی، او عبادت کول ورته معاف شی او د هغه ګناه ته ګناه نه ویل کیږی، لیکن دا کفر او ضلال او جهل دے په یو څو وجوهو سره۔

اوله وجه :- انبیاء علیهم السلام او صحابه کرام رضی الله عنهم ښه معرفت والا وو او حال دا دے چه هغوی عبادات تر مرګه پورے نه دی پریخودی۔

دوېمه وجه :- د یقین نه وړاندے مرتبه د شک وی او په حال

رَبَّكَ حَتّٰى يَاْتِيَكَ الْيَقِيْنُ ﴿٩٩﴾

دَ رب خپل تر دے پورے چه راشي په تا باندے مرګ۔

دَ شک کښې هیڅ عبادت کول جائز نه وی ځکه چه بناء دَ عباداتو په نیت باندے ده او نیت او شک یو بل سره منافی دی۔

دریمه وجه :- په دلیل دَ قرآن او حدیث صحیح او دَ اقوالو دَ سلفو سره ثابته ده چه مراد دَ یقین نه په دے آیت کښې مرګ دے او هغه تفسیر چه دَ حدیث او دَ اقوالو دَ سلفو نه مخالف وی نو هغه تحریف وی او تحریف په قرآن کښې کفر دے ۔ابن کثیر او آلوسی په دوی باندے دَ دے آیت په تفسیر کښې پوره رد کړیدے۔

ختم شو تفسیر دَ سورة حجر

سورة النحل مكية | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | اٰياتها ۱۲۸ رکوعاتها ۱۶

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

اَتٰۤى اَمْرُ اللّٰهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ ط

(۱) او رسیدو حکم د الله تعالیٰ نو تلوار ورباندے مه کوئ ۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## سورة النحل

ربط :۔ ربط د دے سورت د سورة حجر سره دا دے چه په هغه سورت کښې تخویف وو منکرینو د توحید ته نو په دے سورت کښې رد دے په عذر باطل د مشرکانو او دا رنګ په هغه سورت کښې تخویف وو په عذاب سره نو په دے سورت کښې د هغه عذاب سبب ذکر کوی۔

دعوىٰ :۔ د دے سورت رد دے په استدلال د مشرکینو د پاره د جواز د شرک په مشیت د الله تعالیٰ سره چه ذکر شوے دے په آیت ۳۵ کښې او رد دے په هغے باندے په لسو طریقو سره۔

اوله طریقه :۔ شپږویشت[۲۶] عقلی دلیلونه چه تقسیمیږی څلور قسمونو ته، اول قسم دیارلس[۱۳] عقلی دلیلونه چه په هغے کښې بیان اَنْش د لوے لوے څیزونو ذکر دے ۔ دویم قسم درے عقلی دلیلونه دی چه په هغے کښې ذکر شوے دے انقیاد د ټولو مخلوقاتو الله تعالیٰ ته ۔ دریم قسم شپږ عقلی دلیلونه دی چه په هغے کښې ذکر شویدے پیدا اَنْش د منافع د څیزونو ۔ او څلورم قسم عقلی دلیلونه څلور دی چه په هغے کښې تذکیر د لویو نعمتونو دے ۔

دویمه طریقه :۔ رد دے د شرک په ټولو اقسامو یعنی شرک فی العلم شرک فی التصرف او شرک فی الدعاء او شرک فی العبادة او شرک فی تحلیل او تحریم کښې ۔

دریمه طریقه :۔ رد دے په شرک باندے په دلیل نقلی اجمالی سره د ټولو انبیاؤ نه په آیت ۳۶ کښې او د ابراهیم علیه السلام نه په آیت

سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ①

پاک دے اللہ تعالیٰ او اوچت دے دَ هغې نه چه دوی ورسره شریک جوړوی

سـ۱۲ کښ۔
شلورمه طریقه :- رد دے په مشرکینو په ذکر دَ دریو مثالونو سره۔
پنځمه طریقه :- ذکر دَ نزول دَ عذاب دے په مشرکینو باندے په آیت سـ۱۱۲ کښ۔
شپږمه طریقه :- ترغیب دے پوره کولو دَ عهد دَ الله تعالیٰ ته چه هغه توحید دے او ویره ورکول دی دَ نقضِ عهد نه۔
اوومه طریقه :- رد دَ شرک دے په دلیل وحی سره په آیت سـ۵۱ کښ۔
اتمه طریقه :- ذکر دَ دعوٰی دَ توحید دے په مختلفو تعبیراتو سره۔
نهمه طریقه :- ذکر دَ یولس اسماؤ حسنٰی دے چه خاص دی په الله تعالیٰ پورے۔
لسمه طریقه :- انکار دَ شرکاؤ دَ دوی دے دَ شرک دَ دوی نه په ورځ دَ قیامت په آیت سـ۸۶ کښ۔
خلاصه :- دَ دے سورت خلاصه دا ده چه دا سورت تقسیم دے اووه بابونو ته۔ اول باب تر سـ۲۳ آیت پورے دے په دے باب کښ اول دعوٰی دَ توحید ده بیا دیارلس عقلی دلیلونه دی چه په هغې کښ ذکر شوے دے بیا اتلس دَ دیرش غټو غټو څیزونو دَ آیت سـ۳ نه تر شپارسم سـ۱۶ پورے۔ بیا رد دے په شرک فی التصرف او فی العلم او فی الدعاء باندے سره دَ دعوٰی دَ توحید نه تفریعًا دَ سـ۱۷ نه تر سـ۲۲ پورے، بیا زجر دے په انکار دَ قرآن سره په سـ۲۴ آیت کښ۔ او تخویف اخروی دے په سـ۲۵ کښ، او دا رنګ په سـ۲۷ سـ۲۸، سـ۲۹ کښ۔ او تخویف دنیوی دے په سـ۲۶ کښ، او دارنګ په سـ۳۳، سـ۳۴ کښ او بشارت دے په سـ۳۰، سـ۳۱، سـ۳۲ کښ۔
تفسیر: سـ۱ :- دَ اَمْرُ اللّٰهِ، نه مراد عذاب دَ دنیا دے په سبب دَ شرک سره یا قیامت دے، یا مراد دَ دینه مسئله دَ توحید دَ الله تعالیٰ ده چه په روستو جمله کښ ذکر ده یا مراد دَ دینه قرآن

يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ

نازلوی الله تعالیٰ ملائک په روح سره د وچ د حکم خپل نه

عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ اَنْ

په هغه چا باندے چه اوغواړی د بندګانو خپلو نه چه

اَنْذِرُوْٓا اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا

وېره ورکړی په بیان د دے خبرے چه نشته حقدار د بندګئ سوا زما نه

فَاتَّقُوْنِ ۝۲ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ

نو زما نه اوېرېږئ. پیدا کړیدی آسمانونه او زمکه

دے او بناء په آخری دوه تفسیرونو باندے معنیٰ د فَلَا تَسْتَعْجِلُوْهُ، دا ده چه جلدی مه کوئ په انکار د دے مسئلے او د قرآن کښ. بلکه فکر اوکړئ په مضامینو د دے سورت کښ بناء په اوله توجیه باندے.

سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ، ذکر د توحید دے د پاره د امن د عذاب د الله تعالیٰ نه.

۲:- دا دلیل وحی دے. بِالرُّوْحِ، د روح نه مراد وحی ده او بیان د مسئلے د توحید دے، په دیکښ اشاره ده چه مسئله د توحید د الله تعالیٰ د طرف نه په واسطه د ملائیکو رالیږلے شوے ده او د دے تبلیغ فرض کړے شوے دے په هغه دلیلونو سره او په هغه طریقه سره چه په دے سورت کښ الله تعالیٰ ذکر کړیده.

اَنْ اَنْذِرُوْٓا، بدل اشتمال دے د الروح نه او اَنَّهٗ، (دویم) تفسیر د انذار دے.

بِالْحَقِّ ۭ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ③

دَ پاره دَ حق ښکاره کولو ، اوچت دے دَ هغې نه چه دوی ورله شریک جوړوی.

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا

پیدا کړیدے انسان لره دَ نطفې نه نو دغه

هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ④ وَالْاَنْعَامَ

کس مقابله کوونکے ښکاره دے. او څاروی

خَلَقَهَا ۚ لَكُمْ فِيْهَا دِفْءٌ

پیدا کړیدی الله تعالیٰ ستاسو دَ پاره په هغوکښ سامان دے دَ ګرمیدلو

وَّمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ⑤ وَلَكُمْ فِيْهَا

او فائدے دی او دَ هغې نه تاسو خورئ. او تاسو لره په هغې کښ

ف۳ :- دا دلیل اول دے۔ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ، دَ الحق نه مراد اظهار دَ توحید دے یا مراد دَ دینه حکمت دے۔ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ، په اول آیت کښ دَ عذاب ذکر وُو چه په بو وجے سره نقصان دے او په دویمے وجے سره اظهار دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے نو سبحانه ئې په مناسبت دَ اول او تعالیٰ ئې په مناسبت دَ دویم سره ذکر کړو او په دے کښ صرف صفت دَ خلق دَ دنیا ذکر کړے دے چه دلالت کوی په علو دَ الله تعالیٰ باندے۔

ف۴ :- دا دویم دلیل دے سره دَ زجر نه او هم دا رنګ ذکر شوے دے په سورة یٰسٓ ف۷۷ کښ۔ لیکن هلته خصوصیت په باره دَ انکار دَ قیامت کښ دے او دلته خصوصیت په انکار دَ توحید سره دے۔

ف۵ :- هرکله چه ذکر شو پیدائش دَ مکان او دَ مکین ، نو اوس ذکر کوی پیدائش دَ هغې څیزونو چه انسان هغې ته په ژوند تیرولو کښ محتاج دے او دا دریم عقلی دلیل دے۔

جَمَالٌ حِيْنَ تُرِيْحُوْنَ وَحِيْنَ

خائست دے کوم وخت چه واپس راولئ او کله چه صبا وخت ئے

تَسْرَحُوْنَ ﴿٦﴾ وَتَحْمِلُ اَثْقَالَكُمْ

صحرا ته بوځئ. او پورته کوی بوجونه ستاسو

اِلٰى بَلَدٍ لَّمْ تَكُوْنُوْا بٰلِغِيْهِ اِلَّا

داسے ښارونو ته چه نه یئ تاسو رسیدونکی هغے ته مګر

بِشِقِّ الْاَنْفُسِ ۭ اِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوْفٌ

په تکلیف د نفسونو سره، یقیناً ستاسو رب ډیر شفقت کوونکے

رَّحِيْمٌ ﴿٧﴾ وَّالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ

رحم کوونکے دے. او (پیدا کړیدی) اسونه او خچرے او خره

---

دِفْءٌ، نه مراد هغه څیزونه دی چه د هغے په اغوستلو سره ګرمائش حاصلیږی او سړزی (ریخنی) پرے دفع کیږی چه هغه جوړیږی د وړئ او د پشم او د ویښتو نه۔ او منافع کښ اشاره ده د پیوُ او غوښو او بچو وغیره ته۔

سلا۔ دا څلورم عقلی دلیل دے او مراد د دے دا دے چه تاسو کله څاروی سحرا ته بوځئ او کله ئے واپس راولئ نو خائسته ښکاری او هر کله چه واپس راوستل کیږی نو ماړه شوی په خوراک او څښاک نو خائست پکښ ډیرږی نو د دے وجے نه تُرِيْحُوْنَ، ئے مخکښ ذکر کړے دے۔

سلا۔ دا پنځم عقلی دلیل دے او په دے آیت کښ ذکر د بارونو اوړلو دے په څاروؤ باندے د پاره د دفع د مشقت د انسان نه نو د دے وجے نه د آیت اختتام ئے اوکړو په لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ، سره۔

اِلَّا بِشِقِّ الْاَنْفُسِ، یعنی په غیر د بار اوړلو نه هم تاسو پیاده هغه ملک ته نشئ رسیدلے مګر په ډیر تکلیف او مشقت سره۔

لِتَرْكَبُوْهَا وَزِيْنَةً ۭ وَيَخْلُقُ مَا لَا

دَ پاره دَ دے چه په هغے باندے سورلی اوکړئ او دَ پاره دَ ډول، او پیدا کوی هغه څه چه تاسو

تَعْلَمُوْنَ ۝۸ وَعَلَى اللّٰهِ قَصْدُ السَّبِيْلِ

پیژنئ۔ او دَ الله تعالیٰ په ذمه باندے (بیان کول) دَ سمے لارے دی

وَمِنْهَا جَآئِرٌ ۭ وَلَوْ شَآءَ لَهَدٰىكُمْ

او بعضے لارے کږے دی، او که الله تعالیٰ غوښتلے خامخا هدایت به ئے تاسو

اَجْمَعِيْنَ ۝۹ هُوَ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ

ټولو ته کړے وے۔ خاص الله تعالیٰ دا سے ذات دے چه راوړوی

ف ۸:۔ دا شپږم دلیل دے او په دیکښ درے اقسام دَ حیواناتو او دوه فائدے لوے ذکر شوی دی یو سورلی کول او دویم زینت کول، دا دلیل دے په دے باندے چه زینت جوړول دَ دنیا په څیزونو سره دَ حدود شرعیوٌ دَ لاندے جائز دے نو په دے کښ خوراک نه دے ذکر کړے ځکه چه دَ خر او خچر خوړل بالاتفاق حرام دی۔ او هرچه آسونه دی نو دَ وجے دَ اختلاف دَ احادیثو نه دَ هغے په باره کښ دَ اهل علمو اختلاف دے او راجح دا ده چه حلال دی۔

وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ، کښ اشاره ده هغه حشراتو او زنده سروته چه په اوچه او دریابونو کښ دی او ټول مخلوق هغے لره نه پیژنی نو په دیکښ دلیل دے په نفی دَ علم کلی سره دَ تمام مخلوق نه۔

لِتَرْكَبُوْهَا وَزِيْنَةً، هر کله چه رکوب کله کله وی او زینت همیشه وی دَ دے وجے نه اول ئے په صیغه دَ فعل سره او دویم ئے مصدر ذکر کړو۔

ف ۹:۔ په دے آیت کښ تنبیه ده په فائده دَ دلیلونو باندے چه هغه بیانول دَ حق لارے دی خو بیا هم اشاره ده چه هدایت په مشیت دَ الله تعالیٰ سره دے نه په دلیلونو کښ فقط۔

وَمِنْهَا جَآئِرٌ، دَ دے یو معنیٰ دا ده چه بعضے لارے کږے دی دَ

مِنَ السَّمَآءِ مَآءً لَّكُمْ مِّنْهُ شَرَابٌ

دَ برہ طرف نہ اوبہ تاسو لہ دَ هغې څښل دي

وَّمِنْهُ شَجَرٌ فِيْهِ تُسِيْمُوْنَ ﴿۱۰﴾

او دَ هغې نہ پیدا کیږي ونې چہ په هغې کښې تاسو سروئ (څاروي څروئ).

يُنْۢبِتُ لَكُمْ بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُوْنَ

راټوکوي تاسو لره په هغې سره فصل او خونان

وَالنَّخِيْلَ وَالْاَعْنَابَ وَمِنْ كُلِّ

او کجورې او انګور او دَ هر قسم

الثَّمَرٰتِ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ

میوې نہ ، یقیناً په دیکښې دلیل دَ توحید دے هغه قوم لره

يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۱۱﴾ وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ

چہ فکر کوي۔ او تابع کړیدې (په حکم خپل) تاسو لره شپه

حق دین نہ په معنیٰ دَ بعض دے او جائر صفت دے دَ طریق پټ دَ پاره او دویمه معنیٰ داده چہ بعضے خلق کاږه روان دي دَ لارے دَ حق نہ۔ نو مبتداء پټه ده دَ قوم جائر منها۔

ت۱ :۔ دا دوم دلیل دے او دے آیت کښې اشاره ده چہ دَ باران اوبه دَ څښکلو دَ پاره اکثر استعمالیږي لکه سورة فرقان آیت ۴۸، ۴۹ او بعضے خلق اوبه دَ زمکے (ماء البحر) پس دَ صفا کولو نہ استعمالوي۔

ت۱۱ :۔ دا اتم دلیل دے په دیکښې څلور اقسام دَ نباتاتو تفصیلاً ذکر دي او نور اجمالاً، زرع کښې غذاء ده او په زیتون کښې تیل دي او په نخیل کښې تفکهه او غذاء دواړه دي او په اعناب کښې علاج او تفکهه ده او په دے ټولو کښې بے شماره منافع دي نو دَ دے وجے نہ دَ دے دَ پاره ئې تفکر کول ضروري کړي دي۔

لَاٰيَةً ، مفرد په معنیٰ دَ جمع سره یعني ډیر آیات دي او هر کله چہ

فائدے دَ دے یو قسم ته راجع دی یعنی اکل او شرب تو مفرد
یٔے ذکر کړو۔
سلا ۔ دا نهم دلیل دے او معنیٰ دَ تسخیر دا ده چه الله تعالیٰ دا
ټیزونه دَ خپل امر تابع کړیدی دَ انسان دَ فائده و دپاره او تسخیر
دَ ستورو یٔے جدا ذکر کړو ځکه چه دَ دے په فائده و عام خلق نه
پوهیږی۔
لَاٰیٰتٍ ، هرکله چه فائدے دَ دے جدا جدا اقسام دی دَ دے وجے
نه جمع یٔے ذکر کړله او فائدے دَ دے په عقل سره معلومیږی
فکر (چه عمیق عقل چلول دی) ته حاجت نه لری دَ دے وجے
نه یعقلون یٔے ذکر کړو۔

يَذَّكَّرُوْنَ ⑬ وَهُوَ الَّذِيْ سَخَّرَ

چه نصيحت قبلوي . او الله تعالىٰ داسې ذات دے چه تابع كړې دے

الْبَحْرَ لِتَاْكُلُوْا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا

درياب (د حكم خپل) د دے د پاره چه خورئ د هغه نه غوښه تازه

وَّتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا

او را اوباسئ د هغے نه . كالى چه اغوندئ هغه

وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيْهِ

او وينے ته كشتئ . او په شلوونكے په هغے كښ

وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ

او د پاره د دے چه طلب كړے فضل د هغه او د دے د پاره

تَشْكُرُوْنَ ⑭ وَاَلْقٰى فِى الْاَرْضِ

چه شكر اوكړئ . او اچولے دي په زمكه كښ

سـ۱۳:- دا لسم دليل دے او داعطف دے په الليل باندے تير شوي آيت كښ او تفصيل د دے آيت په سورة فاطر آيت سـ۲۷ سـ۲۸ كښ دے هركله چه اختلاف د رنګونو امر واحد دے د دے وجے نه لَاٰيَةً، ئے مفرد ذكر كړو۔

سـ۱۴:- دا يوولسم دليل دے هركله چه مخكښ آيتونو كښ د اوچے منافع ئے ذكر كړل نو پدے آيت كښ منافع د بحر ذكر كوى او هغه ئے پنځه ذكر كړى دي او تسخير د بحر دا دے چه الله تعالىٰ انسان لره قدرت وركړے دے چه خوك په بحر كښ لامبو وهي او خوك پكښ په كشتو كښ ګرځي او فائدے ترينه اخلي، مراد د حِلْيَةً، نه لؤلؤ او مرجان دي لكه سورة رحمٰن آيت سـ۲۲ كښ چه ذكر دي دا رنګ په درياب كښ كنجكے صدفونه وغيره شته چه د هغے نه اميلونه جوړيږي۔

رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِكُمْ وَأَنْهٰرًا

پاخه غرونه د پاره د دے چه او خوزېږی کړه ده په تاسو پاندے او سیندونه

وَّسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۵﴾

او لارے د دے د پاره چه تاسو هدایت او موئ۔

وَعَلٰمٰتٍ ۭ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُوْنَ ﴿۱۶﴾

(او پیدا کړېدی) نخښې او په ستوري سره دوی لار مومي۔

أَفَمَنْ يَّخْلُقُ كَمَنْ لَّا يَخْلُقُ ۭ

آیا نو هغه څوک چه پیدائش کوی پشان د هغه کس دے چه نشی پیدائش کولے،

ﷺ:۔ دا دولسم دلیل دے اَنْ تَمِيْدَ بِكُمْ، مراد د دینه دادے چه دا زمکه کږه وږه او نه خوزېږی ځکه چه بیا د هغې د پاسه ژوند نه تیرېږی ځکه چه میدپه لغت د عربو کښ کږه وږه حرکت ته وائی په دے کښ لفظ مخافةً په نیز د بصریانو او لفظ د لئلا په نیز د کوفیانو پټ مراد دے۔
او لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ، د سُبُل سره تعلق لري یا د درے واړو سره متعلق دے ځکه چه د غرونو او نهرونو په سبب هم ملکونه معلومیږی او دا سے ذکر په سورة انبیاء ۳۱ آیت کښ هم شته۔
۱۶:۔ په دے کښ دیارلسم دلیل دے مراد د علامات نه هغه نخښې دی چه په لاره کښ موجود وی او د هغې په سبب مقصد ته رسیدل کیږی یا مراد د علامات نه غرونه دی یعنی غرونه یې د مختلفو ملکونو د پاره نخښې گرځولی دی، او د نجم نه مراد ستورے د جدی او فرقدین دے او په هغه سره قطب معلومیږی او بیا د هغې په سبب سره قبله معلومیږی۔

أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿١٧﴾ وَإِن تَعُدُّوا

آیا نو نصیحت نه اخلئ تاسو. او که شمار شروع کړئ تاسو

نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا ۗ إِنَّ اللَّهَ

د نعمتونو د الله تعالیٰ نو نشئ راګیرولئ په شمار کښ، یقیناً الله تعالیٰ

لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٨﴾ وَاللَّهُ يَعْلَمُ

بخښنه کوونکے رحم کوونکے دے. او الله تعالیٰ پیژنی

مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿١٩﴾

هغه څه چه پټوئ تاسو او هغه څه چه ښکاره کوئ.

وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ

او هغه کسان چه دوی تربنه حاجتونه غواړی د الله تعالیٰ نه سوا

س۱۷:- دا تفریع ده په تیر شوی دلیلونو باندے او زجر دے مشرکینو ته چه دوی خالق د مخلوق پشان په بندګئ کښ ګرځولے دے.

س۱۸:- په دیکښ تنبیه ده پدے خبره چه نعمتونه صرف دغه نه دی چه کوم تیر شول بلکه بے شماره دی نو دیکښ هم اشاره ده دلیل د توحید ته او هرکله چه نعمتونه بے شماره دی نو انسان د ټولو شکر نشی پوره کولے نو وے فرمائیل چه إِنَّ اللَّهَ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ.

س۱۹:- په دیکښ رد د شرک فی العلم دے او اشاره ده دیته که شکر د نعمتونو یا ناشکری څوک پټه کوی یا ښکاره نو الله تعالیٰ په هغے عالم دے.

لَا يَخْلُقُوْنَ شَيْئًا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ ⑳

نشي پيدا كولے هيڅ شے او دوى پيدا كړے شوي دي.

اَمْوَاتٌ غَيْرُ اَحْيَآءٍ ۚ وَمَا يَشْعُرُوْنَ

دا مړه دي نه دي ژوندي (په دنياوي ژوند سره) او دوى نه پوهيږي

اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ㉑ ع اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ

چه كله به دوباره ژوندي كيږي. حقدار د بندګۍ ستاسو الله

ع ٢ ١٢ ٨

س٢٠:- په دے كښ رد دے په شرك في الدعاء يا ندا ئے سره د رد شرك في التصرف نه.

س٢١:- په دېكښ هم رد د شرك في التصرف او في العلم دے يعني معبودان د دے مشركانو د الله تعالىٰ نه سوا مړه دي او مړے علم او تصرف نه لري نو ولے دوى د هغوى نه مدد غواړي.

فائده:- دا آيت خاص په بتانو پورے نه دے ځكه چه الفاظ د دے آيت عام دى بلكه دا شپږ صفتونه (چه ع١ خلق نشي كولے ع٢ مخلوق دي. ع٣ مړه دي. ع٤ ژوند ترينه زائل شويدے. ع٥ شعور نه لري. ع٦ بعث بعد الموت ئے شته) نو دا صفات حقيقتًا د پاره ذوي العقول دي او بتانو ته مجازًا شامليږي نو هر كله چه حقيقت موجود وي نو مجاز معنىٰ ته هيڅ حاجت نشته او د دے وجه نه تفسير روح المعاني كښ ذكر كړي دي چه دا آيت شامل دے ملائكو او انبياؤ او اولياؤ ته بيا كه څوك اعتراض اوكړي چه ملائكو او عيسىٰ عليه السلام چه مشركان هغوى لره عبادت كوي هغوى خو مړه نه دي. نو اول جواب دا دے چه اموات معنى دا ده چه مرګ پرے راتلے شي او د غير احياء معنىٰ دا ده چه هميشه به ژوندي وي نو كه في الحال وي او كه مړه نه وي دواړو ته شامل شو. دويم جواب دا دے چه دا آيت خاص دے په هغه معبودانو پورے چه هغوى مړه شوي دي او پس د مرګ نه مشركان د هغوى بندګي كوي او

وَّاحِدٌ ۚ فَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

یو دے نو هغه کسان چه نه لري ایمان

بِالْاٰخِرَةِ قُلُوْبُهُمْ مُّنْكِرَةٌ وَّهُمْ

په آخرت باندے زړونه دَ دوی بدالګنړي توحید لره او دوی

مُّسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۲۲﴾ لَا جَرَمَ اَنَّ اللّٰهَ

لویئ کوونکي دي۔ خامخا الله تعالی

يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ؕ

عالم دے په هغه څه چه دوی پټوي او هغه چه دوی ښکاره کوي ۔

اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ ﴿۲۳﴾ وَاِذَا

یقینًا الله تعالی نه خوښوي لویئ کوونکي ۔ او کوم وخت

حاجتونه ترینه غواړي لکه قبر پرست خلق شو نو معنیٰ دا شوه چه ستاسو معبودان اے قبر پرستو مړه دي او دَ غَيْرُ اَحْيَآءٍ، معنیٰ دا ده چه دنیاوي ژوند ورله نشته او هر چه برزخي ژوند دے نو ثابت دے په نورو دلیلونو سره دا رنګ اخروي ژوند په یقیني دلیلونو سره ثابت دے نو په غیر دَ احیاء کښې نفي دَ دنیوي ژوند ده ۔ دَ دینه استدلال کیدیشي چه اولیاء شهداء وغیره چه مړه شوي دي نو دَ هغوي دَ پاره حیات دنیویه نشته بلکه حیات برزخیه دے ۔

۲۲:۔ په دے آیت کښې تفریع دَ دعوے دَ توحید ده په مخکښې دلیلونو باندے او بیا زجر دے منکرینو ته او انکار دَ زړه صفت دے او استکبار په قول او عمل سره ښکاره کیږي ۔

۲۳:۔ په دے آیت کښې زجر دے په استکبار دَ توحید نه ۔
مَا يُسِرُّوْنَ ، اشاره ده انکار دَ زړونو ته ۔ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ، اشاره ده

قِيْلَ لَهُمْ مَّاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ ۙ

چه دوی ته او وئیلے شی چه څه نازل کړی دی رب ستاسو

قَالُوْٓا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۲۴﴾ لِيَحْمِلُوْٓا

دوی وائی دروغ قیصی ګډ ډ زړو خلقو ۔ د دے د پاره چه پورته کړی به دوی

اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ۙ

بیټی خپل پوره د قیامت په ورځ

وَمِنْ اَوْزَارِ الَّذِيْنَ يُضِلُّوْنَهُمْ

او د بیټو د هغه چا نه چه بے لارے کوی دوی هغوی لره

استکبار ظاهری ته او فرق په مینځ د تکبر او استکبار کښ دا دے چه تکبر کله مستعملیږی په کبریا د حق کښ چه هغه له حق د لویئ وی او په دے معنیٰ متکبر د الله تعالیٰ په اسماء حسنیٰ کښ دے او کله مستعملیږی په لویئ کولو کښ بغیر د حق نه او هر چه استکبار دے نو همیشه مستعملیږی په ناحق لویئ کولو کښ نو د دے صفت په کولو کښ ډیر قباحت دے په نسبت د متکبر سره ۔

۲۴ : په دے آیت کښ زجر دے په انکار د قرآن سره چه بیانونکے د توحید دے مطلب دا دے چه کله مشرکانو ته اُوئیلے شی چه په دے قرآن کښ واقعات او دلیلونه د توحید شته نو د دے ضرور منل پکار دی نو دوی وائی چه دا هسے دروغ قصّے د مخکنو خلقو دی ۔ دا د الله تعالیٰ کتاب نه دے لکه چه نن زمانه کښ باطل پرستو ته اُوئیل شی قرآن کریم کښ رد د هر قسم شرک دے نو دوی جواب کوی چه دا آیتونه د مخکنو په باره کښ دی زمونږ د پاره نه دی ۔

بِغَيۡرِ عِلۡمٍ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوۡنَ ﴿۲۵﴾

بغیر د دلیل نه ، خبر شئ بد دے هغه چه دوی یې پورته کوی۔

قَدۡ مَكَرَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ

یقیناً مکرونه کړی دی مخکنو خلقو (د حق په مقابله کښ)

فَاَتَى اللّٰهُ بُنۡيَانَهُمۡ مِّنَ الۡقَوَاعِدِ

نو راغے الله تعالیٰ بنیادونو د دوی ته د ویخونو نه

فَخَرَّ عَلَيۡهِمُ السَّقۡفُ مِنۡ فَوۡقِهِمۡ

نو راپریوتلو په دوی باندے چتونه د پاسه د دوی نه

وَاَتٰٮهُمُ الۡعَذَابُ مِنۡ حَيۡثُ

او راغے دوی ته عذاب د داسے ځائے نه

لَا يَشۡعُرُوۡنَ ﴿۲۶﴾ ثُمَّ يَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ

چه دوی نه پوهیدل۔ بیا د قیامت په ورځ

۲۵۔ په دے آیت کښ تخویف دے۔ حاصل یې دا دے چه هر کله دوی د قرآن تکذیب اوکړو نو د دوی تابعدارو هم د دوی تقلید اوکړو او گمراه شول نو دوی هم گمراه دی او هم گمراه کوونکی دی ځکه په دوی باندے په ورځ د قیامت کښ دوه پیټی د گناهونو به وی لکه په سورة عنکبوت ۱۳ کښ چه ذکر دی۔

گامِلَةً، دا د دے وجے نه ذکر کړو چه د کافرانو هیڅ گناه نه معاف کیږی نو چه خومره گناهونه یې کړی دی هغه ټول به د دوی په شا باندے باروی۔

۲۶۔ په دے آیت کښ تخویف دنیوی دے په مثال د سابقینو سره او دا آیت یا خو په ظاهر باندے حمل دے او په باره د نمرود او د قوم د هغه یا ثمودیان او قوم لوط

يُخْزِيهِمْ وَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَاءِيَ

رسوا به کړي دوی لره الله تعالیٰ او او به وائي کوم ځائے دي شریکان زما

الَّذِينَ كُنتُمْ تُشَاقُّونَ فِيهِمْ ط

هغه چه تاسو به چودئ دَ دوی په باره کښ

قَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ إِنَّ الْخِزْيَ

او به وائي هغه کسان چه علم ورکړے شوے یقیناً رسوائي

الْيَوْمَ وَالسُّوءَ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿۲۷﴾

نن او بدي توله په کافرانو باندے ده۔

کښ دے یا دا آیت عام دے او په طریقه دَ تاویل او دَ تمثیل سره دے لکه چه چا آبادي جوړه کړي وي او بیخ ئے مضبوط وي لیکن ناګاه دا چت په دوی باندے راپریوځي او بنیا دونه ئے وران شي، نو دا رنګ مشرکانو کافرانو دَ حق په مقابله کښ مضبوط تدبیرونه جوړ کړي وؤ دَ دے دَ پاره چه حق لره ختم کړي لیکن الله تعالیٰ دَ دوی تدبیرونه برباد کړل او دوی ئے هلاک کړل۔

ف۲۷:۔ په دے آیت کښ تخویف اخروي دے۔ او دَ دوی دَ شرمنده کولو دَ پاره به په ورځ دَ قیامت کښ دَ دوی نه به تپوس کیدے شي چه څه شول ستاسو هغه معبودان چه تاسو به دَ هغوی دَ پاره جګړے کولے دَ مؤحدینو سره او س هغوی خپل مدد دَ پاره راوبلئ نو دوی به چپ شي او مؤحدین به دَ دوی په دے شرمندګئ او په عذاب باندے خوشحالي اوکړي تُشَاقُّونَ، شاقه نه مراد جګړے کول دي دَ مؤحدینو سره په باره دَ معبودانِ باطله کښ۔

فائده: سوال:۔ سورة انعام ف۲۲ کښ او دا رنګ سورة حٰمٓ سجده ف۴۷ او سورة حٰمٓ مؤمن ف۷۴ کښ ذکر شوي دي

الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي
هغه کسان دي چه ساه اخلي دَ دوي نه ملائک په داسې حال کښې چه ظلم به کوي
أَنفُسِهِمْ فَأَلْقَوُا السَّلَمَ
په ځان خپل بانديے (په شرک کولو سره) نو مخکښې به کړي دوي دروغ خبرے
مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوءٍ بَلَىٰ
چه مونږ خو نه وه کړے هيڅ قسم بدي ، ولے نه
إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٢٨﴾
يقيناً الله تعالىٰ پوهه دے په هغه کارونو چه دوي يې کوي .

چه دوي به انکار اوکړي او په دے سورت کښې معلوميږي چه دوي به چپ وي نو دا په ظاهر کښې تعارض دے ؟

جواب :- چه قيامت کښې مختلف اوقات دي بعضے وخت به دوي چپ وي او بعضے وخت کښې به انکار کوي او بعضے وخت کښې اقرار هم کوي .

أُوتُوا الْعِلْمَ ، مراد دَ دے نه موحدين دي ځکه علم په اصل کښې توحيد دے .

الْخِزْيَ ، شرمندګي په ښکاره کيدلو دَ نقصانانو دَ دوي .

السُّوءَ ، عذابونه مراد دي .

ف٢٨ :- په دے آيت کښې ذکر شويدے وخت دَ ځنکدن دَ مشرکانو چه په هغه وخت کښې به الله تعالىٰ ته منقاد شي او دَ شرک کولو نه به انکار اوکړي ليکن په داسے وخت کښې توبه نه قبليږي لکه سورة مؤمن ف٨٥ کښې چه ذکر دي .

فَأَلْقَوُا السَّلَمَ ، په جواب دَ هغه قول کښې چه اين شرکائي لکه په سورة انعام ف٢٢ او سورة مؤمن ف٧٤ کښې دي .

مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِن سُوءٍ ، مراد دَ دينه انکار دَ شرک نه دے

فَادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ

نو ورننوځئ دروازو دَ جهنم ته همیشه به یئ

فِيْهَا ؕ فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۲۹﴾

په هغې کښې ، نو ناکاره ځائے دے دَ لویئ کوونکو -

وَقِيْلَ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا مَاذَآ

او چه اُوئیلے شي هغه چا ته چه ځان یئے دَ شرک نه ساتلے دے څه شے

اَنْزَلَ رَبُّكُمْ ؕ قَالُوْا خَيْرًا ؕ

نازل کړیدلے رب ستا سو او به وائي (چه نازل کړیدلے) خیر لره ،

لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ

هغه چا لره چه توحید یئے ټینګ دے هغوی له په دے

یا مراد دا دے چه دا شرک کول بد عمل نه دے دا خو دَ بزرګانو احترام دے لکه چه اوس مشرکان وائي - یعني دوی شرک ته بد عمل نه وائي -

۲۹: - په دے آیت کښې تخویف اخروي دے یعني آخرت کښې به دوی ته اُوئیلے شي چه جهنم ته داخل شئ یا به دا سے وئیلے کیږي په وخت دَ مرګ کښې او ارواح دَ دوی به جهنم ته داخل کړي نو دا دلیل شو په عذاب قبر باندے - او ابن کثیر وئیلے دي چه دا منکرین به دَ وخت دَ مرګ نه په ارواحو سره جهنم ته داخل شي او اجسامو دَ دوی ته به سختي رسیږي په قبرونو کښې او په ورځ دَ قیامت به ارواح په جسمونو کښې داخل کړے شي او جهنم کښې به دَ همیشوالي دَ پاره داخل کړیشي -

الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ؕ وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ

دنیا کښې ښه ژوند دے ، او کور د روستنے

خَيْرٌ ؕ وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۳۰﴾

ډیر غوره دے ، او ښهٔ دے کور د متقیانو .

جَنّٰتُ عَدْنٍ يَّدْخُلُوْنَهَا تَجْرِيْ

چه هغه جنتونه د همیشوالی دی داخلیږی به هغے ته بهیږی به

ښ۳۰ :- په دے آیت کښې ذکر شوے دے قول د مؤحدینو په باره د قرآن کښې چه دا د خیر او د فائدو کتاب دے او دا په مقابله د قول د مشرکانو کښې دے چه مخکښې تیر شو . بیا په دے آیت کښې بشارت دنیوی او اخروی دے .

اَحْسَنُوْا ، او احسان نه مراد عقیده د توحید ده او هغے عقیدے ته دعوت کول دی . او د حَسَنَةٌ ، نه په دنیا کښې نصرت او فتح مراد ده.

فائده ۱ :- مخکښې آیت کښې اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ، په رفع سره ذکر کړے دے او په دے آیت کښې خَيْرًا ، په نصب سره ذکر کړے دے وجه د فرق دا ده چه مشرکانو ایمان نه لرو په نزول د قرآن نو د هغوی د قول مطلب دا وو چه دا محمد صلی الله علیه وسلم چه څه وائی نو دا اساطیر دی نازل کړے شوے نه دی او مؤمنانو ایمان لرلو په نزول باندے نو د هغوی د کلام تقدیر دا دے چه اَنْزَلَ خَيْرًا .

فائده ۲ :- تیر شوی آیت کښې مثوی ذکر وو او په دے آیت کښې دار ذکر شوے دے وجه د فرق دا ده چه مثواه هغه مقام ته وائی چه بغیر د رضا او د اختیار نه حاصل شی او هغه جهنم دے او دار هغه مقام ته وائی چه په رضا او په اختیار سره حاصلیږی او هغه جنت دے .

مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ لَهُمۡ فِيۡهَا

لاندې دَ هغې نه ولې دَدوی دَپاره په هغې کښې

مَا يَشَآءُوۡنَ ؕ كَذٰلِكَ يَجۡزِى اللّٰهُ

هغه څه دي چه غواړی دوی ، دغه شان بدله ورکوی الله تعالی

الۡمُتَّقِيۡنَ ۝ الَّذِيۡنَ تَتَوَفّٰٮهُمُ

متقیانو لره . دا هغه کسان دی چه ساه اخلی دَدوی نه

الۡمَلٰۤـئِكَةُ طَيِّبِيۡنَ ۙ يَقُوۡلُوۡنَ سَلٰمٌ

ملائک داسې حال کښې چه پاک وی دَ شرک نه وائی په ملائک سلامونه دی

عَلَيۡكُمُ ۙ ادۡخُلُوا الۡجَـنَّةَ بِمَا

په تاسو باندې ورننوځئ جنت ته په سبب

كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ۝ هَلۡ يَنۡظُرُوۡنَ

دَ عملونو ستاسو . انتظار نه کوی دوی

ﻫ۳۱ :- په دې آیت کښې تفصیلی بشارت دے په پنځوحالاتو سره په ﻫ۳ کښې دَ اتقوا نه مؤحدین مراد دی او په دې کښې دَ متقین نه مراد مؤحدین کاملین ریعنی چه دَ نورو ګناهونو نه ځان ساتی ) مراد دی -

ﻫ۳۲ :- په دې آیت کښې ذکر دَ حال دَ ځنکدن دَ مؤحدینو دے په مقابل دَ ظالمانو کښې او ادۡخُلُوا الۡجَنَّةَ ، خطاب دے ارواحوته په وخت دَ ځنکدن کښې یا به خطاب وی مؤمنانوته په ورځ دَ قیامت کښې -

سَلٰمٌ عَلَيۡكُمۡ ، مراد دَ دینه بشارت دے په سلامتیا سره دَهر مصیبت نه -

بِمَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ، مراد دَ عمل نه توحید او ایمان دے چه سبب دَ دخولِ جنت دے او رحم دَ الله تعالی سبب دے

إِلَّآ أَن تَأۡتِيَهُمُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ أَوۡ يَأۡتِيَ

مګر دا دے چه راشي دوی ته ملائک (د مرګ) یا چه راشي

أَمۡرُ رَبِّكَۚ كَذَٰلِكَ فَعَلَ ٱلَّذِينَ

حکم د رب ستا ، دغه شان کار کړے وو هغه چا چه

مِن قَبۡلِهِمۡۚ وَمَا ظَلَمَهُمُ ٱللَّهُ

د دوی نه پخوا وو ، او ظلم نه دے کړے الله تعالیٰ

وَلَٰكِن كَانُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ يَظۡلِمُونَ ﴿٣٣﴾

په دوی باندے لیکن دوی په خپلو ځانونو باندے ظلم کولے.

فَأَصَابَهُمۡ سَيِّـَٔاتُ مَا عَمِلُواْ وَحَاقَ

نو اورسیدے دوی ته ناکاره سزاګانے د عملونو د دوی او راګیر کړیدی

د پاره د ایمان او توحید حاصلولو.

۳۳:- په دے آیت کښ تخویف دنیوی دے منکرینو ته او مراد د آیت دا دے چه دوی ایمان نه راوړی په شان د متقیانو بلکه کله چه ملائک راشي د پاره د قبض د ارواحو د دوی یا بل عذاب راشي د الله تعالیٰ د طرف نه نو دوی به هغه وخت ایمان راوړی لیکن هغه ایمان قبول نه دے نو دا ایمان نه راوړل دوی تر دغه وخته پورے ذ دینه ئے تعبیر اوکړو په انتظار سره تشبیهًا ورنه دوی خو انتظار نه دے کړے.

وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ ، اشاره ده سبب د عذاب د دوی ته چه د دوی عقیده او عملونه د ظلم دی.

بِهِمْ مَّا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ ﴿٣٤﴾

دوی لره هغه عذاب چه دوی وربورے ټوقے کولے۔

وَقَالَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا لَوْ شَآءَ

او وائی هغه کسان چه شرک ئې کړیدے که غوښتلے

اللّٰهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ

الله تعالیٰ بندګی به نه وے کړے مونږ دَ الله تعالیٰ نه سوا دَ

شَیْءٍ نَّحْنُ وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا

هیڅ څیز مونږه او نه مشرانو زمونږ او نه به حرام کړے مونږ

مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَیْءٍ ؕ كَذٰلِكَ

سوا (دَ اذن) دَ الله تعالیٰ نه څه څیز، دغه شان

فَعَلَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ

کار کړے وو هغه کسانو چه دوی نه مخکښ وو نو نشته

عَلَى الرُّسُلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿٣٥﴾

په رسولانو باندے مګر رسول دی صفا (ښکاره)۔

۳۴:۔ په دے کښ ذکر دَ عذاب دے دَ پاره دَ تخویف او دا رنګ په سورة زمر ۳۵ کښ دی۔

سَيِّاٰتُ، نه مراد ناکاره سزاګانے دی چه هغه د بر قسمه دی نو ځکه ئې جمع ذکر کړه۔

مَا كَانُوْا بِهٖ يَسْتَهْزِءُوْنَ، هغه عذاب چه دوی وربورے استهزاء کوله یا مَا مصدریه دے او عقاب لفظ پټ دے سزا دَ استهزاء دَ دوی۔

۳۵:۔ خلاصه ۔ دَ دے آیت نه دویم باب دے تر ۴۲ پورے۔ په دېکښ اولاً ذکر کړے دے دلیل دَ مشرکانو او په هغے

# وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ أُمَّةٍ

| او | یقیناً | لیږلے دے مونږ | په | هر | امت کښې |
|---|---|---|---|---|---|

بانډے زجر دے او دا دعوٰی دَ سورت ده بیا دلیل نقلی اجمالی دَ ټولو انبیاؤ نه ئے ذکر کړ یدے دَپاره دَ جواب دَ دلیل دَ مشرکانو په آیت ۳۶ کښې بیا تسلی ده په ۳۷ کښې، بیا زجر دے په انکار دَ بعث او اثبات دَ بعث بعد الموت دے په ۳۸، ۳۹، ۴۰ کښې ـ بیا ترغیب دے هجرت ته دَپاره دَ بچ کیدلو دَ ظلم دَ ظالمانو نه په آیت ۴۱، ۴۲ کښې ـ بیا اثبات دَرسالت دے سره دَجواب دَ سوال دَ منکرینو نه په آیت ۴۳، ۴۴ کښې. بیا تخویف دنیوی دے په آیت ۴۵، ۴۶، ۴۷ کښې.

تفسیر:۔ په دے آیت کښې ذکر دے استدلال دَ مشرکانو دَپاره دَ جواز دَ شرک په مشیت دَ الله تعالٰی سره او دا مشیت کونیه دے چه تقدیر دے او دا قول دَ دوی بنا وُ په دے چه دوی هم مشیت کونیه دَ الله تعالٰی منلو یا دا قول دَ دوی الزام دے په مؤمنانو بانډے چه اے مؤمنانو تاسو وایئ چه تقدیر حق دے نو زمونږ شرک هم په تقدیر الٰهی کښې مقرر دے نو مونږ په دیکښې گنهگار نه یو ـ او هر کله چه په دوی کښې دوه قسمه شرک وُ یو شرک په عبادت کښې او بل شرک په تحریم او تحلیل کښې نو په دے آیت کښې ئے دواړه ذکر کړه او هر کله چه دا دلیل په حقیقت کښې تکذیب او استهزاء وه نو ځکه ئے دَ هغے تعبیر کړیدے په سورة انعام کښې په (کذب) سره او په دے سورت کښې په فعل سره تعبیر دے ځکه دلته مفصل دَ دوی استدلال دے لیکن دلته هم دَ فعل نه مراد استهزاء او تکذیب دے نو حاصل دا دے چه مشیت دوه قسمه دے یو مشیت کونیه او بل مشیت شرعیه ـ او افعال، اوصاف دَ بندګانو هم دوه قسمه دی یو کونیه چه په هغے کښې دَ انسان هیڅ اختیار نشته لکه پیدائش

رَّسُوۡلًا اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ وَاجۡتَنِبُوا

رسول (پیغمبر خبره) چه بندګي خاص کړئ د الله تعالیٰ او ځان اوساتئ

الطَّاغُوۡتَ ۚ فَمِنۡهُمۡ مَّنۡ هَدَى اللّٰهُ

د (بندګئ) د غیر الله نه ، نو بعضے د دوی هغه څوک دي چه الله تعالیٰ وَرَهدایت

وَمِنۡهُمۡ مَّنۡ حَقَّتۡ عَلَيۡهِ الضَّلٰلَةُ ؕ

کړے او بعضے هغه دي چه ېخه شوېده په هغه باندے ګمراهي ،

فَسِيۡرُوۡا فِى الۡاَرۡضِ فَانْظُرُوۡا كَيۡفَ

نو اوګرځئ په زمکه کښ نو اوګورئ (د عبرت په نظر) چه څنګه شو

كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُكَذِّبِيۡنَ ﴿۳۶﴾ اِنۡ تَحۡرِصۡ

انجام د تکذیب کوونکو ۔ که ته حرص کوے

دَ انسان تور ، سپین ، دنګ ، لنډ وغیره نو په یکښ دَ هغه انسان په مشیت کونیه دَ الله تعالیٰ (چه تقدیر دے) استدلال کولے شي او دویم قسم افعال شرعیه دي چه په هغے سره دے مکلف دے او انسان لره په هغے کښ مشیت او اختیار مِنۡ وجه شته لکه په سورۃ کهف کښ فَمَنۡ شَآءَ فَلۡيُؤۡمِنۡ وَّمَنۡ شَآءَ فَلۡيَكۡفُرۡ ، نو په دے کښ انسان په مشیت کونیه سره استدلال نشي کولے مګر هغه وخت چه څه عمل ترینه صادر شي دَ مخالفت په شکل کښ او بیا په توبه سره معاف شي نو که څوک په دَه باندے بیا اعتراض اوکړي او دے حواله ورکوي په تقدیر او مشیت کونیه باندے نو دا جائز دي لکه احتجاج دَ آدم علیه السلام په مقابله دَ موسیٰ علیه السلام کښ دَ دے قبیلے دے ۔

۳۶ :۔ په دے آیت کښ دلیل نقلي اجمالي دے دَ ټولو انبیاؤ نه په اثبات دَ توحید او دَ رد دَ شرک په اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ ، کښ توحید دے او وَاجۡتَنِبُوا الطَّاغُوۡتَ ، کښ رد دَ شرک دے

عَلٰی هُدٰهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا یَهْدِیْ

په هدایت دَ دوی باندے نو یقینًا الله تعالیٰ هدایت نه کوی

مَنْ یُّضِلُّ وَ مَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِیْنَ ۝۳۷

هغه چاته چه بے لارے کړی او نشته دوی لره هیڅ څوک مددګاران ۔

وَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَیْمَانِهِمْ

او قسمونه کړیدی دوی په الله تعالیٰ باندے پاخه قسمونه

لَا یَبْعَثُ اللّٰهُ مَنْ یَّمُوْتُ ؕ بَلٰی

چه ژوندی به نه کړی الله تعالیٰ هغه څوک چه مړه شویدی ، ولے نه

وَعْدًا عَلَیْهِ حَقًّا وَّ لٰکِنَّ اَکْثَرَ

دا وعده ده په الله تعالیٰ باندے یقینی لیکن زیات

النَّاسِ لَا یَعْلَمُوْنَ ۝۳۸ لِیُبَیِّنَ

خلق نه پوهیږی (او دے دَ پاره ژوندی کوی) چه بیان کړی

او په دیکښ جواب دے دَ تیر شوی استدلال دَ مشرکانو حاصل دَ جواب دا دے که الله تعالیٰ رضا وی ستا سو په شرک باندے نو انبیاء به ئے نه رالیږل په مخالفت دَ شرک کښ یعنی مشیت شرعیه جدا دے دَ مشیت کونیه نه او مشرکینو ته به ئے عذاب نه ورکوو۔

۳۷ :۔ په دے آیت کښ تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته چه هدایت دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دے ستا په ذمه صرف تبلیغ دے یعنی دَ مخکنو رسولانو په وخت کښ هدایت او ضلال په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ وو نو اوس هم دے۔

۳۸ :۔ په دے آیت کښ زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت روستو دَ رد شرک دَ دوی نه نو دا اشاره ده چه شرک او انکار دَ بعث نه دَ اصولو دَ کفر نه دی او وَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ ،کښ دلیل دے چه مشرکانو به کله کله قسم کوو په الله تعالیٰ سره۔

لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ

دوی ته هغه خبرے چه دوی اختلاف کوی په هغې کښ او چه پوهه شي

الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ﴿۳۹﴾

کافران خلق چه دوی به دروغ وئیل .

إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ

یقیناً وینا زموږ د یو څیز په باره کښ کله چه موږ اوغواړو هغه دا ده

أَنْ نَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ﴿۴۰﴾

چه اووایو هغه ته اوشه نو هغه اوشي .

ع ۵ / ۱۱

جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ، په دیکښ اشاره ده چه مشرکانو به په الله تعالی باندے قسم کول مضبوط قسم کړلو او تعجب دے د نن زمانے په جاهلانو چه قسم کول په اولیاؤ باندے مضبوط قسم کڼړی او په الله تعالی باندے قسم کولو باندے هیڅ پرواه نه کوی .

۳۹ :- دا آیت متعلق دے په کلام مقدر پورے په تیر شوی آیت کښ تقدیر ئے داسے دے بلی لیبعثنهم لیبین او په دے آیت کښ ئے د بعث دوه فائدے ذکر کړی دی اوله فائده بیان د امورو اختلافیه په طریقه د فیصلے کولو سره او هغه د دے سورت په ۹۲ کښ ذکر کیږی او تعبیر د فیصلے په سورة بقره ۱۱۳ او سورة النساء ۱۴۱ او نورو آیاتونو کښ ذکر دے -او دویمه فائده یقین کول د کافرانو دی په کذب خپل باندے په هغه اقوالو کښ چه په دے سورت کښ ذکر شول ۲۴ ، ۳۵ ، ۲۷ کښ او نور اقوال هم د دے کافرانو.

۴۰ :- په دے آیت کښ اثبات د بعث دے په بیان د قدرت تکوینی د الله تعالی سره او دا رنګ سورة یٰس ۸۲ کښ ذکر دے او دلته ئے قول سره تعبیر اوکړو په مقابله د اقوالو (کاذبه) د کافرانو کښ.

وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِى اللّٰهِ مِنْۢ

او هغه کسان چه هجرت ئې کړیدے د الله تعالىٰ د پاره روستو

بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ

د دینه چه په دوی باندے ظلم کړیشو یدے خامخا ځائے په ورکوو دوی ته

فِى الدُّنْيَا حَسَنَةً ؕ وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ

په دنیا کښ خائسته ، او خامخا ثواب د آخرت

اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۱﴾

خو ډیر لوے دے که چرے دوی پوهیدے .

الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۴۲﴾

دوی هغه دی چه صبر ئې کړیدے او په خپل رب باندے توکل کوی .

۴۱ :- په دے آیت کښ ترغیب دے هجرت ته او بشارت مهاجرینو ته روستو د ذکر د ظلم د ظالمانو نه یعنی د ظالمانو د ظلمونو نه د بچ کیدلو د پاره چه څوک هجرت کوی . او دا د دے ربط دے د ما قبل سره او مراد د حَسَنَةً نه رزق حلال او نیک ذکر دے په روستو خلقو کښ او نصرت د الله تعالىٰ دے .

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ، په دیکښ تعریض دے په هجرت نه کوؤنکو باندے .

۴۲ :- په دے آیت کښ دوه عملونه ذکر دی صبر او توکل چه دا لازم دی د هجرت سره د صبر نه مراد صبر کول د مؤحد دی په اذیتونو د مشرکانو باندے او دوی روستو د اذیتونو نه په سبب د توکل سره هجرت کوی .

فائده :- په دے آیتونو کښ اشاره ده هجرت د حبش ته چه بعضے صحابه کرامو رضی الله عنهم د مکے نه اول هجرت کړے وو ملک د حبش ته نو په حبشو کښ د باد شاه (اصحمه) ملګرتیا ورته ملاؤ شوه

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا

او نه دي لیږلي موږ ستا نه مخکښې (مخکښې) مګر نارینه

نُّوْحِيْٓ اِلَيْهِمْ فَسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ

چه وحي کوله موږ هغوي ته نو تپوس اوکړئ دَ علم والو نه

اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۴۳﴾ بِالْبَيِّنٰتِ

که تاسو نه پوهیږئ. (لیږلي وُ موږ) په ښکاره دلیلونو (معجزاتو)

او دَ هغې نه روستو په مدینه کښې او بیا روستو په نورو ملکونو باندې غلبه حاصله شوه.

۴۳:- دے آیت کښې اثبات دَ صداقت دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دے او رد دے په دریمه عقیده دَ کافرانو چه انکار دَ رسالت دے او جواب دَ شبهے دَ منکرینو دَ رسالت دے چه منکرینو شبهه کوله چه رسول دَ الله بشر نشي کیدے نو دے آیت کښې ئې جواب اوکړو او اَهْلَ الذِّكْرِ نه مراد علماء دَ وحي الهي دي چه هغوي عقیده لري په هغې باندے او عمل پرے کوي نو دَ دے وجے نه اهل العلم ئې نه دي وئیلي بلکه اهل الذکر ئې وئیلي دي او تفسیر قرطبي کښې دَ دے آیت په تفسیر کښې لیکلي دي چه ټول انبیاء بشر دي او داسے ذکر دے په سورة انبیاء آیت ۷ کښې هم.

فائده :- په دے آیت کښې دلیل دے په دے خبره چه په وخت دَ نیشتوالي دَ علم کښې دَ اهل علم نه تپوس کول فرض دي ځکه چه په کوم شي عمل فرض دے نو دَ هغې علم هم فرض دے لیکن دَ دے آیت نه استدلال کول په اثبات دَ تقلید جامد او تقلید شخصي صحیح او جائز نه دے په څو وجوهو سره.

اوله وجه:- دَ الذکر نه مراد وحي ده یعني دَ هغه چا نه تپوس کوئ چه په جواب کښې دلیل دَ وحي ذکر کوي (قرآن او سنت) او دَ دلیل تابعداري نه تقلید نشي وئیلے کیدے.

وَالزُّبُرِ ۗ وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الذِّكْرَ

او دَ نصیحت په خبرو ، او نازل کړیدے مونږ تاته دا قرآن دَ دَ دپاره

لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيْهِمْ

چه وضاحت اوکړے خلقو ته دَ هغه حکمونو چه نازل کړیشوی دی دوی ته

وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۴۴﴾ اَفَاَمِنَ

او دَ پاره دَدے چه دوی فکر اوکړی ۔ آیا نو په امن دی

دویمه وجه :- دَ عدم علم دوه درجے دی اول عدم علم دَ حکم دویم عدم علم دَ دلیل دَ دواړو تپوسونه کول لازم دی نو چه دلیل ورته معلوم شی نو دا خو تقلید نه دے ۔
دریمه وجه :- الله تعالیٰ اهل الذکر عام ذکر کړیدی او مقلد حنفی خود شافعی عالم نه تپوس نه کوی بلکه مونځ کول هم وربسے جائز نه ګنړی ۔
څلورمه وجه :- علی طریق التنزل دا چه صحیح ده پدے آیت کښ اثبات دَ تقلید دے دَ پاره دَ اُمی لیکن هرکله چه روستو وخت کښ دغه شخص اُمی ته چه صحیح حدیث دَ مخکښ قول نه خلاف معلوم شی نو دے په دغه قول پریږدی او په حدیث به عمل کوی او دا ښے شامی دَ علامه بیری نه نقل کړی دی په جلد ۱ ص ۴۶ کښ نو معلومه شوه چه مخکښ تقلید دَ دے شخص تقلید مباح وؤ اوکله سره دَ علم دَ مخالفت دَ صحیح حدیث نه اول قول (مذهب خپل) نه پریږدی نو دا تقلید مذموم او حرام دے ۔
۴۴ :- دا آیت هم متعلق دے په مخکښ آیت پورے او تشجیع ده رسول ته په تبلیغ دَ قرآن وروستنه دَ اثبات دَ صداقت دَ هغه نه ۔
بِالْبَيِّنٰتِ ، متعلق دے په ارسلنا هم مقدار پورے او یا متعلق دے په لا تعلمون پورے او په دے آیت کښ یو ذمه واری

اَلَّذِیْنَ مَکَرُوا السَّیِّاٰتِ اَنْ یَّخْسِفَ
هغه خلق چه مکرونه جوړ وی دَ ناکاره کارونو دَپاره چه خکته به بوځی

اللّٰهُ بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ یَاْتِیَهُمُ
الله تعالیٰ دوی په زمکه کښ یا به راشی دوی ته

الْعَذَابُ مِنْ حَیْثُ لَا یَشْعُرُوْنَ ﴿۴۵﴾
عذاب دَ داسے ځائے نه چه دوی به نه پوهیږی.

دَ نبی صلی الله علیه وسلم ذکر شوے دے چه هغه تشریح کوونکے دَ قرآن دی. او دویمه ذمه واری په امت کښ دَ اهل فکر اجتهاد والا ذکر کړے شوے ده.

په لِتُبَیِّنَ، کښ دلیل دے په دے خبره چه سنت دَ نبی شرح او تفسیر دَ قرآن دے او نبی صلی الله علیه وسلم دَ دے دَپاره رالیږلے شوے دے او په یکښ صریح رد دے په منکرینو دَ حدیث باندے.

فائده :- په دے آیت کښ اشاره ده دلیلونو دَ شرعے ته اول دلیل قرآن دے چه په لفظ دَ الذِّکْرَ، کښ مراد دے او دویم دلیل سنت دَ نبی صلی الله علیه وسلم دے چه په لِتُبَیِّنَ، کښ هغے ته اشاره ده او دریم دلیل اجتهاد دَ مجتهدینو دے که په اتفاق سره وی نو هغے ته اجماع وائی او که قول دَ بعضو وی نو هغے ته قیاس دَ مجتهد وائی - لیکن اجماع دلیل او حجت مثبته دے په دے شرط چه سند دَ هغے دَ قرآن او سنت نه موجود وی او دَ نص صریح نه مخالف نه وی او قیاس خو حجت دَ اثبات دَپاره نه دے بلکه صرف ښکاره کوونکے دے نو په حقیقت کښ حجت شرعیه نه دے.

۴۵، ۴۶، ۴۷ :- هرکله چه تیر شوو آیتونو کښ دَ مشرکانو مخالفتونه او شبهے په رسول او په قرآن او په توحید باندے او په قیامت باندے ذکر شول نو اوس دَ هغوی دپاره تخویف

أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُمْ

یا په اونیسي دوی لره په وخت د سفر کولو نو دوی نشي

بِمُعْجِزِينَ ﴿٤٦﴾ أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ

عاجز کولے الله تعالی لره۔ یا په اونیسي دوی لره په

تَخَوُّفٍ ۚ فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ

حالت د ویرولو (سمول)، نو یقینًا ستاسو رب ډیر شفقت کوونکے

رَحِيمٌ ﴿٤٧﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا

رحم کوونکے دے۔ آیا دوی نه گوری هغه څیزونه چه

خَلَقَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ يَتَفَيَّؤُا

پیدا کړیدی الله تعالی د هریو څیز نه گرځی

دنیوی په دریے آیتونو کښ ذکر کوی۔ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ، نه مراد دغه مخالفتونه او شبهات دی په اسلام باندے کوم چه مخکښ تیر شول۔ او تَقَلُّبِهِمْ، نه مراد سفرونه کول د پاره د دنیا دی او د داسے سفر پریشانی ضروروی د دے وجے نه په صیغه د تفعل سره ذکر کړه چه دلالت کوی په تکلف او مشقت باندے او دا وصف د کافرانو دے لکه په سورة العمران بـ۱۹۶ کښ دی۔ یا په بسترو باندے اوړیدل راوړیدل مراد دی۔

تَخَوُّفٍ، نه مراد نقصان د مالونو او د فصلونو او څاروو دے یا ترے مراد عذاب د تادی دے یا ویره د دشمن ده۔

ظِلٰلُهٗ عَنِ الْيَمِيْنِ وَالشَّمَآئِلِ

سوري دَ هغې دَ ښي طرف ته او کيڼ (ګس) طرفونو ته

سُجَّدًا لِّلّٰهِ وَهُمْ دٰخِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

سجده کوونکي الله تعالٰی ته او دوی عاجز وي۔

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا

او خاص الله تعالٰی لره سجده کوي هغه څه چه په آسمانونو کښې دي او هغه څه چه

فِي الْاَرْضِ مِنْ دَآبَّةٍ وَّالْمَلٰٓئِكَةُ

په زمکه کښې دي هر قسم جاندار او ملائک

۴۸:- خلاصه :- دَ دے ځائے نه دریم باب دے تر آیت ۶۹ پورے په دے باب کښې دریے عقلی دلیلونه دی چه په هغې کښې انقیاد دَ عالم دَ پاره دَ الله تعالٰی ذکر دے آیت ۴۸، ۵۲، ۵۳ کښې او دلیل وحی دے په ۵۱ کښې بیا زجر دے په شرک سره په ۵۴، ۵۵ کښې بیا زجر دے په نذر دَ غیر الله سره په ۵۶ کښې بیا زجر دے په شرک بالملائکه سره دَ ۵۷ نه تر ۶۰ پورے۔ بیا تخویف دنیوی دے په ۶۱ کښې بیا زجر بالشرک دے په ۶۲ کښې۔ بیا زجر او تخویف دے په اتباع شیطان سره ۶۳ کښې بیا ترغیب دے قرآن ته په ۶۴ کښې۔

تفسیر :- په دے آیت کښې سجده دَ سورو ذکر کړے شوے ده او مراد دَ سجدے دَ سورو نه ګرځیدل دَ سورو او کمیدل او زیاتیدل دَ سورو په حکم دَ الله تعالٰی سره دی په دے آیت يَمِيْن ئے مفرد وئیلے دے او شَمَآئِلِ ئے جمع وئیلے دی ځکه چه شروع کیدل دَ سوری دَ یمین نه دی په یو حال کښې بیا شمال طرف ته ګرځی لږ لږ په مختلفو حالاتو کښې دویمه نکته هم دا ده چه په عرب کښې هر کله مخ کړی مشرق طرف ته تو یمین طرف ته لږ وطنونه دی او شمال طرف ته ډیر ملکونه دی۔ (والله اعلم)۔

وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۴۹﴾ يَخَافُوْنَ
او دوی نه کوی لوئی (دَ حکم دَ الله تعالیٰ نه) - یریږی دوی
رَبَّهُمْ مِنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ
دَ رب خپل نه چه اوچت دے دَ دوی نه او کوی دوی
مَا يُؤْمَرُوْنَ ﴿۵۰﴾ وَقَالَ اللّٰهُ لَا تَتَّخِذُوْٓا
هغه چه دوی ته ئے حکم کیدیشی - او فرمائیلے دی الله تعالیٰ مه جوړوئ حقدار

مِنْ شَيْءٍ، نه مراد اجسام دی چه دَ هغے دَ پاره سوری وی او دا رنګ په سورة رعد ۱۵ کښ هم ذکر دی.

۴۹:- دا آیت هم دَ مخکنی دَ لاندے داخل دے یعنی په دیکښ تعمیم دے روستو دَ تخصیص نه.

مِنْ دَآبَّةٍ، ظاهر دا ده چه دا شامل دے اصل دَ آسمانونو او زمکو دواړو ته په دلیل دَ سورة شوری ۲۹ سره او وَالْمَلٰٓئِكَةُ تخصیص بعد التعمیم دے دَ پاره دَ رد دَ مشرکین بالملائکة باندے او دَآبَّة په معنیٰ دَ ساه والا ده نو ملائکه ته هم ویلے شی او دویمه توجیه دا ده چه په آیت کښ لف نشر غیر مرتب دے یعنی من دابة بیان دَ ما فی الارض دے او والملائکه بیان دَ ما فی السموات دے.

وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ، دا دلیل دے چه ابلیس دَ ملائکو نه وو ځکه چه هغه استکبار کړے وو.

۵۰:- په دے آیت کښ سره دَ مخکښ آیت نه دَ ملائکو درے صفات ذکر دی اول عجز دَ هغوی دویم خوف دَ هغوی دریم انقیاد دَ امر دَ الله تعالیٰ.

يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِنْ فَوْقِهِمْ، فوق په صفت دَ الله تعالیٰ کښ دے په اعتبار دَ معنیٰ سره محکم دے او په اعتبار دَ کیفیت سره متشابه دے تاویل کول په غلبه سره او دا رنګ تشبیه او تمثیل دَ دے دَ صفت دَ مخلوق سره دواړه غلط دی.

إِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ۚ إِنَّمَا هُوَ إِلٰهٌ

دَ بندګئ دوه يقيناً هغه حقدار دَ بندګئ

وَّاحِدٌ ۚ فَإِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ ﴿٥١﴾ وَلَهٗ

يو دے ، نو خاص ما نه يره کوئ . او خاص دَ هغه په اختيار کښ دي

مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَهُ

هغه څيزونه چه په آسمانونو او زمکه کښ دي او خاص الله تعالیٰ لره

الدِّيْنُ وَاصِبًا ۚ اَفَغَيْرَ اللّٰهِ تَتَّقُوْنَ ﴿٥٢﴾

تابعداري لازم ده ، آيا نو سوا دَ الله تعالیٰ نه يريږئ تاسو .

ـــ۵۱ :- په دے آيت کښ دليل وحي دے دَ پاره دَ رد دَ شرک او معطوف دے په معنیٰ دَ ماقبل باندے په طريقه دَ دليل سره يعني الله تعالیٰ فرمائيلي دي چه سجده زما نه سوا بل چا نه مه کوئ ځکه سجده حق دَ اله دے او الله تعالیٰ فرمائيلي دي چه دويم اله نشته ـ او هر کله چه مشرکان اکثر اوقات کښ دَ ويرے په وخت کښ خپلو الهوؤ (معبودانو) ته سجدے کوي دَ دے وجے نه او فرمائيل فَإِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ ، او اثنين ئے دَ تاکيد دَ پاره دَ دے وجے نه ذکر کړو چه نفي دَ تعدد مراد ده نفي دَ اصلي الوهيت نه ده مراد ځکه چه يو اله خو ضرور شته دے ـ

ـــ۵۲ :- دا دليل عقلي دے او لام په لَهُ کښ دَ پاره دَ اختيار او دَ پاره دَ انقياد دے ـ

الدِّيْنُ ـ په معنیٰ دَ عبادت دے يعني متصرف خاص الله تعالیٰ دے نو معبود هم خاص هغه دے ـ

وَاصِبًا ، لازم او هميشه او خالص ته وئيلے شي ـ

تَتَّقُوْنَ ، تقوىٰ په اصل کښ توحيد دَ عبادت ته وئيلے شي نو دلته ئے دَ الدين (چه په معنیٰ دَ عبادت دے) دَ مناسبت دَ وجے نه تقوىٰ ذکر کړيده ـ

وَمَا بِكُمْ مِّنْ نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ثُمَّ إِذَا

او هغه چه په تاسو باندے څه نعمت دے نو الله تعالیٰ د طرف نه دے بیا هم چه کله

مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَإِلَيْهِ تَجْـَٔرُوْنَ ﴿۵۳﴾

اورسیږي تاسو ته مصیبت نو هغه ته خاص فریاد کوئ تاسو ۔

ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنْكُمْ إِذَا فَرِيْقٌ

بیا چه کله لرے کړی مصیبت ستاسو نه یوه ډله

مِّنْكُمْ بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُوْنَ ﴿۵۴﴾ لِيَكْفُرُوْا

ستاسو نه د خپل رب سره شریکان جوړوی، رعاقبت دا شي چه ناشکری اوکړي دوي

بِمَآ اٰتَيْنٰهُمْ ؕ فَتَمَتَّعُوْا ۫ فَسَوْفَ

د هغه نعمت چه مونږ دوی ته ورکړیدی، نو مزے واخلئ نو ژر دے

۵۳ :۔ په دے کښ هم دلیل عقلی دے ما موصوله دے او مِنْ د پاره د استغراق دے نو هر نعمت ظاهری او باطنی او بدنی او مالی، صحت، عافیت، مالداری وغیره ته شامل دے۔ فَإِلَيْهِ تَجْـَٔرُوْنَ، یعنی عقیده د مشرک هم په وخت د تکلیف کښ دا ده چه مصیبتونه لرے کوونکے د الله تعالیٰ نه سوا بل څوک نشته۔ جوار، آواز د سخې یا آواز د کټری ( د سپی بچے ) دے په وخت د سختئ کښ مراد تر ینه چغے وهل په ډیر عاجزئ سره دی۔

۵۴، ۵۵ :۔ دا آیتونه هم په زجر کښ داخل دی حاصل دا دے چه په وخت د تکلیف کښ الله تعالیٰ ته عاجزی کوی او هر کله چه الله تعالیٰ د دوی عاجزی قبوله کړی او تکلیف ترینه لرے کړی نو دوی شرک کوی یعنی بیا نسبت د لرے کولو د تکلیف د الله تعالیٰ نه سوا بل چا ته کوی۔

فَتَمَتَّعُوْا، کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ د دے مشرکانو دُعاء د دے

تَعْلَمُوْنَ ﴿۵۵﴾ وَيَجْعَلُوْنَ لِمَا لَا يَعْلَمُوْنَ

چه پوهه به شئ تاسو ۔ او مقرروي دوی هغه چا لره چه هغوی پوهه نه لري

نَصِيْبًا مِّمَّا رَزَقْنٰهُمْ ؕ تَاللّٰهِ

برخه د هغه مال نه چه مونږ دوی لره ورکړے دے ۔ قسم دے په الله تعالیٰ

لَتُسْئَلُنَّ عَمَّا كُنْتُمْ تَفْتَرُوْنَ ﴿۵۶﴾

خامخا تپوس به اوکړے شي ستاسو نه د هغه څه چه دروغ جوړوئ تاسو ۔

وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ الْبَنٰتِ سُبْحٰنَهٗ ۙ

او مقرر کوي دوی الله تعالیٰ لره لونړه پاک دے الله تعالیٰ

وجے نه قبلوی چه دا دنیا متاع ده او متاع کافرانو ته هم ملاویږی دا رنګ په سورة روم آیت ۳۳ او ۳۴ کښ هم دی ۔

۵۵ ۔ په دے آیت کښ زجر دے په نذر کولو د پاره د غیر الله ، او دا عطف دے په یشرکون باندے او د هغے تفسیر دے او دا رنګ په سورة انعام آیت ۱۳۶ کښ هم دی ۔

كُنْتُمْ تَفْتَرُوْنَ ، د دینه مراد قصے مشرکانه او مسائل شرکیه دی ۔

لَا يَعْلَمُوْنَ ، ضمیر راجع دے مَا ته چه هغه په معنیٰ د معبودانو دے یعنی معبودان هیڅ علم د دوی د نذرونو نه لری ۔ یا ضمیر راجع دے عابدانو ته یعنی دوی د معبودانو د حال نه خبر نه لری چه هغوی خو عاجز دی او څه نه اوری او نه وینی ۔

مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ ، مراد د دینه د خوراک او څښاک څیزونه او څاروی او غلے کپړے وغیره د غیر الله په نوم باندے نذر کول دی ۔

وَلَهُمْ مَّا يَشْتَهُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَاِذَا بُشِّرَ

او دوی دے دوی لره هغه څه چه دوی غواړی ۔ او کله چه زیرے ورکړیشی

اَحَدُهُمْ بِالْاُنْثٰى ظَلَّ وَجْهُهٗ

یوتن دَ دوی ته په لور سره شی مخ دَ هغه

مُسْوَدًّا وَّهُوَ كَظِيْمٌ ﴿٥٨﴾ يَتَوَارٰى

تور او هغه دَ غم نه ډک وی ۔ ځان پټوی

مِنَ الْقَوْمِ مِنْ سُوْٓءِ مَا بُشِّرَ

دَ قوم نه دَ وجے دَ ناکاره زیری نه چه دهٔ ته ورکړے

بِهٖ ؕ اَيُمْسِكُهٗ عَلٰى هُوْنٍ اَمْ

شوے ، (سوچ کوی) چه آیا اوساتی هغه (لور) په ذلت سره او که

يَدُسُّهٗ فِى التُّرَابِ ؕ اَلَا سَآءَ

ژوندے یې اومنډی په خاورو کښ ، خبر شئ ناکاره دهٔ

٥٧ :- دا هم په ما قبل باندے عطف دے او بل قسم شرک باندے رد کوی نو په دے آیت کښ زجر دے په مشرکین باندے چه هغوی ملائک بنات دَ الله تعالیٰ ګڼړی او دا په مشرکین عرب کښ بعض قبیلے وے او هم دارنګ ذکر دی په سورة صٰفٰت ١٤٩ کښ او سورة زخرف ١٦ کښ او سورة طور ٣٩ کښ۔

٥٨ :- په دیکښ رد دے په رسم دَ جاهلیت چه هغوی به دَ لور او خور په پیدا کیدو بد ګڼړل۔

او کَظِیْمٌ ، هغه غمژن ته وائی چه دَ غم دَ وجے نه خبرے نشی کولے۔

بُشِّرَ ، بشارت اول خبر دَ خوشحالئ ته وئیلے شی او دلته په معنیٰ دَ صرف اول خبر سره دے ځکه دوی په دے خبر باندے خوشحالی نه کوله۔

مَا يَحْكُمُوْنَ ﴿۵۹﴾ لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

هغه فیصله چه دوی یئے کوی. هغه چالره چه ایمان نه لری

بِالْاٰخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ ۚ وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ

په آخرت باندے ناکاره حال دے ، او الله تعالیٰ لره خاص دے صفت

الْاَعْلٰى ؕ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۶۰﴾

اوچت ، او هغه زورآور او حکمتونو والا دے.

ع ۷ ۱۳

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللّٰهُ النَّاسَ

او که نیولے الله تعالیٰ خلقو لره

بِظُلْمِهِمْ مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِنْ دَآبَّةٍ

په سبب د ظلم د هغوی نه به وے پرېخود ے په دے زمکه باندے هیڅ ژوندے سړ

وَّلٰكِنْ يُّؤَخِّرُهُمْ اِلٰٓى اَجَلٍ

لیکن روستو کوی الله تعالیٰ دوی لره تر نیټے مقرر پورے ،

س۵۹ :- په دے آیت کښ طریقه د جاهلیت ذکر ده چه کله به خبر شول په پیدائش د لور باندے نو پټیدل به د وجے د شرم نه او فکر به یئے کوو چه آیا اوساتی یئے سره د ذلت نه او که ژوندۍ یئے دفن کړی.

اَيُمْسِكُهٗ ، د دے نه مخکښ تقدیر دے په عبارت کښ یعنی یتفکر او ه ضمیر د مذکر یئے حرف د ما بُشِّرَ ته راجع کړیدی.

عَلٰى هُوْنٍ ، معنیٰ دا چه لور په ذلت سره ساتی نارینه. یعنی په هغے باندے غوره کوی زنانه له میراث نه ورکوی.

س۶۰ :- په دے آیت کښ زجر دے مشرکین یالملائکه ته. مَثَلُ السَّوْءِ ، ناکاره صفت او حال چه مراد د هغے نه جهل او کفر وغیره دے او الْمَثَلُ الْاَعْلٰى ، مراد تری نه اوچت صفات دی که صفات ثبوتی وی لکه خالق او رازق ، عالم او قادر یا صفات سلبیه وی چه شریک یئے نشته ولد یئے نشته مثل یئے نشته

مُّسَمًّى فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ لَا

مقرر بوي نو كله چه راشي نيته دَدوي نه به

يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿۶۱﴾

روستو كيدے شي يو ساعت او نه به مخكښ كيدے شي۔

وَيَجْعَلُوْنَ لِلّٰهِ مَا يَكْرَهُوْنَ

مقرر كوي دوي الله تعالى لره هغه څه چه دوي (ځان له) بد گڼي

ف۶۱ :- په دے آيت كښ تخويف دنيوي دے او جواب دَ سوال دے هر كله چه ظلمونه دَ مشركانو ذكر شول نو سوال اوشو چه په دوي باندے عذابونه ولے نه راځي دَ دے ظلمونو په سبب سره نو په دے آيت كښ دَ هغے جواب دے - او مطلب دَ آيت دا دے كه الله تعالى مخلوقات نيولے په گناهونو دَ گناه گارو سره او معافي او تاخير ئے نه كولے نو ياراونه او بوټي به ئے بند كړے وے نو زنده سر به مړه وے او دا رنگ په سورة فاطر ۴۵ كښ ذكر دي۔

فَاِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ، دا سے په سورة اعراف ۳۴ او سورة يونس ۴۹ كښ تير شوي دي۔

فائده :- هر كله چه په سورة اعراف او په دے سورت كښ فاء په اذا باندے داخله كړه نو په جزاء باندے فا داخله نكړه دَ پاره دَ دے چه كلام كښ فصاحت كم نشي او سورة يونس كښ اوله فا نشته نو فاء ئے په جزاء باندے داخله كړله بيا هر كله چه په سورة يونس كښ صريح سوال دَ عذاب ذكر وؤ نو په جواب كښ فا ذكر نه كړه او په دے سورت كښ او سورة اعراف كښ سوال مذكور نه دے دَ دے وجے فا ذكر شويده. والله اعلم بحكمه۔

وَتَصِفُ اَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ اَنَّ لَهُمُ
او وائي ژبې دَ دوی دروغ چه یقینًا شته دوی لره

الْحُسْنٰی ؕ لَا جَرَمَ اَنَّ لَهُمُ النَّارَ
خوشحالي ، خامخا شته دوی لره صرف اور

وَاَنَّهُمْ مُّفْرَطُوْنَ ﴿٦٢﴾ تَاللّٰهِ لَقَدْ
او دوی به ورته مخکښ او غورځولے شي . قسم په الله تعالیٰ یقینًا

اَرْسَلْنَآ اِلٰٓی اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ
لیږلے دي مونږ ډیرو امتونو ته ستا نه مخکښ ( رسولان )

فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ
نو خائسته کړو هغوی ته شیطان ( زناکاره ) عملونه دَ هغوی

فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ
نو هغه دَ دوی ملګرے دے نن ورځ او دوی لره

٦٢ .- په دے کښ زجر دے په شرک باندے سره دَ دروغ دعوی کولو نه چه دوی لره اَلْحُسْنٰی ، ده یعنی په دنیا کښ خوشحالئ او په آخرت کښ ثواب او جنت دے.
مَا يَكْرَهُوْنَ ، نه مراد لونړه دي او شریک دي او دا دواړه عام خلق بد ګنړي.
مُفْرَطُوْنَ ، دَ فرط نه ماخوذ دے یعني مخکښ به لیږلے کیږي. لکه چه نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي ( انا فرطکم علی الحوض . واجعله لنا فرطا ) یا په جلتئ به ځئ اور ته یا هیر به کړے شي دا ټولے معانے جائز دي.

عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۶۳﴾ وَمَآ اَنْزَلْنَا
عذاب درد ناک دے - او نه دے نازل کړے مونږ
عَلَيْكَ الْكِتٰبَ اِلَّا لِتُبَيِّنَ
په تا باندے کتاب (قرآن) مګر د پاره د دے چه تشریح او کړے ته
لَهُمُ الَّذِي اخْتَلَفُوْا فِيْهِ
دوی ته د هغه خبرو چه دوی اختلاف کړیدلے په هغے کښ
وَهُدًى وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۶۴﴾
او هدایت او رحمت دے د پاره د هغه قوم چه ایمان لری -

۶۳ :- په دے آیت کښ تسلی ده رسول ته سره د زجر او تخویف ته منکرینو ته او سبب د ګمراهئ ذکر کړیدے یعنی دوی چه وائی چه زمونږ حسنیٰ ده سره د شرک نه نو وجه شیطان خائسته کړیده چه شرک او بدعات خو ښه کارونه دی او ثواب دے -
او د فَزَيَّنَ ، نسبت شیطان ته په اعتبار د وسوسو د هغه دے -
فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ ، د دے یو توجیه دا ده چه ضمیر د هم، امم ته راجع دے او الیوم نه مراد ژوند د دنیا دے یا ورځ د قیامت ده -
دویمه توجیه دا ده چه هُمْ ضمیر موجوده مشرکانو ته راجع دے یعنی دا شیطان لکه چه دوست وو د مخکنو خلقو نو نن زمانه کښ د موجوده مشرکانو هم دوست دے -
۶۴ :- هرکله چه تسلی رسول ته ذکر شوه مخکښ آیت کښ نو په دے آیت کښ تشجیع ده رسول الله ته په تبلیغ د قرآن سره -
الَّذِي اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ، نه مراد مسئله د توحید او د بعث بعد الموت وغیره ده - او دا آیت دلیل دے چه په قرآن کښ اختلافی مسئلے فیصله کیږی هرکله چه تشریح د اصولو د ایمان

وَاللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً
او الله تعالىٰ راوروله دى دَ برة طرف نه او په
فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ؕ
نو تازه كړيده په هغې سره زمكه روستو دَ اوچوالي دَ هغې نه،
اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ
يقيناً په دے كښ لوے دليل دے هغه قوم لره
يَّسْمَعُوْنَ ﴿۶۵﴾ وَاِنَّ لَكُمْ فِي الْاَنْعَامِ
چه آورى ۔ او يقيناً تاسو لره په څاروؤ كښ

خاص دہ په قرآن پورے نو دلته ئے ما او الا سره دَپاره دَحصر ذكر كړو او په ۴۴ كښ دَعامو احكامو شرح مراد وه چه هغه دَ تشريح دَ سنت نه روستو فكر كولو ته هم محتاج دى نو هلته ئے حصر نه دے ذكر كړے او تفكر يئے هم نه دے ذكر كړے.

۶۵:۔ خلاصه :۔ دَ دے آيت نه شُلورم باب دے تر ۸۳ پورے په دے باب كښ شپږ عقلى دليلونه دى چه په هغې كښ پيدائش دَ منافعو دَ اشياؤ ذكر دے يعنى خوراك او څښاك او بيبيانے او اولاد په ۶۵ كښ او په دَ باران او بوټى ذكر شوى دى او آيت ۶۶ كښ پئ ذكر شويدى او آيت ۶۷ كښ كبين ذكر شوے دے او آيت ۷۰ كښ خلق دَ نفوس ذكر شوے دے او آيت ۷۲ كښ خلق دَ بيبيانو او اولاد ذكر شويدے بيا بيان دَ مثال دے دَپاره دَ رد دَ شرك په ۷۱ كښ، بيا زجر دے په شرك فى العبادة په آيت ۷۳ كښ، بيا منع دَ امثالو شركيو نه په ۷۴ كښ، بيا دوه مثالونه دى دَ رد دَ شرك دَپاره ۷۵، ۷۶ كښ، بيا تخويف اخروى دے په ۷۷ كښ.

تفسير :۔ په دے آيت كښ ۔ يَسْمَعُوْنَ، ذكر كړے دے، په دے كښ اشاره ده چه په دے مقام كښ ليدل ضرورى نه دى

لَعِبْرَةً ؕ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِيْ بُطُوْنِهٖ

عبرت دے ، څکوؤ مونږ تاسو ته د هغې نه چه د دوی په خیټو کښ دی

مِنْ بَيْنِ فَرْثٍ وَّدَمٍ لَّبَنًا

د مینځ د غوشانو او د وینې نه پئ

خَالِصًا سَآئِغًا لِّلشّٰرِبِيْنَ ﴿۶۶﴾

صفا آسان تیریدونکی د پاره د څکونکو ۔

او ریدل هم کافی کیږی یعنی باران وریدل او بوټی او فصلونه توکیدل په هر ځائے کښ نه وی خو چه صرف واوری نو داکاف ده ۔

۶۶ :- دا دلیل عقلی دے په ذکر د نعمت د پیؤ سره او د بَيْنِ فَرْثٍ وَّدَمٍ ، مطلب دا دے چه کیاه وغیره د خوراک نه بعضے حصه لری ته لاړه شی او فرث (غوشیان) ترینه جوړ شی او بعضے حصه وینه جوړه شی او د وینې نه پئ جوړیږی ۔ او دویم مطلب دا دے چه خوراک کله لری ته او رسیږی نو پوخ یئے کړی نو لاندے فرث مینځ کښ پئ او د پاسه وینه شی او د کبد په ذریعه وینه په رګونو کښ لاړه شی او پئ غولانځے ته لاړ شی او فرث په لری کښ پاتے شی ۔

فائده :- پدے آیت کښ بُطُوْنِهٖ ، ضمیر مذکر راوړے دے او په سورة مؤمنون ۲۱ کښ ضمیر مؤنث راوړے دے نو دلته کښ په تاویل د کل واحد سره دے او په سورة مؤمنون کښ په اعتبار د ظاهری جمع سره دے بیا د دے فرق کولو یو حکمت دا معلومیږی چه په دے سورت کښ صرف یو فائده د څاروی یئے ذکر کړیده او په سورة مؤمنون کښ نورے فائدے هم ذکر کړی دی نو دلته د فائدے د یو والی د وجے نه اکتفاء اوشوه په ضمیر مفرد باندے او په سورة مؤمنون کښ د کثرت د فائدو د وجے لحاظ د جمع اوکړیشو ۔

وَمِنْ ثَمَرٰتِ النَّخِيْلِ وَالْاَعْنَابِ
او دَ میوؤ دَ کجورو او انگورو نه

تَتَّخِذُوْنَ مِنْهُ سَكَرًا وَّرِزْقًا
جوړوئ تاسو دَ هغې نه سرکه او خوراک

حَسَنًا ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً
خائسته ، يقيناً په دے کښې شته لوے دليل

لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۶۷﴾ وَاَوْحٰى رَبُّكَ
هغه قوم لره چه دَ عقل نه کار اخلي ۔ او په زړه کښې واچوله رب ستا

اِلَى النَّحْلِ اَنِ اتَّخِذِيْ مِنَ الْجِبَالِ
تورلے مچۍ ته چه جوړه کړه ته دَ غرونو نه

ف۶۷ :۔ په دے کښې دليل عقلي دے او مراد دَ سَكَرًا ، نه مسکر شراب دی ليکن دَ دے آيت دَ نزول په وخت کښې خمر نه وؤ حرام کړے شوے يا دا ده چه مراد دَ سکر نه عصير دے او سکر يې ورته په دے وجه ووئيلو دی چه دا عصير څه وخت پورے باقي پاتے شي نو کله تريه مسکر جوړ شي يا مراد دَ سکر نه سرکه ده ۔

وَّرِزْقًا حَسَنًا ،دَرزق حسن نه مراد ټول دَ خوراک څښکاک څيزونه دي چه جوړيږي دَ دے دواړو نه ، او نشه پکښې نه وي او دا آيت په اوله معنیٰ دَ سکر سره دليل دے چه خمر په انگورو پورے خاص نه دی بلکه دَ کجورو نه هم جوړيږي بلکه دَ نورو څيزونو نه هم جوړيږي (اوربشے، جوار وغيره) ليکن دَ دے دوؤ ذکر يې دَ دے وجے نه اوکړو چه په عربو کښې دا ډير وؤ او هر کله چه دَ دے څيزونو په جوړولو کښې عقل ته ضرورت دے او دا رنگ دَ سکر وغيره تعلق

بُيُوۡتًا وَّمِنَ الشَّجَرِ وَمِمَّا
کورونه او دَ اونو نه او دَ هغې نه

يَعۡرِشُوۡنَ ﴿٦٨﴾ ثُمَّ كُلِيۡ مِنۡ كُلِّ
چه داخلق يې آبادوي . بيا خوره ته دَ هر قسم

الثَّمَرٰتِ فَاسۡلُكِيۡ سُبُلَ رَبِّكِ
ميوو نه تو روانه شه په لارو دَ رب ستا

ذُلُلًا ؕ يَخۡرُجُ مِنۡۢ بُطُوۡنِهَا
چه آسانې دي تاته ، راوځي دَ خيټو دَ هغوي نه

شَرَابٌ مُّخۡتَلِفٌ اَلۡوَانُهٗ فِيۡهِ
دَ څښکلو څيز چه مختلف دي رنګونه دَ هغې په هغې کښې

شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ ؕ اِنَّ فِيۡ ذٰلِكَ
علاج دے خلقو لره ، او يقينًا په دے کښې

هم دَ عقل سره دے دَ دے وجې نه يَعۡقِلُوۡنَ ، يې په آخر کښې ذکر کړے دے .

۶۸ ، ۶۹ :- دا هم دليل عقلي دے په بيان دَ نعمت دَ ګبين سره او په اول آيت کښې ذکر دے دَ مکان جوړولو دَ نحل دَ غرونو او دَ ونو نه او هغه غير مملوک وي او دَ آبادو دَ خلقو نه او هغه مملوک وي او په دويم آيت کښې دَ جوړيدلو دَ عسل او راوتلو دَ عسل ذکر کړے دے - او لفظ دَ بطونها ظاهرًا دلالت کوي چه دا لاندے طرف نه راوځي ليکن صحيح دا ده چه دَ هغې دَ راوتلو طرف معلوم نه دے .

فِيۡهِ شِفَآءٌ لِّلنَّاسِ ، شفاء نکره ده په مقام دَ اثبات کښې ده نو عموم نه فائده کوي نو معلومه شوه چه په يکښې علاج دے دَ بعضې مرضونو ليکن بعضې سلفو صالحينو دَ حسن نيت په وجه

لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۶۹﴾ وَاللّٰهُ

لوے دلیل دے هغه قوم لره چه فکر کوي - او الله تعالی

خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفّٰىكُمْ وَمِنْكُمْ

پیدا کړي یئ تاسو بیا به مړه کوي تاسو او بعضے ستاسو نه

مَّنْ يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ

داسے دي چه اورسولے شي ناکاره عمر ته (عاقبت داشي) چه

لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْــًٔا ؕ

نه پوهیږي روستو د پوهے نه په هیڅ څیز باندے ،

اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ قَدِيْرٌ ﴿۷۰﴾ وَاللّٰهُ

یقیناً الله تعالی پوهه دے قدرت والا دے او الله تعالی

په عموم باندے حمل کړے دے او دا آیت دلیل دے په دے خبره چه علاج کول د مرضونو د پاره جائز دی او د توکل نه خلاف نه دی۔

وَاَوْحٰى رَبُّكَ اِلَى النَّحْلِ . دلته د ایحا نه مراد د مچئ په فطرت کښں دا علم پیدا کول دے۔

ذُلُلًا ، په دے کښں اشاره ده چه مچئ ته واپس خپل ځائے ته رسیدل آسان وی لار ترینه نه ورکیږي۔

شَرَابٌ ، په دیکښں اشاره ده چه عسل په طریقه د مشروب سره استعمالول ډیر فائده مند دی۔

يَتَفَكَّرُوْنَ ، په دیکښں اشاره ده چه د نحل د کبین نه فائدے اخستل او د هغے نه مختلف نسخے او دوا ګانے جوړول د فکر والو کار دے۔

نکته :- په دیکښں هم دلیل عقلی دے - اَرْذَلِ الْعُمُرِ ، د دینه مراد داسے حال دے چه د انسان قوتونه ناقص شي او عقل

فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ

غوره والے درکړے بعضے ستاسو نه په بعضو باندے

فِي الرِّزْقِ ۚ فَمَا الَّذِيْنَ فُضِّلُوْا

په خوراک کښې، نو نه دي هغه کسان چه غوره کړے شوي دي په مال ورکولو سره

بِرَآدِّيْ رِزْقِهِمْ عَلٰى مَا مَلَكَتْ

ورکوونکي د مال خپل نه مریان

اَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ ؕ

او وینځو خپلو ته نو هغوی د دوی سره برابر شي په اختیار

اَفَبِنِعْمَةِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ﴿۷۱﴾ وَاللّٰهُ

کښې)، آیا نو د نعمت د الله تعالیٰ نه دوی انکار کوي۔ او الله تعالیٰ

یې بے کاره شي او علم او پوهه ترینه زائله شي او دیته هرم هم وائي او حدیث صحیح کښې راغلی دی چه (اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْهَرَمِ اَوْ اُرَدُّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ) او بعضو مفسرینو وئیلي دي چه دا حال په مؤمن باندے نه راځي په دلیل د سورۃ التین ۵، ۶ او دا رنګ د سورۃ حج په ۵ کښې هم دي۔

اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ، په دیکښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ په علم کښې هیڅ نقصان نه راځي۔

قَدِيْرٌ، کښې اشاره ده چه خلق او وفات او بوډا کول دلیلونه د قدرت د الله تعالیٰ دي۔

۷۱ ۔ هرکله چه مخکښې آیاتونو کښې د رزق ځیزونه ذکر کړل نو اوس د رزق تفاوت ذکر کوي نو د دے آیت په اوله جمله کښې تصریح ده په دے خبره چه نظام د الله تعالیٰ په طریقه د تفاوت سره دے چه څوک یې غني جوړ کړے دے او څوک یې فقیر او څوک یې آزاد او څوک مریئ او دا رنګ په سورۃ

وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا

پیدا کړیدی تاسو لره ستاسو د جنس نه جوړې (بیبیانې)

وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ

او پیدا کړیدی تاسو لره ستاسو د بیبیانو نه

بَنِينَ وَحَفَدَةً وَّرَزَقَكُمْ مِّنَ

ځامن او نوسی او خوراک یې درکړے دے بنهٔ د

الطَّيِّبٰتِ ؕ أَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ

پاک څیزونو نه ، آیا نو په باطل (معبودانو) باندے دوی ایمان لری

وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ ﴿٧٢﴾

او د نعمت د الله تعالیٰ نه انکار کوی ۔

انعام ١٦٥ او سورة زخرف ٣٢ کښ دی او بیا پدے آیت کښ مثال دے د رد د شرک د پاره چه هغه ته شرک عطائی وائی د وجه د تفاوت د رزق نه او دا رنګ ذکر دے په سورة روم ٢٨ کښ ۔ حاصل د مثال دا دے چه هیچرے یو مالک په تاسو کښ خپل مملوک لره دومره مال نه دے ورکړے چه د ځان سره یې په اختیار کښ برابر کړے وی نو څه رنګ وائی مشرکان چه الله تعالیٰ بعضے بندګانو لره (چه هغه د الله تعالیٰ مملوک دی ملائک او انبیاء او اولیاء دی) دومره اختیار ورکړے دے چه د ځان سره یې په تصرف کښ برابر کړے وی او هغوی هم د خلقو حاجت روائی او مشکل کشائی کوی د الله تعالیٰ په شان او دا د الله تعالیٰ د نعمتونو نه انکار دے او پدے مثال کښ اشاره ده رد د شرک عطائی ته ۔

٧٢ :۔ په دے کښ هم دلیل عقلی دے په بیان د نعمت د ازواجو او اولاد سره ۔

وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا
او بندګي کوي دوي سوا دَ الله تعالٰی نه دَهغه چاچه
لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ
نشي ورکولے دوي ته روزي دَ آسمانونو نه.
وَالْاَرْضِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿۷۳﴾
او دَ زمکے نه هيڅ قسم او نه بلې وس رسي -

مِنْ اَنْفُسِكُمْ، معنیٰ دا ده چه ستاسو دَ جنس نه او په دیکښې اشاره ده دے خبرے ته چه نکاح دَ انسان دَ پیریانو سره نشي کیدے ځکه چه دَ جنس مخالفت دے هاں په دیکښې یو قول دَ جواز شته دے۔

وَحَفَدَةً، مراد دَ دینه نوسی او خدمتګاران دی ځکه چه حفد په اصل کښې خدمت ته وئیلے کیږي او په لفظ دَ لَكُمْ کښې اشاره ده دیته چه اولاد به په نسب کښې دَ پلار تابع وي -

اَفَبِالْبَاطِلِ، مراد دَ دینه معبودان باطله دي چه مشرکان په هغوي باندے عقیده لري چه شیخ او ځامن او مالونه مونږ لره زمونږ معبودانو راکړي دي او الله تعالیٰ ته نسبت نه کوي۔ سټے۔ پدے آیت کښې زجر دے په شرک فی العبادت او په شرک فی التصرف باندے او دا تفسیر دے دَ تیر شوي آیت چه اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ، یعنی په باطل باندے دَ یقین کولو نخښه دا ده چه دَ هغوي بندګي کوي، طوافونه، نذرونه دَ قبرونو کول او نور افعال شرکیه -

لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ، یعنی باران ورول او دَ زمکے نه بوټي او فصلونه راویستل دَ ځان دَ پاره اختیار نه لري -

وَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ، دَ بل چا دَ پاره هم وس نه لري یا دا چه اوس هم اختیار نه لري او آئینده دَ پاره هم امید نشته -

فَلَا تَضْرِبُوا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ ؕ

نو مه بیانوئ الله تعالیٰ لره مثالونه ،

اِنَّ اللّٰهَ یَعْلَمُ وَ اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۷۴﴾

یقیناً الله تعالیٰ پوهه لري او تاسو پوهه نه لرئ.

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوْكًا

بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال بنده مریی

سك :- په دے آیت کښ رد دے په هغه ټولو مشرکانو او کافرانو چه تشبیه دَ الله تعالیٰ ورکوی دَ مخلوق سره مثلاً وائی چه مخلوق ته بغیر دَ وسیلے نه رسیدل نشی کیدے او دَ مخلوق دَپاره سفارش کوونکے پکار دے چه هغه محبوب یا دوست وی دَپاره دَ مشفوع الیه ، نو دا رنګ الله تعالیٰ ته بغیر دَ وسیلے نه رسیدل نشی کیدے او نیکان بندګان شفیع ګرځوی، او دا رنګ په دے آیت کښ رد دے په مجسموؤ او مشبهو باندے چه دَ الله تعالیٰ دَ صفتونو تشبیه ورکوی دَ مخلوق سره او هغه له جسم ثابتوی او دا رنګ په سورة شوریٰ ۱۱ او سورة اخلاص ۴ کښ دی۔

اِنَّ اللّٰهَ یَعْلَمُ وَ اَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ، دا علت دَ ماقبل دے یعنی دَ الله تعالیٰ قیاس په مخلوق باندے نشی کیدے مخلوق په هرڅه نه پوهیږی .(دَ محتاج په حاجت او حالت باندے علم نلري) دَ دے وجے نه هغه وسیلے ته محتاج دے او الله تعالیٰ په هر څه باندے علم لري ، دا رنګ الله تعالیٰ په خپل شان او صفتونو باندے عالم دے که دَ ځان دَپاره مثال ذکر کوی نو صحیح دے لیکن مخلوق خو دَ الله تعالیٰ په شان او په صفاتو باندے پوره علم نه لري نو هغه مثال دَ الله تعالیٰ نشی پیش کولے۔

لَا يَقْدِرُ عَلٰى شَىْءٍ وَّمَنْ رَّزَقْنٰهُ

وس نه لري په هيڅ څيز باندے او هغه څوک چه رزق ورکړيدے مونږ

مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ

دَ خپل طرف نه رزق ښائسته نو هغه خرچ کوي

مِنْهُ سِرًّا وَّجَهْرًا ۭ هَلْ يَسْتَوٗنَ ۭ

دَ هغے نه پټ او ښكاره، آيا دوي برابر كيدے شي،

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ۭ بَلْ اَكْثَرُهُمْ

ټول صفتونه دَ الوهيت دَ يو الله تعالى دي بلكه زياتے خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ۝ وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا

پوهه نه لري ۔ او بيان كړيدے الله تعالى مثال

ف۷۵ :- په دے آيت كښ مثال دے دَ پاره دَ رد په هغه چا چه الله تعالى دَ مخلوق سره برابروي او اشاره ده دينه چه تاسو الله تعالى لره دَ خپل ځان نه مثالونه مه پيش كوئ بلكه دَ الله تعالى مثال بيا نولو ته غوږ كيږدئ حاصل دَ دے مثال دا دے لكه چه يو مريئے وي چه په هيڅ څيز باندے وس نه لري قدرت او تصرف ئے نشته بغير دَ اجازت دَ مولى خپل نه او بل شخص آزاد وي چه هغه ته حلال او فراخ مال وركړے شوے وي او هغه دَ هغے نه په خپل اختيار سره خرچ كوي نو دا دواړه برابر نه دي په هيڅ اعتبار سره يعني مالک او مملوک او مريئے او مولى برابر نه دي نو څه رنګ مشركان برابر كنړي الله تعالى لره (هغه الله چه مالک او متصرف دے) دَ هغه چا سره چه مملوک دَ الله دے او اختيار مستقل ورسره نشته كه ملائك دي او كه انسانان دي او كه پير بابان دي۔

مَمْلُوْكًا، دا ئے دَ دے وجے نه ذكر كړو چه عبد خو په اصل

رَّجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ لَا
دَ دوو سړو یو دَ هغوی نه چاړا دے
يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَّهُوَ كَلٌّ
وس نه لري په هیڅ څیز باندے او هغه بوج وي
عَلَىٰ مَوْلَاهُ أَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ
په مالک خپل باندے کوم خوا ته چه توجه ورکوي
لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ هَلْ يَسْتَوِي هُوَ
نو نشي راوړے هیڅ خیر، آیا برابر دے هغه
وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَهُوَ
او هغه څوک چه حکم کوي په انصاف سره او هغه وي
عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٧٦﴾ وَلِلَّهِ
په لار نیغه باندے۔ او خاص الله تعالیٰ لره

١٠ ع ٦ ١٦

کښ هر بنده نه وتلے شي که آزاد وي او که مریئے وي۔
هَلْ يَسْتَوُونَ، هر کله چه په دے صفت سره مریان او مولاګان ډیر دي نو جمع یې ذکر کړله۔
اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ، دا تفریع ده په وضاحت دَ دے مثال باندے او اشاره ده چه ټول صفتونه دَ الوهیت دَ یو الله تعالیٰ دَ پاره دي نو دَ هغه سره هیڅ مخلوق شریک او مشابه نشي کیدے۔
ملک :- دا بل مثال دے دَ پاره دَ رد په مشرکینو، تفصیل دَ دے مثال دا دے لکه څنګه چه یو تن چاړا وي او خبرے نشي کولے په هیڅ څیز باندے یې وس نه رسیږي یعنی لاس خپے یې کار نه کوي او دے بوج وي په خپل مالک باندے او مالک ده لره یو خوا بل خوا نقل کوي) او دا رنګ دَ ده سنبالول دَ مولیٰ په ذمه باندے وي او هر څه چه دَ هغه نه طلب کوي نو څه خیر او فائده نشي ورکولے ځکه

غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

(علم) دَ پټو څيزونو دَ آسمانونو او دَ زمکې دے

وَمَآ اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا كَلَمْحِ

او نه دَه معامله دَ قيامت دَ راتلو مګر پشان دَ رپ

الْبَصَرِ اَوْ هُوَ اَقْرَبُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

دَ سترګے دَه بلکه دَ دېنه هم ډيره تيز دے، يقيناً الله تعالىٰ

چه نه پوهيږى او نه آورى - او بل کس هغه دے چه امر او حکم کوى او په عدل او انصاف قدرت لرى او په لار باندے تلے شى داسے لار چه دے مقصد ته رسوى او تميز کولے شى - دَ نيغے لارے او دَ کږے لارے، تو دا دواړه هيڅکله برابر نشى کيدے تو دا مثال دے دَ معبودِ باطل او معبودِ حق يعنى معبودِ باطل چه بُت دے يا خاوند دَ قبر دے هغه هم خبرے نشى کولے او لاس او خپے يے کار نه شى کولے او په تغسيل او تکفين او نقل کولو کښ ژوندو ته محتاج دے او که څه حاجت تر يته طلب کولے شى نو هغه پوره کولے نشى ځکه چه نه آورى او نه پوهيږى - او معبودِ حق چه الله تعالىٰ دے امر کوونکے دے په انصاف او قادر دے په هر څه او پوره نظام چلوونکے دَ ټول عالم دے - فرق دَ اول مثال او دَ دويم دا دے چه اول په اعتبار دَ نفى دَ تصرف سره دے فقط او دويم په اعتبار دَ نفى دَ کلام او دَ علم او دَ سمع دے سره دَ نفى دَ قدرت نه -

فائده :- هر کله چه فرق دَ دويم قسم دَ جانبينو په باره کښ ډير واضح دے دَ دے وجے نه هَلْ يَسْتَوٗنَ يے په مينځ کښ ذکر کړو او په اول قسم کښ فرق لګ دے نو هلته يے هَلْ يَسْتَوٗنَ په آخر کښ ذکر کړے دے -

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٧٧﴾ وَاللّٰهُ

په هر څيز باندے قدرت لرى . او الله تعالىٰ

اَخْرَجَكُمْ مِّنْۢ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ

راويستلے يئ تاسو د خيټو د ميندو ستاسو نه

لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْئًا ۙ وَّجَعَلَ لَكُمُ

چه نه پوهيدلئ په هيڅ څيز او پيدا كړيدى تاسو لره

السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۙ

غوږونه او سترگے او زړونه

لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿٧٨﴾ اَلَمْ يَرَوْا

د دے دپاره چه تاسو شكر اوكړئ . آيا دوى نه گورى

ســ٧٧ :- په دے آيت كښ تتمه ده د مخكښ مثال او رد دے په شرك فى العلم او شرك فى التصرف باندے او مراد د ساعت نه هغه وخت دے چه په هغے كښ ټول خلق به فنا كيږى په شپيلئ وهلو سره يا دا رنگ دوباره ژوندى كيدل په يو ځل سره په دويمه شپيلئ سره نو د هغه وخت مثال ئے وركړيدے د رپ د سترگو سره يعنى چه دغه وخت به دومره لږ وى لكه رپ د سترگے .

اَوْ هُوَ اَقْرَبُ ، هركله چه رپ د سترگے جزء دے د زمانے او زمانى دے نو ترقى ئے اوكړه په مثال كښ چه هغه وخت انى دے زمانى نه دے ) او لمح البصر خو زمانى ده او داسے په سورة قمر ﴿٥٠﴾ كښ شته دے .

ســ٧٨ :- خلاصه :- د دے آيت نه پنځم باب دے تر ســ٨٣ پورے په ديكښ څلور عقلى دليلونه دى ســ٧٨ ، ســ٧٩ ، ســ٨٠ او ســ٨١ كښ او په ديكښ تذكير د نعمتونو دے چه هغه بدنى قوتونه

إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرٰتٍ فِي جَوِّ

مارغانو ته چه تابع کړے شوی دی په فضا

السَّمَآءِ ۭ مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا اللّٰهُ ۭ

دَ آسمان کښں ، نه دی ټینګ کړی دوی سوا دَ اللّٰه تعالیٰ نه،

إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۷۹﴾

هیڅا یقیناً په دیکښں ډیر دلیلونه دی هغه قوم لره چه ایمان لری۔

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْۢ بُيُوْتِكُمْ

او اللّٰه تعالیٰ پیدا کړیدی تاسو لره دَ کورنو ستاسو نه

سَكَنًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ

ځائے دَ آرام او پیدا کړیدی تاسو لره دَ څرمنو

دی او مارغان دی او کورونه او خیمے دی او سوری او غارونه دی او قمیصونه او زغرے دی او بیا تسلی ده سه ۸۲ کښں او زجر دے په سه ۸۳ کښں۔

تفسیر :- پدے آیت کښں دلیل عقلی دے په ذکر دَ انعام دَ پیدائش دَ انسان او ذکر دَ دریو قوتونو انسان لره او هغه دریواړه اسباب دَ علم او دَ شکر دی۔

وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ، دا ئے جدا ذکر کړو اګرچه دَ پیدائش سره دا قوتونه موجود وی لیکن دَ پیدائش نه روستو پدیکښں ترقی پیدا کیږی تر بلوغ او بیا دَ څلویښت کالو پورے۔

سه ۷۹ :- دا هم دلیل عقلی دے په ذکر دَ نعمت دَ مارغانو سره او حفاظت دَ هغوی او دا رنګ په سورة ملك سه ۱۹ کښں ذکر دی۔

جَوِّ ، په اصل کښں جوف ته وئیلے شی مراد دَ دینه فضاء ده په مینځ دَ آسمان او دَ زمکه کښں۔

الْاَنْعَامِ بُيُوْتًا تَسْتَخِفُّوْنَهَا يَوْمَ

دَ څاروو نه کوټے چه سپک موئ تاسو هغه لره په ورځ

ظَعْنِكُمْ وَ يَوْمَ اِقَامَتِكُمْ ۙ وَمِنْ

دَ سفر ستاسو او په ورځ دیره کیدو ستاسو او

اَصْوَافِهَا وَ اَوْبَارِهَا وَ اَشْعَارِهَا

دَ وړے دَ هغے نه (دَ ګډو نه) او دَ پشم دَ هغے نه (دَ اوښانو نه) او دَ ویښتو دَ هغے نه

اَثَاثًا وَّ مَتَاعًا اِلٰى حِيْنٍ ﴿۸۰﴾ وَاللّٰهُ

(دَ بیزو نه) سامان دَ کور او دَ فائدے څیزونه تر یو وخت پورے ۔ او الله تعالی

جَعَلَ لَكُمْ مِّمَّا خَلَقَ ظِلٰلًا

جوړ کړیدی تاسو لره دَ هغے نه چه پیدا کړیدی سورے

وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْجِبَالِ اَكْنَانًا

او جوړ کړیدی تاسو لره دَ غرونو نه غارونه (رسیتی)

ن۸۰ :- دا هم دلیل عقلی دے په تذکیر دَ نعمتونو دَ کوټو او دَ خیمو او وړئ او پشم او دَ هغے نه جامے او نور ساما تونه جوړول۔

مِنْۢ بُيُوْتِكُمْ سَكَنًا ، کښ اشاره ده ښارونو او کلو ته ۔ مِنْ بُيُوْتِكُمْ ، لفظ دَ مِنْ کښ اشاره ده چه دَ کوټے په بعض حصه کښ اوسیدل کیدے شی ۔

وَجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ الْاَنْعَامِ بُيُوْتًا ، کښ اشاره ده یا تړاو او صحراوتو ته ۔

تَسْتَخِفُّوْنَهَا ، یعنی کله چه سفر کوئ چه دا خیمے منتقل کول درته آسان وی او کله چه اقامت کوئ نو خیمے اودرول درته آسان وی ۔

اَثَاثًا ، هغه سامان چه په کور کښ استعمالیږی او لباس پکښ

وَجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيْلَ تَقِيْكُمُ

او پیدا کړیدي تاسو لره قمیصونه چه ساتي تاسو لره

الْحَرَّ وَسَرَابِيْلَ تَقِيْكُمْ بَأْسَكُمْ ط

دَ ګرمۍ نه او قمیصونه چه ساتي تاسو په وخت دَ جنګ کښ،

كَذٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ

دغسې پوره کوي الله تعالیٰ نعمت خپل په تاسو باندې د

لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُوْنَ ﴿۸۱﴾ فَاِنْ تَوَلَّوْا

دې دَپاره چه دَ الله تعالیٰ حکمونه اومنئ ـ نو که دوی مخ اوګرځوي

هم داخل دے ـ

وَ مِنَّا غَا، دَ دے ویښتو وغیره نه رسۍ جوړول او تاروته جوړول او دَ هغے نه نورے فائدے اخستل ـ

سلا :۔ دا دلیل عقلي دے او په دیکښ ذکر دَ نعمتونو دَ سورو او دَ غارونو او قمیصونو او زغرو دے ـ

مِمَّا خَلَقَ، مراد دَ دے نه اونے دیوالونه وغیره دی ـ

تَقِيْكُمُ الْحَرَّ، ګرمي ئے ذکر کړے ده او یخنۍ ئے نه ده ذکر کړے ځکه چه هغه وخت کښ مخاطب خلق مکے والا وو او په هغوي یخني نه وه ـ

تَقِيْكُمْ بَأْسَكُمْ، دا دلیل دے په دے باندے چه انسان دَپاره استعمال دَ داسے اسبابو چه دَ مرګ نه بچ شي او نور حفاظتي سامان ساتل جائز دی ـ

نِعْمَتَهٗ، مراد دَ دینه جنس نعمت دے او اتمام غیر دے دَ اختتام نه ـ

لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُوْنَ، اسلام پوره انقیاد دے ظاهري او باطني یعني پمنعم علیه عقلاً او نقلاً لازم دی چه دَ منعِمُ انقیاد اوکړي ـ

فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ الْمُبِينُ ﴿٨٢﴾

نو يقيناً ستا په ذمه باندے رسول دی صفا۔

يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللّٰهِ ثُمَّ يُنْكِرُونَهَا

پيژنی دوی نعمت دَ الله تعالیٰ بيا دَ هغے نه انكار كوی

وَأَكْثَرُهُمُ الْكٰفِرُونَ ﴿٨٣﴾ وَيَوْمَ

او زيات دَ دوی نه كفر كوی۔ او په كومه ورځ

نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا

چه راپورته به كړو دَ هر امت نه بيان كوونكے

ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا

بيا به اجازت نشی وركيدے كافرانو ته ( دَ عذار كولو )

۸۲۔ په دے آيت كښ تسلی ده نبی صلی الله عليه وسلم ته او فَإِنْ تَوَلَّوْا، دَ دے جزاء په اصل كښ مقدر ده حاصل يے دا دے كه دوی مخ اړوی نو دوی له به عذاب وركړے شی په تا باندے څه وبال نشته ما سوا دَ تبليغ نه۔

۸۳۔ په دے آيت كښ زجر دے، مطلب دَ دے آيت دا دے چه اقرار كوی چه دا نعمتونه دَ الله تعالیٰ دی خو بيا انكار كوی او نسبت كوی شفاعت دَ الهو خپلو ته۔ دويمه معنیٰ دا ده چه اقرار دَ نعمتونو كوی په خپلو خلو سره او انكار يے كوی په عملونو سره۔ دريمه معنیٰ دا ده چه پيژنی په زړونو سره او انكار كوی په ژبو خپلو۔

وَأَكْثَرُهُمُ الْكٰفِرُونَ، أَكْثَرُهُمْ، يے ځكه اوئيل چه دَ بعضے كسانو عملی انكار كفر ته رسيدونكے نه وی۔

وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٨٤﴾ وَإِذَا رَأَ

او نه به دَ دوی توبه قبلیږے شي . او کوم وخت چه اووینی

الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ فَلَا

ظالمان خلق عذاب لره نو نه به شي

يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿٨٥﴾

سپکیږے دَ دوی نه او نه به دوی له مهلت ورکیږي

س۸۴:۔ خلاصه :۔ دَ دے ځائے نه شپږم باب دے تر س۱۱۳ آیت پورے پدیکښ اول تخویف اخروی دے دَ س۸۴ نه تر س۸۹ پورے بیا ترغیب دے قرآن ته دَ پاره دَ دفع دَ عذاب په س۸۹ کښ بیا خلاصه دَ مضامینو دَ قرآن ده په س۹۰ کښ بیا ترغیب دے په وفا دَ لوظ سره په س۹۱ کښ بیا منع ده دَ نقض عهد نه په مختلف تعبیرونو سره په س۹۱، س۹۲، س۹۴، س۹۵، س۹۶ آیتونو کښ، او تخویف دے په س۹۳ کښ او بشارت دے په س۹۷ کښ. بیا ترغیب دے قرآن ته سره دَ ادب نه په س۹۸، س۹۹، س۱۰۰ آیتونو کښ او زجر دے په انکار دَ نسخ سره په س۱۰۱، س۱۰۲ آیتونو کښ او زجر دے په نسبت کولو دَ قرآن سره تعلیم دَ بشر ته آیت س۱۰۳ کښ . بیا تخویف دے په س۱۰۴ کښ او زجر دے په س۱۰۵ کښ . بیا تخویف دے په بے لوظئ سره چه هغه ته ارتداد وائي دَ س۱۰۶ نه تر س۱۰۹ پورے . بیا بشارت دے په هجرت سره س۱۱۰ کښ . تخویف اخروی دے س۱۱۱ کښ بیا تخویف دنیوی دے په طریقه دَ تمثیل سره په س۱۱۲، س۱۱۳ کښ .

تفسیر :۔ پدے آیت کښ تخویف اخروی دے لَا يُؤْذَنُ ، يعني دَ عذر کولو اذن به نه وی لکه په سورة مرسلٰت س۳۶ کښ دی . وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ، دا لفظ یا دَ عتبٰا نه دے او عتبٰا وئیلے کیږی رجوع کول او توبه کول یا دَ عتاب نه دے پدیکښ معنی دَ زائل کولو دَ عتاب ده یعنی رضا کول نو معنیٰ دا شوه چه دَ دوی نه طلب دَ توبے نشی کیږے یا دا چه دَ دوی نه طلب دَ رضا کولو دَ الله تعالیٰ نشی کیږے .

س۸۵ :۔ پدے آیت کښ هم تخویف اخروی دے او جزاء دَ پاره

وَاِذَا رَاَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا
او كوم وخت چه اووينى مشركان خلق
شُرَكَآءَهُمْ قَالُوْا رَبَّنَا هٰٓؤُلَآءِ
خپلو معبودانو (باطلو) لره او به وائی اے ربه زمونږ دا هغه
شُرَكَآؤُنَا الَّذِيْنَ كُنَّا نَدْعُوْا
زمونږ معبودان دی كوم چه مونږ تربه مدد غوختلو
مِنْ دُوْنِكَ ۚ فَاَلْقَوْا اِلَيْهِمُ
سوا ستا نه ، نو هغوى به اوغورځوى دوى ته
الْقَوْلَ اِنَّكُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۸۶﴾ وَاَلْقَوْا
جواب چه يقيناً تاسو دروغژن يئ - او پيش به كړى دوى
اِلَى اللّٰهِ يَوْمَئِذِ ِۨالسَّلَمَ وَضَلَّ
الله تعالیٰ ته په دغه ورځ دَ دروغ خبرے او ورك به شى

دَ اِذَا محذوف ده او تقديريئے دا دے فَيُعَذَّبُوْنَ -
سـ۸۶ :- په دے كښ هم تخويف اخروى دے په براءت دَ الهو باطلوٌ سره دَ عابدينو نه خو مراد دَ دے نيكان بندگان دی -

اِنَّكُمْ لَكٰذِبُوْنَ ، يعنى مونږ تاسو ته امر دَ خپلے بندگیٔ نه دے كړے دا دليل دے په دے خبره چه دغه معبودان دَ خپلو عابدانو دَ حال نه خبر نه دی لكه سورة يونس سـ۲۸ ، سـ۲۹ او سورة احقاف سـ۵ ، سـ۶ كښ چه ذكر دی-

عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۸۷﴾

دَ دوی نه هغه چه دوی ځه دروغ جوړول

اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ

هغه کسان چه کفر یې کړیدے او منع کوی خلق دَ

سَبِيْلِ اللّٰهِ زِدْنٰهُمْ عَذَابًا

لارے دَ الله تعالیٰ نه زیاتی کوؤ به دوی لره عذاب

فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا يُفْسِدُوْنَ ﴿۸۸﴾

نور دَپاسه دَعذاب دَدوی نه پدے وجه چه دوی فساد کوی.

---

۸۷ :- په دے آیت کښ هم تخویف دے او دَ وَضَلَّ عَنْهُمْ، معنیٰ دا ده چه هیر به شی دَ دوی نه هغه باطل دلیلونه چه دوی دَ ځان نه جوړول او دویمه معنیٰ دا ده چه غائب به شی دَ دوی نه هغه معبودان چه دوی ورته په دروغه معبودان وئیل، دریمه معنیٰ دا ده چه زائل به شی دَ دوی نه دَدروغو امیدونه چه دا الهه به زمونږ سفارش کوی.

۸۸ :- په تیر شوؤ آیتونو کښ ذکر دَ معبودینو صالحینو وؤ چه دَ الله تعالیٰ سره شریک کړے شوی وؤ او تخویف وؤ عامو مشرکانو ته، او په دے آیت کښ تخویف دے هغه گمراهانو ته چه نور خلق یې گمراه کړی وؤ.

يُفْسِدُوْنَ، افساد نه مراد نورو خلقو ته دَ گمراهۍ دعوت ورکول دی.

وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا

او په کومه ورځ چه راپورته به کړو په هر امت کښې گواهي کوونکے

عَلَيْهِم مِّنْ أَنفُسِهِمْ وَجِئْنَا بِكَ

په دوي باندے د جنس د دوي نه او راوبه ولو تا لره

شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ ۚ وَنَزَّلْنَا

گواهي کوونکے پدے (موجوده) خلقو باندے ، او نازل کړے دے مونږ

عَلَيْكَ الْكِتَابَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ

په تا باندے دا کتاب تشريح کوونکے دے د هر يو

شَيْءٍ وَهُدًى وَرَحْمَةً وَبُشْرَىٰ

ضروري خبرے او هدايت دے او رحمت دے او زيرے دے

لِلْمُسْلِمِينَ ﴿٨٩﴾ إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ

دپاره د مسلمانانو - يقيناً الله تعالىٰ حکم کوي

ع ۱۲ / ۱۸

۸۹ :- د دے آيت په اوله حصّه کښې تخويف اخروي دے په ذکر د شهادت د انبياؤ او د علماؤ حق پرستو په امتونو باندے او دا شهادت د دعوت او د تبليغ به وي او دا پسے په سورة نساء ۴۱ کښې دي او په ۸۴ کښې د شهيد نه مراد صرف اعضاء دي يا صرف انبياء دي نو هلته ذکر د خاص دے او پدے آيت کښې ذکر د عام دے - د دے آيت په دويمه حصّه کښې ترغيب دے قرآن ته په ذکر د څلورو صفاتو دپاره د بچ کيدلو د عذاب د قيامت نه او دا رنگ پدے جمله کښې اشاره ده چه دعوت کوونکو ته الله تعالىٰ علم د قرآن ورکړے دے نو د هغے په باره کښې به د دوي نه تپوس کيږي.

تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ ، په دے کښې مراد هر هغه څيزونه دي چه د دين په باره کښې هغے ته حاجت وي يا مراد کل شيء نه پدے

بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَآئِ
په انصاف سره او په احسان سره او حقونه ورکول
ذِي الْقُرْبَىٰ وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَآءِ
خپلوانو ته او منع کوي د بې حيايئ نه
وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ ۚ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ
او د بدو کارونو نه او د ظلم کولو نه وعظ درکوي تاسو ته د دې پاره چه تاسو
تَذَكَّرُونَ ﴿٩٠﴾ وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ
نصيحت قبول کړئ. او پوره کوئ لوظ د الله تعالى

سورت کښې ذکر د اصولو د نعمتونو دے.
وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ، معنیٰ دا ده چه په قرآن سره زېرے ته د مسلمانانو خوشحاليږي. او مسلمين، هغه دي چه سره د ايمان ته اعمال ظاهريه شرعيه باندے پابندی کوی او عمل په قرآن باندے ښکاره کوی. ۱۔ په دے آيت کښې خلاصه د کُلِّ شَيْءٍ، ذکر ده چه محکم آيت کښې ذکر شو او د دے آيت په باره کښې عثمان بن مظعون رضی الله عنه فرمائيلی دی چه اول خو ما ايمان صرف د حيا د وجے نه راوړے وو او کله چه دا آيت نازل شو او زه د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره ناست وم نو ايمان کلک شو زما په زړه کښې مينه او محبت ئے زيات شو د محمد صلی الله عليه وسلم سره. او عبد الله بن مسعود رضی الله عنه فرمائيلی دی چه دا آيت په قرآن کښې ښه جمع کوونکے د خير دے او د شر دے او د دے وجے نه عمر بن عبد العزيز امر کړے وو خطيبانو ته چه دا آيت په خطبو کښې اولولئ او ابن کثير د اکثم بن صيفي او د هغه د قوم د ايمان راوړلو د پاره هم دا آيت سبب ذکر کړے دے. تشريح د دے آيت دا ده چه احکام شرعيه دوه قسمه دی ماموراتِ (چه په هغے سره امر او حکم کړے

إِذَا عٰهَدْتُّمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْأَيْمَانَ

کله چه تاسو لوظ کړی وی او مه ماتوئ قسمونه

بَعْدَ تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ

روستو دَ پوخوالی دَ هغې نه او یقیناً گرځولے تاسو الله تعالیٰ لره

شوے وی) او منهیات (چه دَ هغې نه منع کړے شوے وی) بیا ماموراتِ دوه قسمه دی حقوق دَ الله تعالیٰ او حقوق دَ بندګانو او منهیات هم دغه دوه قسمونه دی، بیا حقوق دَ الله تعالیٰ په دوه قسمه دی یو عقائد او عبادات او دویم دَ هغې اوقات او مقدار او کیفیات (طریقې) نو الْعَدْلِ، کښې حق دَ الله تعالیٰ اول قسم دے یعنی عقائد او عبادات یعنی توحید او ټول اعمال دَ توحید سره دی افراط او تفریط پکښې نشته- او په الْإِحْسَانِ، کښې حق دَ الله تعالیٰ دویم قسم دے یعنی طریقې او مقادیر او اوقات او هغې ته سنت هم وئیلے کیږی او هغې ته خائسته طریقې وئیلے شی. او حق دَ بندګانو په وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَىٰ، کښې ذکر دے یعنی قربت والا (که نسبی وی او که سببی وی) یعنی عام مؤمنانو ته دَ هغوی حقوق اداکول، دینی او دنیوی حقوق دواړه- او منهیات هم دوه قسمه دی حقوق الله او حقوق العباد، او حقوق الله کښې بیا دوه قسمه دی یو هغه چه دَ هغې قباحت په عقل او شرعے دواړو سره معلوم وی لفظ الْفَحْشَاءِ، سره هغه مراد دے په هغې کښې ټول اقسام دَ کفر او دَ شرک داخل دی او دروغ غلا کول او زنا کول پکښې هم داخل دی- دویم هغه چه دَ هغې قباحت صرف په شرعے سره معلومیږی لکه بدعات دَ عقائدو او دَ اعمالو او په لفظ دَ الْمُنْكَرِ، کښې هغې ته اشاره ده. او حقوق العباد کښې ظلم کول په بندګانو یا ناحقه لوټ کول دا هغې ته اشاره ده په لفظ دَ الْبَغْيِ، سره نو معلومه شوه چه په دے آیت کښې ټول دین اسلام داخل دے- يَعِظُكُمْ، معلومه شوه چه په وعظ کولو کښې ذکر دَ ماموراتو او منهیاتو داخل دے-

عَلَيۡكُمۡ كَفِيۡلًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُ

په ځان باندې ذمه وار، یقینًا الله تعالیٰ عالم دے

مَا تَفۡعَلُوۡنَ ﴿۹۱﴾ وَلَا تَكُوۡنُوۡا

په هغه څه باندې چه کوئ تاسو - او مه کیږئ

۹۱:- هر کله چه تیر شوی آیت کښ عهد دَ الله تعالیٰ ذکر کړے شو نو په دے آیت کښ ترغیب دے په وفا دَ عهد سره او منع کول دی دَ نقض عهد نه -

وَقَدۡ جَعَلۡتُمُ اللّٰهَ عَلَيۡكُمۡ كَفِيۡلًا ، کښ اشاره ده چه دَ قسم کولو او دَ عهد کولو په وخت کښ دَ الله تعالیٰ نوم ذکر کولے شی.

وَاَوۡفُوۡا ، قرطبی وئیلی دی چه دا معطوف دے په معنی دَ ماقبل باندے یعنی الله تعالیٰ تاسو ته اوامر او نواهی رالیږلی دی او امر ئې کړے دے په ایفاء دَ عهدونو باندے -

بِعَهۡدِ اللّٰهِ ، دا لفظ عام دے هر هغه عهد ته چه دَ الله تعالیٰ او رسول الله صلی الله علیه وسلم سره تړلے شوے دے (چه هغه په قرآن او حدیث کښ دی) یا په مینځ دَ بندګانو کښ عهود او عقود وی دے ټولو ته شامل دے لیکن اول دَ عهدونو نه مراد قرآن حدیث باندے عمل کول او په توحید او سنت باندے وفا کول دی دَ دے وجے نه دلته ئې عَهۡدَ اللّٰهِ وئیلے دے او په عهد کښ لفظ دَ اشهد وی او هغه په معنی دَ یمین (قسم) کښ دے دَ دے وجے نه اَلۡاَيۡمَانَ ، ئې او وئیلو او هر کله چه هر دعویدار دَ ایمان دَ الله تعالیٰ ذمه داری په وخت دَ عهد کښ ذکر کوی دَ دے وجے نه جَعَلۡتُمُ اللّٰهَ عَلَيۡكُمۡ كَفِيۡلًا ، ئې او فرمائیل -

كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ

پښان دَ هغه زنانه چه سپړ دلے يې سپنړسۍ خپله روستو

قُوَّةٍ أَنْكَاثًا ۖ تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ

دَ مضبوطوالي نه ټکړے ټکړے ، ګرځوئ تاسو قسمونه خپل

دَخَلًا بَيْنَكُمْ أَنْ تَكُونَ أُمَّةٌ

بے کاره په کورنۍ خپله کښې دَ دے وجے نه چه شته يوه ډله

هِيَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ ۚ إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ

ډيرو فائدو والا دَ بلے ډلے نه يقيناً ازميښت کوی

اللَّهُ بِهِ ۚ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ

الله تعالیٰ په تاسو باندے پدے سره ، او خامخا بيان به کړی تاسو ته په ورځ

الْقِيَامَةِ مَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٩٢﴾

دَ قيامت هغه شے چه تاسو په هغے کښې اختلاف کوئ ۔

ف: ۔ پدے آيت کښې منع ده دَ عهد ماتولو نه په طريقه دَ مثال سره يې ذکر کړے دے او دا عطف دے پر ولا تنقضوا الايمان باندے ۔ دَ مثال حاصل دا دے چه يو زنانه وی او جولا (کيری رکړيږي) کوونکے وی او ليونۍ هم وی څکه چه اودلے شوے تارونه دوباره سپړی او ټکړے کوی نو عهد ماتوونکے دَ هغے پښان دے ۔ نو معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ عهد ماتوونکی دَ داسے زنانه پښان بے عقله او بے شعوره دی او ځان ته نقصان رسوونکی دی ۔

تَتَّخِذُونَ ، پدے کښې همزه دَ استفهام دَ پاره دَ زجرپټ دے ۔
دَخَلًا بَيْنَكُمْ ، په معنیٰ دَ دهوکے سره دے يعنی سبب الدخل ، يا دَخَلًا په معنیٰ دَ فاسد (بيکاره) دے ۔ او سبب دَ نقض عهد يې ذکر کړے دے په أَنْ تَكُونَ أُمَّةٌ هِيَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ ،

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً

او كه خوښتلے الله تعالىٰ خامخا گرځولے به يئ وئ تاسو يوه ډله

وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ يُّضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ

ليكن بے لارے كوى چاله چه اوغواړى،

وَيَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَلَتُسْـَٔلُنَّ

او په لارے روانوى چاله چه اوغواړى، خامخا تاسونه به تپوس كيږى بشى

عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۳﴾ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا

دَ هغه عملونو نه چه تاسو يئ كوئ. او مه گرځوئ

سره يعنى مشركان او كافران او بدعتيانو ته نظر اوكړى نو هغوى ورته مالدار ښكاره شى دَ هغوى امدنى ډيره اوويني نو دَ دنيا دَ حرص دَ وجے نه عهد دَ توحيد او طريقه دَ سنت پريږدى۔

أَنْ تَكُوْنَ، دَ دينه مخكښى لام پټ دے يعنى لان۔

إِنَّمَا يَبْلُوْكُمُ اللّٰهُ بِهٖ، پدے جملے سره جواب وركوى چه الله تعالىٰ مشركانو او بے دينو خلقو ته مالدارى او آمدنى ډيره وركوى ځكه چه په دے سره دَ مؤمنانو ابتلاء او امتحان كوى۔

تَخْتَلِفُوْنَ، اشاره ده چه نقضِ عهد سبب دے دَپاره دَ اختلاف۔

۹۳:۔ هر كله چه تير شوى آيت كښى اختلاف ذكر كړے شو چه هغه دَ نقضِ عهد په وجے سره پيدا كيږى نو پدے آيت كښى ذكر كوى چه دا اختلاف هم دَ الله تعالىٰ په اختيار كښى دے دا رد دے په فرقه قدريه او معتزله باندے يعنى اضلال او هدايت پدے معنىٰ دے چه څوك دَ عهد نه واوړى او څوك په عهد باندے كلك پاتے شى دواړه په اختيار دَ الله تعالىٰ كښى دى۔

اَيۡمَانَكُمۡ دَخَلًاۢ بَيۡنَكُمۡ فَتَزِلَّ

قسمونه خپل بے کاره په کورتی خپلو کښې نو او به خوئیږی

قَدَمٌۢ بَعۡدَ ثُبُوۡتِهَا وَ تَذُوۡقُوا

خپے ستاسو روستو دَ کلکوالی دَ هغے نه او او به څکئ

السُّوۡٓءَ بِمَا صَدَدۡتُّمۡ عَنۡ سَبِيۡلِ

عذاب په وجه دَ دے چه منع کوئ خلق دَ لارے

اللّٰهِ ۚ وَ لَكُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ ﴿۹۴﴾

الله تعالیٰ نه او ستاسو دَ پاره عذاب لوے دے۔

وَ لَا تَشۡتَرُوۡا بِعَهۡدِ اللّٰهِ ثَمَنًا

او مه اخلئ په بدل دَ لوظ دَ الله تعالیٰ کښې دنیا

قَلِيۡلًا ؕ اِنَّمَا عِنۡدَ اللّٰهِ هُوَ

لږه ، يقيناً هغه څه چه دَ الله تعالیٰ سره دی هغه

---

وَلَتُسۡـَٔلُنَّ عَمَّا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ، کښې اشاره ده چه انسان مجبور محض نه دے نو دا رد دے په فرقه جبریه باندے۔

۹۴ :- په دے آیت کښې منع ده دَ قسم او دَ عهد ماتولو نه هغه چا لره چه مقتدا وی لکه عالم ، پیر امام وغیره نو تکرار نشته ، او دَ تخصیص وجه دا ده چه دَ ده په عهد ماتولو سره دَ ده دَ تابعدارو خپے هم دَ حق دین نه او خوئیږی نو هم ضال وی او هم مضل شی۔

قَدَمٌ ، نه مراد قدمونه دَ تقليد کوونکو دی یا قدمونه دَ هغه مقتداء مراد دی او اوله معنیٰ غوره ده په قرینه دَ بِمَا صَدَدۡتُّمۡ عَنۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ سره۔

خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩٥﴾

غوره دی تاسو لره که تاسو پوهیږئ.

مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ

هغه څه چه تاسو سره دی فنا به شي او هغه څه چه د الله تعالی سره دی

بَاقٍ ۗ وَلَنَجْزِيَنَّ الَّذِينَ صَبَرُوا

باقي دی، او خامخا بدله به ورکوو هغه کسانو ته چه صبر ئې کړیدے

أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٩٦﴾

ثوابونه د هغوی په عوض د هغه ښه کارونو چه دوی کول.

۹۵:- په دے آیت کښې هم منع کول دی د نقضِ عهد نه د دنیا د مال او جاه په حرص سره یعنی چه حق دین د توحید او سنت د دنیا د مال او اقتدار د وجے نه مه پریږدئ. او دیته اشتراء هم وائی او تفصیل د دے اشتراء په سورة بقره ۴۱ کښې ذکر شوے دے.

ثَمَنًا قَلِيلًا ، ټول متاع د دنیا ته وړُلے شي لکه په سورة توبه ۳۸ کښې او سورة نساء ۷۷ کښې دی.

إِنَّمَا عِنْدَ اللَّهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ، دا ترغیب دے جنت او آخرت ته.

۹۶:- پدیکښې علت دے د ما قبل (خیر) د پاره او په دے کښې تزهید فی الدنیا دے یعنی د الله تعالی په عهد او په دین باندے مضبوط کیدلو سره چه کوم اجر او ثواب د الله تعالی د طرف نه ملاویږی هغه نه ختمیږی او د دے دنیا مال او اقتدار فنا کیږی. او پَه عهد باندے مضبوطوالی ته په دے آیت کښې صبر وئیلے شویدی. لفظ أَحْسَنِ ، ئې د دے وجے نه ذکر کړے دے چه حسن مباح ته وئیلے کیږی او په مباح عمل کولو سره اجر نه ملاویږی او احسن کښې سنت او واجب او فرض داخل دی. یا د احسن اضافت مَا يَعْمَلُونَ ، ته اضافت بیانیه دے.

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ

چا چه عمل کړے دے برابر د سنت سره که نارینه وی

أَوْ أُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ

او که زنانه او حال دا چه مؤمن وی نو خامخا ژوندی به ورکوو دهٔ ته

حَيٰوةً طَيِّبَةً ۚ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ

ژوند د مزے ، او خامخا بدله ورکوو دوی ته

أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٧﴾

د ثوابونو د دوی په عوض د ښه کارونو چه دوی کول۔

فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ

نو هر کله چه غواړے ته چه لولے قرآن نو (اول) پناه او غواړه په الله تعالیٰ سره

ف۹۷ :- په دے آیت کښ بشارت دے هغه چاته چه په عهد باندے وفا کوی۔ او هغے ته ئے په ایمان او عمل صالح سره تعبیر کړے دے۔

حَيٰوةً طَيِّبَةً ، غوره قول دا دے چه په دے سره هغه ټول نعمتونه مراد دی چه په هغے سره خوشحالی په دنیا او آخرت کښ حاصلیږی او په دے کښ داخل دے حلال رزق او قناعت او توفیق د طاعاتو په دنیا کښ۔

او دویم قول دا دے چه مراد د دینه جنت دے ځکه بغیر د جنت نه ژوند نه خائسته کیږی۔

أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ، تیر شوی آیت کښ جزاء دنیوی مراد ده او دلته جزاء اخرویه مراد ده۔

مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ﴿۹۸﴾ إِنَّهٗ
دَ شيطان رټلی شوی نه - یقینًا
لَيْسَ لَهٗ سُلْطٰنٌ عَلَى الَّذِيْنَ
نشته دٰه لره وس دَ ګمراه کولو په هغه چاچه
اٰمَنُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۹۹﴾
ایمان ئې راوړے دے او په خپل رب باندے توکل کوی -
إِنَّمَا سُلْطٰنُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ
یقینًا وس دَ ګمراه کولو دَ دهٔ په هغه کسانو دے

۹۸ :- په دے آیت کښ ترغیب دے قرآن ته سره دَادب ته وجه دَ ربط دا ده چه قرآن کښ تذکیر دَعهد دَالله تعالیٰ دے - او تعوذ بالله دَ دے دَپاره دے چه دَ شیطان دَوسوسو نه بچاؤ حاصل شی ځکه چه شیطان دَ قرآن نه منع کول کوی او انسان ته دَ تخویف او غلط تاویل کولو وسوسے اچوی او دَ الله تعالیٰ دَ عهد نه ئې غافل کوی -

الرَّجِيْمِ ، چه په هغه باندے په قرآن کښ لعنتونه وئیلے شویدی او دَ هغه قبیح احوال ذکر دی -

فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ ، مراد دَ قراءت نه اراده دَ قراءت ده - فَاسْتَعِذْ . امر دے په طلب سره او اعوذ بالله وئیل امتثال دَ حکم دے نو غوره اعوذ بالله وئیل دی -

۹۹ :- په دے آیت کښ مراد دَ سُلْطَانٌ ، نه داسے ګناه ته لمسول مراد دی چه هغه نه بخلے کیږی یعنی شرک ، یا ترینه توبه نه اوباسی لکه بدعات کول او دا نفی دَ سلطان خاص دے او داسے په سورة حجر ۴۲ کښ هم دی او که سلطان په معنی دَ زور یا دلیل شی نو دَ هغے نفی عامه ده لکه په سورة ابراهیم ۲۲ آیت کښ -

۱۳ ع ۱۱ ۱۹

يَتَوَلَّوْنَهٗ وَالَّذِيْنَ هُمْ بِهٖ مُشْرِكُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

چه دوی سره دوستانه کوی او هغه کسان چه په سبب دَ وسوسو دَده سره مشرکان دی۔

وَاِذَا بَدَّلْنَآ اٰيَةً مَّكَانَ اٰيَةٍ ۙ

او کله چه بدل را وړو مونږ یو آیت په ځائے دَ بل بانددے

وَّاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ قَالُوْٓا

او الله تعالیٰ ښه پوهه دے په هغه څه چه نازلوی ئے دوی وائی

اِنَّمَآ اَنْتَ مُفْتَرٍ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ

یقینًا ته خو دروغ جوړونکے ئے، بلکه زیات خلق

لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۱﴾ قُلْ نَزَّلَهٗ رُوْحُ

نه پوهیږی۔ ته اُووایه نازل کړے دے دا قرآن روح

سن۱: دلته دَ سلطان نه مراد هغه سلطان خاص دے چه په مخکښې آیت کښې نفی شوے ده۔

بِهٖ مُشْرِكُوْنَ، ضمیر دَ بِهٖ الله تعالیٰ ته راجع دے یعنی دَ الله تعالیٰ سره شرک کوی، او یا دا ضمیر شیطان ته راجع دے او معنیٰ دا چه (بسبب اغوائهم) یعنی په سبب دَ وسوسے دَ شیطان په شرک کښې اخته شوی دی۔

سن۱۰۱: په دے کښې زجر دے منکرینو دَ قرآن ته چه په قرآن باندے اعتراض کوی په باره دَ نسخ کښې چه دا افتراء او دروغ دی، او بحث دَ نسخ په تفسیر دَ سورۃ بقره سن۱۰۶ کښې تیر شوے دے۔

اَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ، کښې اشاره ده چه نسخ او تبدیل کښې دَ الله تعالیٰ ډیر حکمتونه دی۔

لَا يَعْلَمُوْنَ، یعنی دوی دَ نسخ په حکمتونو باندے علم نه لری او معلومه شوه چه دا اعتراض کوونکی جاهلان دی۔

الْقُدُسِ مِنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ
پاک دَ طرف دَ رب ستا نه په حق سره
لِيُثَبِّتَ الَّذِينَ آمَنُوا وَهُدًى
دَ دے دَپاره چه کلک کړی مؤمنانو لره (په ایمان دے) او هدایت دے
وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ﴿١٠٢﴾ وَلَقَدْ
او زیرے دے دَپاره دَ مسلمانانو . او یقیناً
نَعْلَمُ أَنَّهُمْ يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُ
پوهیږو مونږ چه بیشکه دوی وائی یقیناً خودلے دے دا قرآن ده ته
بَشَرٌ لِسَانُ الَّذِي يُلْحِدُونَ
یو انسان، ژبه دَ هغه کس چه غلط نسبت کوی
إِلَيْهِ أَعْجَمِيٌّ وَهَٰذَا لِسَانٌ
دوی هغه ته عجمی ده او دا قرآن ژبه
عَرَبِيٌّ مُبِينٌ ﴿١٠٣﴾ إِنَّ الَّذِينَ
عربی ده واضح . یقیناً هغه کسان

سـ١٠٢ :- په دے کښ جواب دَ تیر شوی اعتراض دے یعنی دا افتراء نه ده بلکه دَ جبرئیل علیه السلام په واسطه سره الله تعالیٰ نازل کړے دے او درے فائدے یې ذکر کړی دی ،
اوله فائده تثبیت او مضبوطوالے په دین باندے دَ قرآن کریم په سبب سره دے .
دویمه فائده پوره هدایت دَ عقیدے او احکامو .
دریمه فائده خوشحالی او اطمینان .
سـ١٠٣ :- په دے آیت کښ تسلی ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته او جواب دَ دویم اعتراض دَ منکرینو دے ، هغه دا دے

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۙ لَا يَهْدِيْهِمُ

چه ایمان نه لري په آیاتونو د الله تعالیٰ هدایت (توفیق) نه ورکوي دوئ ته

اللّٰهُ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۰۴﴾ اِنَّمَا

الله تعالیٰ او د دوی دپاره عذاب دردناک دے. یقینًا

يَفْتَرِي الْكَذِبَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

جوړوي دروغ هغه کسان چه ایمان نه لري

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿۱۰۵﴾

په آیاتونو د الله تعالیٰ او دغه کسان دوي دروغژن دي.

مَنْ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنْ ۢ بَعْدِ اِيْمَانِهٖٓ

چا چه کفر اوکړو په الله تعالیٰ روستو د ایمان راوړلو نه

چه دوی وئیل چه دے نبي ته یو بنده نصراني تعلیم ورکوي او هغه زمونږ د دین یعنی د شرک نه مخالف دے او عجمي دے.
حاصل د جواب دا دے چه هغه بنده خو عجمي دے او دا قرآن عربي فصیح بلیغ دے عجمي شخص په دے قدرت نه لري.
"اَعْجَمِيٌّ"، هغه دے چه وضاحت او فصاحت سره خبره نشي کولے که عربي وي او که غیر عربي وي.
۱۰۴:- تخویف دے منکرینو د قرآن ته او آیت کښ اشاره ده چه عدم ایمان په قرآن باندے سبب د محرومیدلو دے د هدایت نه.
او د "لَا يُؤْمِنُوْنَ"، نه مراد دغه اعتراضات کوونکي دي نو دوی ضدیان او عنادیان دي.
۱۰۵:- دا جواب د دوی د هغه قول دے چه دوی نبي ته نسبت د افتراء کوؤ یعنی منکرینو د قرآن کریم یو خو په الله تعالیٰ باندے افتراء کوي شریک او د ولد نسبت ورته کوي او بل دا چه دوی همیشه دروغ وائي.

إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ

سوا د هغه چا نه چه زور پرے اوکړے شو او زړه د هغه کلک وی

بِالْإِيمَانِ وَلَٰكِن مَّن شَرَحَ

په ایمان باندے لیکن چا چه پرانستلو سینه خپله

بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ

کفر قبلو له نو په دوی باندے غضب

مِّنَ اللَّهِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿۱۰۶﴾

د الله تعالیٰ دے او دوی د پاره عذاب لوے دے۔

۱۰۶:۔ په دے آیت کښ تخویف دے نقض کوؤنکو د عهد نه په سبب د مرتد کیدلو، او په دے کښ بیان د حال د هغه چا دے چه افتراء کوی په الله تعالیٰ باندے نو په دے وجه د مخکښ سره ربط دے۔
إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ ، دا استثناء ده د کفر نه چه په معنیٰ د تلفظ کولو دے په کلمه د کفر سره او اکره هم په معنیٰ د اکراه کولو په تلفظ د کفر باندے نو استثنا متصل صحیح شوه۔ او شرح بالکفر سره تکرار هم نه لازمیږی۔ مراد د اکراه نه دا دے چه دباؤ کوؤنکے د قتل یا د قطع د اندام د دے قدرت لری۔ په اسے وخت کښ یه په عزیمت باندے عمل کول غوره دی یعنی که قتل کړے شی نو هغه ته اجر حاصلیږی او شهید دے او په رخصت باندے عمل کول جائز دی او رخصت دا دے په کلمه د کفر سره په ژبه تلفظ اوکړی خو په زړه کښ پوخ مؤمن وی۔
مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا ، مراد شرح نه قبلول د کفر دی بغیر د شک شبهے نه۔

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمُ اسْتَحَبُّوا الْحَيٰوةَ

دا دَدے وجے نه چه دوی خوخ کړیدلے ژوندن

الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَاَنَّ اللّٰهَ

دَ دنیا په آخرت باندے او پدے وجه چه الله تعالیٰ

لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿١٠٧﴾

توفیق نه ورکوی قوم کفر کوونکی ته .

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ طَبَعَ اللّٰهُ

دا هغه خلق دی چه مهر وهلے دے الله تعالیٰ

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ

په زړونو دَ دوی او په غوږونو دَ دوی او په سترګو دَ دوی باندے

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ ﴿١٠٨﴾ لَا جَرَمَ

او دغه کسان دوی بے پرواه دی . خامخا

اَنَّهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿١٠٩﴾

دوی به په آخرت کښ تاوان والا وی (په همیشه عذاب سره)

ف ۱۰۷ :- پدے آیت کښ دوه سببونه دَ ماقبل ذکر کړے دی اول محبت دَ دنیا دے استحباب محبت دے سره دَ غوره کولو نه او آخرت نه غافل کیدل دی، او بل سبب دا چه هدایت دَ الله تعالیٰ عنادی کافرانو ته نه ملاویږی۔

ف ۱۰۸ :- دا نتیجه دَ ماقبل قبا څو ده په دنیا کښ او طبع په ابصار باندے زیاته ده دَ غشاوة نه دَ پردو نه او په یکښ دَ منکرینو دوه صفتونه نے ذکر کړی دی۔

ف ۱۰۹ :- دا نتیجه دَ ماقبل ده په آخرت کښ او په یکښ دَ دوی یو صفت ذکر کړے دے چه خسران کامل دے۔

ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا

بیا بقیناً ستا رب هغه کسانو ته چه هجرت ئے کړیدے

مِنْ بَعْدِ مَا فُتِنُوا ثُمَّ جٰهَدُوا

روستو دَ هغې نه چه تکلیفونه ورسولے شویدی بیا ئے جهاد کړیدے

وَصَبَرُوا إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا

او صبر ئے کړیدے یقیناً رب ستا روستو دَ دے (کارونو) نه

لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٠﴾ يَوْمَ تَأْتِي كُلُّ

بخنه کوونکے رحم کوونکے دے۔ پهاسے ورځ چه راشي هر

نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَّفْسِهَا

نفس کوشش به کوی دَ عذاب دفع کولو دَ ځان نه

وَتُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ

او پوره به ورکړے شي هر نفس ته بدله دَ عملونو دَ هغه

وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١١١﴾ وَضَرَبَ اللّٰهُ

او دوی باندے به ظلم نشی کیدے۔ او بیان کړیدے الله تعالیٰ

سلا:۔ ربط دَ دے آیت دَ اکراه سره دا دے چه په دے آیت کښ دَ اکراه دَ کافرانو نه دَ بچ کیدلو دَ پاره طریقه ذکر کړے ده چه هغه هجرت دے او ترغیب دے هجرت ته۔

او فُتِنُوا، نه مراد اکراه ده او آیت کښ اشاره ده چه پس دَ هجرت کولو نه بیا هم جهاد کول او صبر کول ضروری دی۔

مِنْ بَعْدِهَا، دا ضمیر په تاویل دَ خصلت سره جهاد او صبر دواړو ته راجع دے۔

سلاا:۔ په دے آیت کښ تخویف اخروی دے دَ پاره دَ منکرینو او دَ تارکینو دَ هجرت۔

مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ اٰمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً

مثال دَ يو كلي چه امن والا وُو په قلاره (اطمينان سره)

يَّاْتِيْهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّنْ كُلِّ

وُو راتله په هغوي ته خوراكونه پريوانه دَ هر

مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ

ځائے نه نو ناشكري ئے اوكړه دَ نعمتونو دَ الله تعالىٰ نه

فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ

نو اوڅكوله هغوي ته الله تعالىٰ جامه دَ لوږے

وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿١١٢﴾

او دَويرے په سبب دَ هغه كارونو چه دوي هميشه كول ـ

تُجَادِلُ عَنْ نَّفْسِهَا ، عذرونه پيش كولو دَپاره په يو وخت وي او دَ ولا يؤذن لهم فيعتذرون ، سورة مرسلات ۳۶ دَپاره به بل وخت وي نو تعارض نشته دے ـ

عَنْ نَّفْسِهَا ، كښ اشاره ده چه پلار ، ځوئے ، ورور وغيره دَ ده دَ طرف نه په جدال نه كوي دَ هغوي نه به نااميده شي نو پخپله به مجادله شروع كړي ـ

سلا :- په دے آيت كښ تخويف دنيوي دے مشركينو ته او ديكښ اشاره ده نزول دَعذاب او قحط ته په اهل مكه باندے او دا ئے مثال كرځولے دے دَپاره دَنورو خلقو يا قَرْيَةً ، نه مراد بله قريه ده په طريقه دَ مثال سره لكه قريه دَ سبا والو په سورة سبا ۱۵ ، ۱۶ كښ ذكر ده او دا رنګ دَ مثال دَپاره په خارج كښ وجود شرط نه وي بنا په اول قول سره مكه معظمه اګرچه په جوار دَ بيت الله كښ ده ليكن هركله چه مكے والو دَ الله تعالىٰ دَ نعمتونو ناشكري اوكړه نو نعمتونه ترينه بند شول او عذاب دَ

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ

او يقيناً راغلے دے دوئ ته رسول دَ دوی دَ جنس نه

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ

نو دوی هغه ته دروغژن اُوئيل نو اونيول دوی لره عذاب

وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ فَكُلُوْا مِمَّا

او دوی ظالمان وو۔ نو خورئ دَ هغے نه

قحط پرے شروع شو نو تور کلی والا چه داسے نا شکره شی۔ نو هغوی به هم هغسے ځکه نجم شی دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه۔

فَاَذَاقَهَا اللّٰهُ لِبَاسَ الْجُوْعِ ، قحط او لوږه مشابه کړے شوه دَ لباس سره ، لکه ځنګه چه لباس احاطه کړے وی په بدن بانديے نو دا رنګ قحط او خوف په دوی باندے احاطه اوکړه ۔ يا دا مطلب دے چه اثار دَ قحط په دوی باندے داسے ښکاره شول لکه لباس چه په بدن باندے ښکاريږی او سبب دَ دے قحط دعاء شر دَ نبی صلی الله عليه وسلم ده په دوی باندے چه اللهم اجعلها عليهم سنين کسنی يوسف او ديته اشاره ده په سورة دخان ۱۰، ۱۱ کښی ۔ او تعبير ئے په اذاقها سره ځکه اوکړو چه مراد دَ ذوق نه جوخت کيدل او پيوست کيدل دی لکه په ذوقوا العذاب کښی دے يا ذوق په معنیٰ مشهوره (څکل) سره دے او اشاره ده چه دَ دنيا عذاب لږ وی په نسبت دَ آخرت۔

فَكَفَرَتْ بِاَنْعُمِ اللّٰهِ ، پدے سورت کښی ډير نعمتونه ذکر شول دَ دے وجے نه دَ دے تخصيص ئے پدے آيت کښی اوکړو او کفر نه مراد شرک کول او دَ رسول نه انکار کول دی۔

يَصْنَعُوْنَ ، هغه عملونه چه هميشه ئے کوی او بنه کار ئے ګرځی۔

۱۱۳:۔ پدے آيت کښی ذکر دَ لوے نعمت دے هغه دا چه رسول ئے دَ دوی دَ جنس او دَ قوم نه را اوليږلو يعنی دوی خو دَ مخکښی زمانے نه شرک کوؤ چه هر کله رسول دوئ ته را اوليږلے شو

او حجت په دوی باندے قائم شو او دوی بیا هم انکار اوکړو نو
عذاب د قحط ورباندے راغے.

فَكَذَّبُوْهُ، تفسیر دے د فکفرت بانعم الله او فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ،
تفسیر دے د فاذاقها الله الجوع والخوف.
ظٰلِمُوْنَ، نه مراد شرک کول دی.

۱۱۴ :- خلاصه : د دے آیت نه تر آخر د سورت پورے اوم باب
دے په دیکښ رد دے په شرک فی التحلیل والتحریم باندے
تر ۱۱۷ پورے او ذکر د تحریم قهری دے زجرًا په ۱۱۸ کښ.
بیا بشارت دے په سبب د توبه کولو سره په ۱۱۹ کښ. بیا دلیل
عقلی دے د ابراهیم علیه السلام نه د پاره د رد په مشرکینو او د
هغه لس اوصاف او احوال ئے ذکر کړی دی د ۱۲۰ نه تر ۱۲۳
پورے. او جواب د سوال دے په ۱۲۴ کښ، بیا ترغیب دے د دعوت
او تبلیغ نه په ذکر کولو د پنځه ادابو سره تر آخر د سورت
پورے.

تفسیر :- په دے آیت کښ رد دے په تحریم لغیر الله باندے
او د دے تشریح په سورة بقره او سورة مائده کښ تیره شویده.
او په دیکښ تفسیر دے د کفران کولو د مشرکینو چه مخکښ آیت
کښ ذکر شو لکه نعمتونه د الله تعالی چه په ځان باندے ئے حرام
کړے وو. نو امر اوکړے شو چه دا حلال اوګنړئ. او په دے
آیت کښ دلیل دے چه د الله تعالی حلال حلال منل او شکر کول

عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ

الله تعالیٰ په تاسو باندې مرداره او وینه او غوښه

الْخِنْزِيْرِ وَمَآ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ

دَ خنزیر او هر هغه شے چه آواز اوکړے شی دَ نذر دَ غیر الله

بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ

په هغې باندې نو څوک چه ناچاره شو نه وُو طلب ګار دَ مزے

وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

او نه دَ حد نه تیریدونکے وُو نو یقیناً الله تعالیٰ بخښنه کوونکے

رَّحِيْمٌ ﴿۱۱۵﴾ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَا تَصِفُ

رحم کوونکے دے. او مه وایئ هغه څیز ته چه بیانوی ئې

اَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هٰذَا حَلٰلٌ

ژبے ستاسو دروغ چه دا څیز حلال دے

دا هم عبادت دے۔

وَاشْكُرُوْا ۔ هر کله چه دا سورت دَ نعمتونو سورت دے دَ دے وجے نه په دے سورت کښ دَ واشکروا نعمت الله ذکر ئې اوکړو۔

ف۱۱۵ :- په دے آیت کښ رد دے په تحلیل دَ غیر الله او نذر دَ غیر الله باندے یعنی مشرکینو دا مذکور څیزونه حلال ګرځول او حال دا دے چه دا حرام په ټولو دینونو کښ دی۔ تفسیر دَ آیت په سورة بقره کښ تیر شوے دے۔ هر کله چه په مخکښ آیت کښ نسبت دَ رزق ورکولو الله تعالیٰ ته صراحتًا کړے دے دَ دے وجے نه دلته دَ تحریم نسبت هم الله تعالیٰ په صیغه دَ معلوم سره اوکړو۔

وَهٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوْا عَلَى اللّٰهِ

او دا څیز حرام دے دَ دے دَپاره چه جوړوئ په الله تعالیٰ باندے

الْكَذِبَ ؕ اِنَّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ

دروغ ، یقیناً هغه کسان چه جوړوی

عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُوْنَ ؕ ﴿۱۱۶﴾

په الله تعالیٰ باندے دروغ نشی بچ کیدلے (دَ عذاب نه)۔

مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ۪ وَّلَهُمْ عَذَابٌ

(دوی لره) مزه لږه ده او دوی لره عذاب

اَلِيْمٌ ﴿۱۱۷﴾ وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا

دردناک دے۔ او په هغه کسانو باندے چه یهودیان دی

۱۱۶:۔ په دے آیت کښ رد دے دَ مشرکانو په تحلیل او تحریم باندے روستو دَ بیان دَ حکم دَ هغے نه په تیرشوؤ دوؤ آیتونو کښ یعنی تحلیل او تحریم دَ بندګانو په اختیار کښ نه دے۔ او په دے آیت کښ تصریح ده چه څوک دَ ځان نه تحلیل او تحریم کوی نو دے په الله تعالیٰ باندے افتراء کوی او داسے کس دَ الله تعالیٰ دَ عذاب نه نشی بچ کیدلے۔

لِمَا تَصِفُ، لام اجلیه دے او هٰذَا حَلَالٌ، مقوله ده دَ قول یا لام شانیه دے یعنی په باره دَ هغے کښ چه ستاسو ژبے بیانوی۔ اَلْکَذِبَ، مفعول دَ لا تقولوا دے او هذا حلال تفسیر دَ الکذب۔ لیکن اوله توجیه غوره ده ځکه چه دویمه توجیه کښ الکذب مفرد مقوله دَ قول نشی کیدلے مګر په تاویل سره۔

۱۱۷:۔ دا جواب دَ سوال دے چه دَ مشرکانو لره د بیرنعمتونه ورکړے شویدی نو معلومه شوه چه دوی په حقه دی جواب او شو چه دا دَ دنیا لږه مزه ده زر به ختمه شی۔ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ، خبر ئے حذف دے لهم۔ یا مبتدا محذوف ده یعنی متاعهم متاع قلیل۔

حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ

حرام کړيدي موږ هغه څه چه بيان کړيدي موږ په تا باندې دَ

قَبْلُ ۚ وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ كَانُوْٓا

دېته مخکښې او ظلم نه دے کړے موږ په دوی باندې ليکن دوی

اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۱۸﴾ ثُمَّ اِنَّ رَبَّكَ

پخپلو ځانونو باندې ظلم کوي. بيا يقيناً ستا رب

لِلَّذِيْنَ عَمِلُوا السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ

هغه کسانو لره چه بد کارونه کوي په ناپوهۍ سره

ثُمَّ تَابُوْا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ

بيا ئې توبه اوکړه روستو دَ دے نه

وَاَصْلَحُوْٓا اِنَّ رَبَّكَ مِنْۢ بَعْدِهَا

او عمل ئې کوډ برابر دَ سنت سره يقيناً ستا رب روستو دَ دے نه

لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۱۹﴾ اِنَّ اِبْرٰهِيْمَ

بخنه کوونکے رحم کوونکے دے - يقيناً ابراهيم (عليه السلام) وو

۱۵ ع ۲۱

۱۱۸ :- په دے آيت کښې بيان دَ خاص تحريم دے په يهوديانو باندې او مقصود په يکښې تخويف دے يعنې لکه چه دَ هغوی بغې سبب دَ تحريم دَ نعمتونو شو نو که تاسو بغې اوکړئ نو الله تعالیٰ به په تاسو باندې هم نعمتونه حرام کړي او دَ دے آيت تشريح په سورة انعام ۱۴۶ کښې او سورة النساء ۱۶۰ کښې تيره شوې ده -

۱۱۹ :- په دے آيت کښې ترغيب دے توبه کولو ته -

عَمِلُوا السُّوْٓءَ ، هر ګناه ته شامل دے -

او بِجَهَالَةٍ ، اشاره ده چه هر ګناه کوونکے په وخت دَ ګناه کولو

كَانَ اُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِيْفًا ۗ وَلَمْ يَكُ

وؤ پیشوا (دین بیا نوونکے) تابعدار دَ الله تعالیٰ یوخ مؤحد، او نه وؤ دے

مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٢٠﴾ شَاكِرًا لِّاَنْعُمِهٖ

دَ مشرکانو دَ ډلے نه. شکر کوونکے وؤ دَ نعمتونو دَ الله تعالیٰ

اِجْتَبٰىهُ وَهَدٰىهُ اِلٰى صِرَاطٍ

غوره کړے بوؤ ده لره او هدایت یئے کړے بوؤ دَ ده لارے

مُّسْتَقِيْمٍ ﴿١٢١﴾ وَاٰتَيْنٰهُ فِى الدُّنْيَا

نیغے ته. او ورکړے بوؤ مونږ ده ته په دنیا کښ.

حَسَنَةً ۗ وَاِنَّهٗ فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ

خائسته ژوند، او یقینًا دے به په آخرت کښ دَ

الصّٰلِحِيْنَ ﴿١٢٢﴾ ثُمَّ اَوْحَيْنَاۤ اِلَيْكَ

کامیابو نه وی. بیا وحی اوکړه مونږ تا ته

کښ جاهل وی یعنی په دغه وخت کښ دَ ګناه دَ عاقبت نه ناخبر وی.

مِنْ بَعْدِهَا، ضمیر په تاویل دَ خصلت سره توبے او اصلاح ته راجع دے. په دے کښ اشاره ده چه دَ توبے سره عمل صالح یو ځائے وی نو مغفرت او رحمت دواړه حاصلیږی.

ت۱۲۰، ۱۲۱، ۱۲۲:- په دیکښ دلیل نقلی دَ ابراهیم علیه السّلام بیا یئے په دے وجه سره ذکر کړو چه تیکه وؤ دَ مشرکین مکه او دَ یهود او نصاری، او دا رنګ مشرکانو به دعوی کوله چه مونږ په ملت دَ ابراهیم علیه السلام باندے یو نو په ذکر دَ ابراهیم علیه السلام سره یئے په هغوی باندے رد اوکړو چه هغه خو مشرک نه وؤ. بیا په دے آیتونو کښ دَ ابراهیم علیه السلام پنځه اوصاف ذکر کړے شوی دی. ع۱ امة، ع۲ قانت، ع۳ حنیف

أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا ط

چه تابعداري كوه دَ ملت دَ ابراهيم (عليه السلام) چه يوخ موحد وو،

وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۲۳﴾

او نه وو دَ مشركانو دَ ډلے نه۔

إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِينَ

يقيناً مقرر كړے شو يدلے تعظيم دَ ورځ دَخالى په هغه خلقو باندے

اخْتَلَفُوا فِيهِ ط وَإِنَّ رَبَّكَ

چه اختلاف ئے كړے وو په هغے كښ (په ورځ دَ تعظيم كښ) او يقيناً ستا رب

ع۴ لم يك من المشركين ع۵ شاكراً لانعمه۔

دَ أُمَّةً، نه مراد دا دے چه يواځے دَ امت په شان مضبوط وو يا دا چه خودنه كوونكے دَ خير وو۔ يا دا چه امام وو۔ او بيا پنځه احوال دَ ابراهيم عليه السلام دى۔ ع۱ اجتباه، ع۲ هداه، مراد دا دے چه صراط مستقيم ته دَ دعوت كولو طريقه يا دليلونه الله تعالى ده ته خودلى وو۔ ع۳ اتيناه فى الدنيا حسنة، مراد دَ دے دا دے چه انبياء دَ دينه روستو ټول دَ ده په اولاد كښ راوليږلے شول، يا دا چه دَ ده نيك ذكر او خائسته ستائنه په روستو خلقو كښ پاتے شوه۔ ع۴ او وانه فى الاخرة لمن الصلحين، او ع۵ حال په روستو آيت كښ دے۔

س۱۲۳:۔ تابعدارى دَ ملت ابراهيميه په اعلان دَ براءت كښ دَ معبودانو باطلو نه او دَ تمام مشركانو نه او په اكثر احكامو فروعيه كښ هم ده۔ دا ئے په وحى سره په آخرى نبى صلى الله عليه وسلم باندے فرض كړے ده۔

لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا

خامخا به فيصله اوكړى په مينځ دَ دوى كښ په ورځ دَ قيامت په هغه څه

كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۲۴﴾ اُدْعُ

كښ چه دوى په هغې كښ اختلاف كوى . بلنه كوه

اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ

لارے دَ رب ستا په ګټه طريقه سره

وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ

او په وعظ خائسته سره اوجواب كوه دَ دوى

بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ۭ اِنَّ رَبَّكَ

دَ خبرو په هغه طريقه سره چه خائسته وى، يقينًا ستا رب

سه ۱۲۴ :. په دے آيت كښ جواب دَ يو شبهے دے، هغه دا ده چه دَ ابراهيم عليه السلام په دين كښ دَ خالى دَ ورځ تعظيم لازم وو. او ته اے نبى دَ هغې نه مخالفت كوے، حاصل دَ جواب دا دے چه تعظيم دَ خالى ورځ فرض كړے شوے وو په اَلَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ، يا نداب او هغه بهوديان وو، دا تعظيم په دين ابراهيم عليه السلام كښ نه وو.

او دَ اَلَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ، مطلب دا دے چه الله تعالى دوى له اختيار وركړو چه په هفته كښ يوه ورځ دَ تعظيم دَ پاره مقرر كړئ او ورسره يې اوفرمائيل چه جمعه زما په نيز غوره ده. نو لازم دا وه چه دوى خپله رضا دَ الله تعالى دَ رضا تابع كړيوے ليكن دوى دَ سبت (خالى) ورځ غوره كړه او دوى او نصارى پكښ مختلف شول - او نصارى په زمانه دَ قسطنطين كښ دَ دوى په خلاف كښ دَ اتوار ورځ غوره كړه -

هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ

هغه ښه پوهه دے په هغه چاچه واوړی د لارے د هغه نه

وَهُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۲۵﴾ وَاِنْ

او هغه ښه پوهه دے په هدایت والو - او که

عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ

تاسو بدله اخلئ نو بدله واخلئ په مقدار د تکلیف درکړے شوی

بِهٖ ؕ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ

ستاسو، او که تاسو صبر اوکړو نو دا

ف۱۲۵:- په دے آیت کښ تیزی ورکوی په دعوت کولو باندے او تر آخر د سورت پورے د هغے پنځه اداب ئے ذکر کړی دی- پدے آیت او د دینه بعد کښ امر د دعوت دے په اُدْعُ سره او تخصیص د مقصد د دعوت دے او طریقه د دعوت او نتیجه د دعوت او حکم د مصائبو د دعوت ذکر کړے شوے دی او مقصد د دعوت اِلٰى سَبِيْلِ رَبِّكَ، دے مراد د دینه توحید او نور عقائد دی چه پدے سورت کښ ذکر شول ، او طریقه د دعوت دا ده اول اثبات د مدعی (د مسئلے) په پاخه او یقینی دلیلونو سره او دینه اَلْحِكْمَةِ ، وائ ځکه چه حکمت په معنیٰ د اتقان د علم او د عمل دے او د دے حکمت تفصیل په سورة اسراء ف۳۹ کښ ذکر شویدے نو مراد د دینه قرآن او حدیث صحیح دے- نو دا اشاره ده هغه عقلی دلیلونو او نقلی ته چه په دے سورت کښ ذکر شوے دی دویم ترغیب مدعی ته په ذکر د بشارتونو او انعاماتو او تخویفاتو او زجرونو سره دے او دینه اَلْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ، وائی او دریم جواب د شبهاتو دے په نرمه طریقه او لهجه سره او په دے جوابونو کښ د مخاطب چپ کول دی ځکه ئے هغه ذکر کړه په وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ، سره -

خَيْرٌ لِّلصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۲۶﴾ وَاصْبِرْ وَمَا

ویر بنه دے دپاره د صبرناکو خلقو۔ او صبر کوه او نه دے

صَبْرُكَ اِلَّا بِاللّٰهِ وَلَا تَحْزَنْ

صبر ستا مگر په مدد د الله تعالیٰ سره دے او مه غمژن کیږه

عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِيْ ضَيْقٍ

په دوی باندے او مه کیږه په تنگسیا کښ

مِّمَّا يَمْكُرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾ اِنَّ اللّٰهَ

د هغے نه چه دوی څه چلونه جوړوی۔ یقیناً الله تعالیٰ خاص

او اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ ، سره اشاره ده چه ستاسو په ذمه دعوت کول دی او هدایت د الله تعالیٰ په اختیار کښ دے او دا اشاره ده نتیجے د دعوت ته۔

۱۲۶:- په دے کښ اشاره ده مصائبو د دعوت ته او د هغے علاج په دوه طریقو سره دے اول معاقبه (یعنی بدل اخستل) په مثل سره، او دویم صبر کول او دویمه طریقه غوره ده۔

۱۲۷:- په دیکښ بیان د درے ادابو دے دعوت کوونکی د پاره۔ اول ادب وَاصْبِرْ، تیر شوی آیت کښ اختیار وو د معاقبے او د صبر کولو او په دے آیت کښ تعین د صبر دے وجه د دے دا ده چه هغے آیت کښ خطاب وو عام داعیانو ته او دے آیت کښ مخاطب دے امیر د داعیانو چه اول د ټولو نه نبی صلی الله علیه وسلم دے بیا د هغه نائبان دی۔ او د دواړه په حال کښ فرق پکار دے۔

او دویم ادب ، وَلَا تَحْزَنْ ، مراد د دینه منع ده د اظهار د غم او افسوس نه پس اسے طریقه سره چه د نور کار نه غافل شی۔
او دریم ادب ، وَلَا تَكُ فِيْ ضَيْقٍ ، مراد د دینه غم او بے صبری کول دی۔

مَعَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّالَّذِيْنَ

ملګرے دے (په امداد کولو) دَ هغه چاچه تقوٰی لري (ځان بچ کوي) او دَ هغه

هُمْ مُّحْسِنُوْنَ ﴿۱۲۸﴾ ع

کسانو چه ښائسته کارونه کوي۔

ف۱۲۸ :- په دے آیت کښ بشارت دے داعي ته په معیت خاصه دَ الله تعالیٰ سره چه هغه نصرت کول دي لیکن په دوؤ شرطونو سره دَ پاره دَ داعي، یو تقوٰی او دویم احسان او احسان په معنیٰ دَ اخلاص دے۔
تقوی نه مراد عقیده دَ توحید ده او دَ شرک نه بچ کیدل او دَ محسنون نه مراد اعمال صالحه دي یا دَ تقوٰی نه مراد ترک دَ منهیاتو دے او دَ محسنون نه مراد عمل دَ طاعاتو دے۔
فائده :- هرم بن حبان رضی الله عنه ته په وخت دَ ځنکدن کښ اُوئیلے شول چه موتږ ته وصیت اوکړه نو هغه اُوئیل زهٔ تاسو ته وصیت کوم په آخری آیتونو دَ سورة النحل سره۔

تمت بخير سورة النحل

سورۃ بنی اسرائیل مکیۃ بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ایاتها ۱۱۱ رکوعاتها ۱۲

خاص په نوم د الله تعالی (مدا دغواړم) په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے

سُبۡحٰنَ الَّذِیۡۤ اَسۡرٰی بِعَبۡدِہٖ

پاکی ده الله تعالی لره (د هر قسم شرک او عیبونو نه) داسے ذات دے چه بوځے تلو بنده خپل

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

سورۃ بنی اسرائیل

سورۃ بنی اسرائیل او بل نوم یے اسراء او بل سورۃ سبحان دے

ربط :- د دے سورت د سورۃ النحل سره دا دے چه سورۃ النحل کښې رد وو په استدلال د مشرکانو باندے سره د تخویف د عذاب نه نو په دے سورت کښې ذکر کوی اسباب د عذاب دا رنګ د سورۃ النحل په آخر کښې په طریقه د دعوت کښې لفظ د حکمت ذکر دے نو په دے سورت کښې د حکمت تفسیر دے. دا رنګ سورۃ النحل کښې ذکر ده شفاء وو په عسل کښې دلته د شفاء د پاره قرآن ذکر کوی.

دعوٰی :- دعوٰی د دے سورت دا ده، ذکر د څلور اسبابو د عذاب د پاره د تحذیر، سره د طریقے د دفع کولو د عذاب نه.

سبب اول انکار دے د توحید نه.

او د اثبات د توحید د پاره څلور طریقے دی.

اوله طریقه :- رد په اقسامو د شرک او په مشرکینو باندے دیارلس کرته.

دویمه طریقه :- ذکر کول د دیارلس اسماؤ حسنٰی د الله تعالی.

دریمه طریقه :- عقلی دلائل او آیت وحییه یعنی معجزات.

څلورمه طریقه :- ذکر د دعوے د توحید سپږ کرته او د سبب اول نمونه یے بنی اسرائیل ذکر کړے دی.

دویم سبب انکار د معجزاتو او آیات الهیۃ نه او د صحف مثال په

# لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

| په شپه کښې د مسجد حرام نه |
|---|

ثمود او په واقعه دَ آدم علیه السلام او ابلیس سره -
سبب دریم وبستل دَ رسولانو دَ وطن نه او دَ هغې مثال په هجرت دَ محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم سره -
سبب څلورم استهزاء کول په رسولانو پورے او دَ دے مثال په واقعه دَ موسیٰ علیه السلام او دَ فرعون سره -
خلاصه دَ دے سورت :- دا سورت تقسیم دے څلورو حصو ته او په هره حصه کښې یو یو سبب ذکر کړے دے -
اوله حصه تر ۵۵ پورے ده او په دے کښې اول ذکر دے دَ دعوے دَ توحید او اثبات دَ هغې په معجزه دَ اسراء سره او په دلیل عقلی سره په ۱ کښې، بیا دلیل نقلی دَ کتاب دَ موسیٰ علیه السلام نه په ۲ کښې، بیا ترغیب توحید ته په ۳ کښې، بیا ذکر دَ نمونے دَ عذاب په حال دَ بنی اسرائیلو سره دَ ۴ آیت نه تر ۸ آیت پورے، بیا معجزه دَ قرآن دَ پاره دَ اثبات دَ توحید او تخویف او بشارت ۹، ۱۰ آیتونو کښې، بیا زجر اول په طلب کولو دَ شر سره په ۱۱ آیت کښې بیا دلیل عقلی ۱۲ آیت کښې - بیا تخویف اخروی ۱۳، ۱۴ آیتونو کښې، بیا ذکر دَ حکمت دَ ارسال رسل ۱۵ آیت کښې - بیا تخویف دنیوی ۱۶ آیت کښې او دَ هغې نمونه ۱۷ آیت کښې، او تخویف اخروی ۱۸ آیت کښې، بیا بشارت ۱۹، ۲۰، ۲۱ آیتونو کښې - بیا دَ عذاب دَ دفع کولو دَ پاره درے اموریې ذکر کړی دی - اول دَ شرک نه بچ کیدل ۲۲، ۲۳ آیتونو کښې -
دویم احسان دَ مخلوق سره دَ ۲۳ نه تر ۳۰ پورے -
دریم عدل کول او دَ ظلمونو نه بچ کیدل او هغه لس امور یې ذکر کړے دی -
بیا دویم زجر په شرک بالملائکه سره ۴۰ آیت کښې - او

إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَا الَّذِي
| تر مسجد اقصٰی پورے هغه چه |
|---|

بٰرَكْنَا حَوْلَهٗ لِنُرِيَهٗ مِنْ اٰيٰتِنَا
| برکات اچولی دی موږ چاپیره دَ هغې نه دَپاره دَ دے چه اوخایو دهٔ ته دَ نخو دَ تجید |
|---|

إِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ①
| یقینًا الله تعالٰی هرڅه آوری او هر څه وینی |
|---|

دریم زجر په نفرت کولو سره دَ قرآن نه ، بیا مسئله دَ توحید او دَ رد دَ شرک ۴۳ ، ۴۴ کښې ـ بیا څلور زجرونه دی اول په انکار دَ قرآن سره ۴۵ آیت کښې ، او دویم په انکار دَ توحید نه ۴۶ آیت کښې ـ او دریم په انکار دَ رسول نه ۴۷ آیت کښې او څلورم په انکار دَ بعث نه دَ ۴۹ آیت نه تر ۵۲ آیت پورے ـ بیا ترغیب توحید ته ۵۳ ، ۵۴ آیت کښې ـ بیا دلیل عقلی ۵۵ کښې ، بیا رد په مشرکین بالجن باندے سره دَ رد دَ شرک فی التصرف او شرک فی الدعاء نه ۵۶ ، ۵۷ ۵۸ آیتونو کښې ـ

تفسیر :- ۱ :- په دے آیت کښې دعوٰی دَ توحید ذکر شوے ده په سُبْحٰنَ ، سره او دَ هغې دَ اثبات دَپاره معجزه دَ اسراء ذکر شوے ده او دیته دلیل وحی هم وئیلے کیږی ، او دلیل عقلی په إِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْبَصِيْرُ ، سره دے ـ

تحقیق دَ اسراء او معراج :-

اسراء په اصل لغت کښې دَ شپے بوتللو ته وئیلے کیږی او معراج پره خیژولو ته وائی ، بیا دَ مسجد حرام نه مسجد اقصٰی پورے دَ شپے بوتلل دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په طریقه دَ معجزے سره ، دیته اسراء وئیلے کیږی لکه پدے آیت کښې چه ذکر شوے دے او آسمانونو ته خیژول دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم په دغه شپه کښې دیته معراج وئیلے کیږی ، او هغه هم معجزه ده ـ او محدثین کرام دا دواړه لفظونه دَ یو بل په ځائے

استعمالوی یعنی یتولے واقعے ته اسراء هم وائی او معـــراج هم وائی ۔
او په قرآن کښ په دے آیت کښ تر مسجد اقصٰی پورے دَ اسـراء واقعه ده او په سورة نجم کښ دَ آسمانونو تو معراج ذکر کړے شوے دے ۔ او دا رنګ روایت کوونکی دَ حدیث دَ معـــراج څلور څلویښت صحابه کرام دی نو دا حدیث متواتر دے دا سے ابن کثیر او قرطبی ذکر کړیدی ۔ نو معلومه شوه چه واقـعه دَ معراج په دلیل قطعی سره ثابت ده ، او دا رنګ دَ مسلمانانو په دے باندے اجماع ده نو معلومه شوه چه انکار کوونکی دَ دینه زندیق او ملحد دی دا رنګ ابن کثیر هم دا حکم ذکر کړے دے ۔
او دا معراج دَ بیدارئ په حال کښ په بدن او په روح دواړو سره شوے دے او په دے باندے اجماع دَ امت ده ۔ او امام بیهقی ثابت کړیده چه اسراء او معراج دواړه په یوه شـپه کښ شویدی اول اسراء ده تر مسجد اقصٰی پورے بیا معراج دَ آسمانونو دے دویم قول دَ دے په عکس سره دے لیکن اول قول غوره دے ۔
دَ یو څو شبهاتو جوابات :
اول شبه دا ده چه په حدیث دَ بخاری جلد ۲ ص۱۱۲۰ کښ په روایت دَ انس بن مالک رضی الله عنه سره دا الفاظ راغلی دی چه دَ ( فاستقیظ وهو فی المسجد الحرام ) دَ دینه معلومیږی چه دا معراج په خوب کښ وو ؟
جواب :- دا حدیث په روایت دَ شریک بن عبدالله سره دے او په شریک باندے تهذیب التهذیب جلد ۴ ص۳۳۸ کښ کلام دے چه دے قوی نه دے ۔ دے به ډیر خطا کیدلو او دے دَ تقدیر نه منکر وو ۔ او امام نووی په شرح دَ مسلم کښ دَ قاضی عیاض په حواله سره وئیلی دی چه دَ شریک په روایت کښ اوهام دی او امام بخاری نور روایات په

غیر دَ روایت دَ شریک نه ذکر کړیدی او په هغې کښ دا الفاظ نشته دے۔
دویمه شبه :- امام بیهقی په دلائل النبوه کښ حدیث دَ ابن مسعود رضی الله عنه ذکر کړے دے او دَ هغې نه معلومیږی چه دا دَ خوب واقعه ده؟ جواب دا دے چه په دے سند کښ ابو هارون عبدی راوی دے او ابن کثیر وئیلی دی چه دا راوی بے اعتباره وو۔ او اکذب من فرعون ئے ورته وئیلی دی۔
دریمه شبه دا ده :- حدیث دَ عائشه رضی الله عنها چه ابن جریر راوړے دے په هغې کښ تصریح ده چه دا واقعه روحانی ده؟
جواب دا دے چه دَ دے روایت په سند کښ یو راوی محمد بن حمید دے او میزان الاعتدال جلد ۳ صفحه ۵۲ کښ په هغه باندے جرح کړے شوے ده ردی المذهب او کذاب ورته وئیلے شوی دی۔ او بل راوی محمد بن اسحاق دے او په هغه باندے ډیر اصحاب الجرح والتعدیل کلام کړے دے چه په حدیث کښ کذاب او دجال وو او عتعنه دَ هغه په اتفاق سره قبوله نه ده او دَ دے حدیث بنکاره دلیل دَ ضعف بلکه دَ وضع دا دے چه عائشه صدیقه رضی الله عنها هغه وخت ډیره وړه وه دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ئے نکاح شوے نه وه۔
څلورمه شبه :- ابن جریر حدیث دَ معاویه رضی الله عنه نه نقل کړے دے چه هغه به واقعه دَ معراج ته رؤیا صالحه صادقه وئیل؟
جواب دا دے چه په دے سند کښ هم هغه دوه راویان دی چه په هغوی باندے حدیث دَ عائشه رضی الله عنها کښ کلام تیر شو۔
دویم جواب دا دے چه لفظ دَ رؤیا صریح نه دے په خوب لیدلو کښ او دا بحث به انشاء الله په تفسیر دَ لفظ رویا دَ دے سورت ۶۰ کښ راشی۔
پنځمه شبه :- په دغه شبه کښ دَ انبیاؤ علیهم السلام سره

ملاقات شوے دے او هغوی سره خبرے کړے شوی دی او مونځ ئے هم کړے دے او موسیٰ علیه السلام دَ تخفیف دَ مونځو نو دَ پاره رسول الله صلی الله علیه و سلم بار بار واپس الله تعالیٰ ته لیږلے وؤ۔

دا ټول دلالت کوی چه پیغمبران پس دَ وفات نه هم ژوند دنیوی لری او خبرے او عبادات وغیره کولے شی؟

جواب دا دے چه واقعه دَ معراج معجزه ده او عالم مثال دے په هغے کښ ټول ارواح دَ انبیاء علیهم السلام رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ممثل کړے شوے وؤ، سوا دَ عیسیٰ علیه السلام نه چه دَ هغه ژوند حقیقی وؤ۔ او دَ دے دلیل هغه حدیث دے چه (مثلت لی الانبیاء) بیضاوی خازن وغیره ذکر کړے دے۔

او دا رنګ ملا علی قاری په مرقات شرح مشکوٰة کښ ډیر کرته تصریح کړے ده چه ارواح ممثل کړے شوے وؤ او هغه په جلد ۱۱ او صفحات ۲۲، ۱۲۱، ۱۴۳ او ۱۴۵ کښ ذکر کړی دی او فتح الملهم شرح مسلم جلد ۱ ص ۳۱۵ کښ وئیلی دی چه دَ هیچا نه نقل نشته چه انبیاء علیهم السلام په دغه شپه کښ دَ قبرونو نه آسمانونو ته نقل شوی وؤ، او دا رنګ په صحیح احادیثو سره ثابت ده چه په دغه شپه اولاد دَ آدم علیه السلام هغه خپل ښی طرف او کینړ طرفته لیدلے وؤ او دا رنګ یو حدیث کښ هغه واعظان دَ دے امت چه بے عمله دی هغه ئے په جهنم کښ لیدلی وؤ او حال دا چه هغوی تر دغه وخت پورے پیدا شوی هم نه وؤ نو دا ټول ممثلات وؤ۔

په دے آیت کښ لفظ دَ بِعَبْدِهٖ، دلیل دے چه دَ رسول صلی الله علیه وسلم بدن او روح په دواړو سره معراج کړے شوے دے او یله اشاره ده چه دَ هغه لوے مقام دَ

وَاٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ

او ورکړے وو موسیٰ (علیه السلام) ته کتاب او ګرځولے وو مونږ هغه

هُدًى لِّبَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَلَّا

هدایت د پاره د بنی اسرائیلو چه مه

تَتَّخِذُوْا مِنْ دُوْنِىْ وَكِيْلًا ﴿۲﴾

نیسئ سوا زما نه کار ساز۔

ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوْحٍ ؕ

اے اولاد د هغه چا چه مونږ سواره کړی وو د نوح علیه السلام سره

اِنَّهٗ كَانَ عَبْدًا شَكُوْرًا ﴿۳﴾

یقینًا هغه وو بنده شکر ګذار۔

عبدیت وو او لفظ د لَیۡلًا ، نکره ده ، دلالت کوی چه د شپے په لږه حصّه کښ یے بوتلے وو۔

ښ۲ :- په دے آیت کښ دلیل نقلی دے د کتاب د موسیٰ علیه السلام ، چه هغه کتاب هم د توحید د پاره نازل کړے شوے وو۔ او د تورات خلاصه په دے آیت کښ ذکر کړے شوے ده هغه دا ده چه د الله تعالیٰ نه سِوا بل څوک ذمه وار او کارساز مه جوړوئ او دا سے په سورة مزمل آیت ښ۹ کښ هم ذکر دی۔ او دا مقصد دے په معنیٰ د سبحان کښ۔

ښ۳ :- په دے آیت کښ ترغیب دے د توحید منلو ته په دوؤ طریقو سره۔ اول دا چه ما په تاسو انعام کړے چه ستا سو نیکونه د نوح علیه السلام سره په کښتی بچ کړی وو۔ او دویم دا چه ستاسو پلار (نوح علیه السلام) توحید والا وو او توحید بیا نوونکے وو۔ او دا معنیٰ د شکورًا ده تو ولے د خپل نیکونو نه مخالفت کوئ او د ذُرِّيَّةَ ، نه مخکښ لفظ د یا او په آخر د آیت کښ لفظ اشکروا پټ دے۔

وَقَضَيْنَآ إِلَىٰ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ

او فیصله اورولے وه موږ بنی اسرائیلو ته

فِي ٱلْكِتَٰبِ لَتُفْسِدُنَّ فِي ٱلْأَرْضِ

په کتاب کښې خامخا فساد به کوئ په زمکه کښې

مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ④

دوه کرته او لوئی به کوئ تاسو لوئی ډیره۔

سک:- هرکله چه تیر شوی آیاتونو کښې مسئله دَ توحید ئے په دلیلونو سره ثابته کړه نو اوس حال دَ بنی اسرائیلو ذکر کوی چه هرکله دوی دَدے مسئلے دَ توحید نه دوه کرته مخالفت اوکړو نو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه په دوی باندے ظالمان بادشاهان مسلط کړے شول او دا دَ الله تعالیٰ عذاب دنیوی دے په سبب دَ انکار دَ توحید سره چه په خلقو باندے راځی۔ اوس هم دا عبرت دے چه نن زمانه کښې هم دَ اسلام په دعوی کوونکو باندے ظالمان بادشاهان مسلط دی یا دَ دشمن په مقابله کښې کمزوری دی دا دَ دے وجے نه چه په عقیده کښې صحیح توحید نشته بلکه په هر قسم شرکیاتو او نورو ظلمونو کښې اخته شوی دی هاں لږ کسان به وی دَ قیامت تر نزدیکت پورے چه هغوی به په توحید باندے کلک او مضبوط وی په سبب دَ حدیث دَ لا تزال طائفة من امتی سره په قَضَيْنَآ ، کښې اشاره ده چه دا په تورات کښې په طریقه دَ پیشنګویئ سره ذکر ده لکه زموږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ ډیرو فتنو او ملاحمو پیشنګوئی کړی دی او هغه رښتیا دی۔

لَتُفْسِدُنَّ ، مراد دَ فساد نه مخالفت کول دی دَ شریعت دَ موسیٰ علیه السلام نه او یا دَ شریعت دَ عیسیٰ علیه السلام نه په شرک کولو سره یعنی دَ موسیٰ علیه السلام نه روستو دوی دَ الیاس علیه السلام او دَ عزیر علیه السلام زمانه کښې په شرک کښې اخته شول او

فَاِذَا جَآءَ وَعۡدُ اُوۡلٰهُمَا بَعَثۡنَا

نو هر کله چه راغله نیټه (وعده) د اول فساد د هغې دواړو نه نو راولیږل مونږ

عَلَیۡکُمۡ عِبَادًا لَّنَاۤ اُولِیۡ بَاۡسٍ

په تاسو باندې بندګان زمونږ چه ډیر سخت

شَدِیۡدٍ فَجَاسُوۡا خِلٰلَ الدِّیَارِ ؕ

جنګ والا وُو نو ورننوتل په مینځ د کورونو کښې،

وَکَانَ وَعۡدًا مَّفۡعُوۡلًا ۝۵ ثُمَّ

او دا وه وعده پوره کړې شوې ۔ بیا

دا رنګ پس د رفع د عیسیٰ علیه السلام نه دوی عیسیٰ علیه السلام د الله تعالیٰ سره شریک کړو او هغه ته ئې د الله تعالیٰ څوئې اُوئیلو او دا رنګ په دواړو زمانو کښې احبار او رهبان ئې د الله تعالیٰ سره شریک کړل او قبورو د انبیاؤ او د بزرګانو نه ئې مساجد جوړ کړل نو دیته فساد وائي ۔

وَلَتَعۡلُنَّ ، په دې کښې اشاره ده تورو ظلمونو او معاصیٓ او بدعاتو ته او تعدی کول په حقوق العباد کښې او دا په دوی کښې په کثرت سره ښکاره شول د دې وجې نه ئې عُلُوًّا کَبِیۡرًا ، اُوئیل ۔

ف :۔ په دې آیت کښې عِبَادًا لَّنَا ، نه مراد جالوت او د هغه ملګری دی او د هغوی واقعه په سورة بقره کښې تیره شویده ۔

فَجَاسُوۡا ، مراد د دیته د کورونو تلاشی کول او د هغې بې عزتی کول او د هغې نه خلق شړل دی او لفظ د لَنَا کښې لام د ملکیت د پاره دې یعنی دغه بندګان اګرچه ظالمان وُو خو هغوی هم په اختیار او تصرف د الله تعالیٰ کښې وُو ۔

رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ

واپس درکړه موږ تاسو ته غلبه په هغوی باندے

وَاَمْدَدْنٰكُمْ بِاَمْوَالٍ وَّبَنِيْنَ

او زیات کړل موږ ستاسو مالونه او ځامن

وَجَعَلْنٰكُمْ اَكْثَرَ نَفِيْرًا ۝۶

او جوړ کړئ موږ تاسو ډیرے ډلے والا۔

اِنْ اَحْسَنْتُمْ اَحْسَنْتُمْ لِاَنْفُسِكُمْ

(او ویل موږ) که تاسو په توحید باندے کلک شوئ نو فائده مو د خپل ځان د پاره ده

وَاِنْ اَسَاْتُمْ فَلَهَا ؕ فَاِذَا

او که تاسو بد کوئ نو دا به خاص وی ستاسو په نفسونو پورے، نو کله

جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ لِيَسُوْٓءٗا

چه راغله نیټه د روستنی فساد (مقرر کړل موږ په تاسو ظالمان) چه وران ویجاړ کړی

وُجُوْهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ

مخونه ستاسو او چه داخل شی مسجد ونو ته

كَمَا دَخَلُوْهُ اَوَّلَ مَرَّةٍ

لکه چه داخل شوے وو اول ځل

سلے ۱:- اشاره ده هغه واقعے ته چه سورۃ بقره کښ تیره شوے ده چه داؤد علیه السلام جالوت لره قتل کړو الله تعالیٰ بنی اسرائیلو لره فتحه ورکړه او د دوی نسل ئے هم زیات کړو په سبب د واپس کیدلو د دوی توحید او اطاعت ته۔

وَّلِيُتَبِّرُوْا مَا عَلَوْا تَتْبِيْرًا ⑦

او چه تس نس کړي هغه څه چه وس يې برشي پوره تس نس کول۔

عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يَّرْحَمَكُمْ ج

نژدے ده چه رب ستاسو رحم اوکړي په تاسو باندے

وَاِنْ عُدْتُّمْ عُدْنَا ۘ وَجَعَلْنَا

او که تاسو اوګرځيدلئ (فساد ته) اوبه ګرځوو مونږ (ستاسو سزا ته) او مقرر کړيده

ف:۔ دَ احسان نه مراد دا دے که تاسو په توحيد باندے کلک پاتے شوئ نو دا ستاسو فائده ده۔

فَلَهَا، معنیٰ دا ده چه سزا دَ دے بدئ دے نفس لره خاص ده لام دَ پاره دَ تخصيص دے دَ پاره دَ نفع نه دے۔

فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ، په يکښ اشاره ده چه هر کله دوی دَ عيسیٰ عليه السلام دَ دين نه مخالف شول او شرک يې اوکړو نو قسطنطين بادشاه او بخت نصر بادشاه په دوی باندے مسلط شو۔

لِيَسُوْٓءٗا وُجُوْهَكُمْ، معنیٰ دا ده چه په تاسو باندے نور ظالمان مقرر کړل نو عاقبت دا شو چه هغوی داسے ظلمونه اوکړل چه ستاسو مخونه يې وران کړل۔ يا دَ وجوه نه مراد سرداران او مشران دي چه هغوی يې ذليل کړل۔

وَلِيَدْخُلُوا، نه مراد داخليدل دي مسجد ته دَ پاره دَ شرک کولو او دَ پاره دَ خرابولو دَ هغے۔

لفظ دَ تَتْبِيْرًا، کښ اشاره ده چه دَ دوی فساد دَ مخکنو په نسبت باندے ډير وؤ۔ ځکه چه مفعول مطلق او دَ باب تفعيل نه دے په ډير تاکيد او کثرت باندے دلالت کوی۔

جَهَنَّمَ لِلْكٰفِرِيْنَ حَصِيْرًا ﴿٨﴾

جهنم دَ کافرانو دَپاره جیل خانه -

اِنَّ هٰذَا الْقُرْاٰنَ يَهْدِيْ لِلَّتِيْ

یقیناً دا قرآن خودنه کوی دَ هغه لارے

هِيَ اَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِيْنَ

چه هغه نیغه ده او زیرے ورکوی مؤمنانو ته

الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ

هغه کسان چه عملونه کوی برابر دَ سنت سره یقیناً

لَهُمْ اَجْرًا كَبِيْرًا ﴿٩﴾ وَّاَنَّ الَّذِيْنَ

دوی لره ثواب لوے دے - او یقیناً هغه خلق

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ اَعْتَدْنَا

چه ایمان نه لری په آخرت باندے تیار کړے دے موږ

سـ۸ :- په دے آیت کښ په لفظ دَ يَرْحَمَكُمْ، کښ اشاره ده بعثت دَ نبی صلّی اللّٰه علیه وسلّم ته -

وَاِنْ عُدْتُّمْ عُدْنَا ، په دیکښ اشاره ده چه هرکله دوی دَ آخری رسول نه مخالفت اوکړو نو نبی صلی اللّٰه علیه وسلّم بنو نضیر اوشړل او بنو قریظه ئے اکثر اووژل ، او بیا دَ عمر رضی اللّٰه عنه زمانه کښ ئے دَ جزیرة العرب نه هم اوشړل -

حَصِيْرًا ، دَ حصر نه دے په معنی دَ راګیرولو سره نو جهنم کښ به دا کافران راګیر شی بل طرف ته نزینه وتلے نشی -

سـ۹، سـ۱۰ :- دا آیت تعلق لری دَ دعوے دَ توحید سره چه سبحٰن ده ، چه دا مسئله دَ دے کتاب ده نو دا دلیل وحی دے یا متعلق دے دَ يَرْحَمَكُمْ سره ځکه چه مراد دَ رحمت نه بعثت دَ آخری نبی صلی اللّٰه علیه وسلّم دے سره دَ انزال قرآن نه نو

لَهُمْ عَذَابًا اَلِیْمًا ﴿۱۰﴾ وَيَدْعُ

دوی لره عذاب دردناک ۔ او غواړی

الْاِنْسَانُ بِالشَّرِّ دُعَآءَهٗ بِالْخَيْرِ ؕ

انسان بدئ لره پشان دَ غوښتلو دَ خیر ،

وَكَانَ الْاِنْسَانُ عَجُوْلًا ﴿۱۱﴾ وَجَعَلْنَا

او دے انسان تلوار کوونکے ۔ او گرځولی دی مونږ

الَّيْلَ وَالنَّهَارَ اٰيَتَيْنِ فَمَحَوْنَآ

شپه او ورځ دوه دلیلونه دَ توحید نو کمه کړې ده مونږ

اوس ترغیب ورکوی قرآن ته دَ پاره دَ بچ کیدلو دَ ذلت اودَ عذاب نه ۔ او ترغیب دے بنی اسرائیلو او عاموانسانانو لره قرآن ته او دَ قرآن حکمت دَ نزول ئے ذکر کړے دے چه دا هدایت او بشارت او انذار دے ۔

وَاَنَّ الَّذِيْنَ ، نه مخکښ يُبَشِّرُ يا يُخبر پټ مراد دے او دا دواړه حکمتونه تفصیلاً دَ سورة کهف په اول کښ ذکر کړے شوی دی ۔

لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ ، اشاره ده چه سبب دَ فسادانو او ظلمونو کولو انکار دے دَ آخرت نه ۔

سلا :۔ په دے آیت کښ زجر دے په استعجال دَ عذاب سره یعنی دَ قرآن نه هدایت اخستل پکار دی او دَ دغه نعمت شکر ضروری دے ۔ لیکن دَ هغه په مقابله کښ دوی دُعاءِ شر شروع کړله لکه په سورة الانفال ۳۲ آیت کښ ۔

دُعَآءَهٗ بِالْخَيْرِ ، لکه په سورة حم سجده ۴۹ کښ او سورة روم ۳۳ کښ ۔

وَكَانَ الْاِنْسَانُ عَجُوْلًا ، یعنی فطری طور سره انسان په هرکار کښ تلوار کوی لکه سورة الانبیا ۳۷ کښ یا دا معنی ده چه

ایَۃَ الَّیۡلِ وَجَعَلۡنَآ ایَۃَ النَّهَارِ
نخښه دَ شپې او گرځولې ده مونږ نخښه دَ ورځې

مُبۡصِرَۃً لِّتَبۡتَغُوۡا فَضۡلًا مِّنۡ
رڼا والا دَپاره دَدې چه طلب کړی فضل دَ

رَّبِّکُمۡ وَلِتَعۡلَمُوۡا عَدَدَ السِّنِیۡنَ
رب دَطرف نه او دې دَپاره چه اوپیژنئ شمار دَ کلونو

وَالۡحِسَابَ ؕ وَکُلَّ شَیۡءٍ فَصَّلۡنٰهُ
او حساب لره ، او هر ضروری شے واضح کړی دے مونږ

تَفۡصِیۡلًا ﴿۱۲﴾ وَکُلَّ اِنۡسَانٍ اَلۡزَمۡنٰهُ
په پوره وضاحت سره - او هر انسان سره لازم کړی دے مونږ

انسان د نیا فانی غوره کوی چه عاجله ده په آخرت باندے چه اجله ده۔

سلا:۔ دا دلیل عقلی متعلق دے دَدعوے دَ توحید سره او زجر دے چه انسان عجلت کوی لیکن پکار دی چه په دے آیتونو (لیل ونهار) کښ فکر اوکړی - دا رنگ قرآن چه روحانی نعمت دے دَهغے نه روستو دنیوی بدنی نعمتونه ذکر کوی دَ دے دَپاره چه دا خلق دَ دے شکر ادا کړی۔

ایَتَیۡنِ ، یعنی شپه او ورځ دَ الله تعالیٰ دَ قدرت او دَ توحید دوه دلیلونه دی۔

او ایة اللیل او ایة النهار کښ اضافت بیانیه دے یا مراد دَ ایتین نه شمس وقمر دی او تقدیر دَ آیت دا دے (وجعلنا للیل وللنهار ایتین) یعنی پیدا کړی مونږ دَ شپې او دَ ورځې لپاره دوه علامتونه جدا جدا نو په اوله توجیه باندے دَ محو نه مراد تیاره دَ شپې ده او بنا په دویمه توجیه دَمحو نه

طٰٓئِرَهٗ فِيْ عُنُقِهٖ ؕ وَ نُخْرِجُ لَهٗ

عمل دَهغه په غاړه دَهغه کښ اوراوبه باسو دہ لره

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ

دَ قيامت په ورځ يو كتاب چه مخامخ به شي ورسره

مَنْشُوْرًا ﴿۱۳﴾ اِقْرَاْ كِتٰبَكَ ؕ كَفٰى

خور اورد او لوله کتاب خپل ، پوره دے

مراد تور داغ دے په سپوږمئ کښ۔

لِتَبْتَغُوْا ، دا متعلق دے دَ شپے او ورځ دواړو سره ځکه چه دَ ورځ فضل طلب کیږی په تجارت وغیره سره او دَ شپے هم فضل طلب کیږه په عبادت کولو سره ، یا دا متعلق دے صرف دَ اٰیة النهار سره او متعلق دَ شپے پټ دے لکه په سورة قصص ۷۳ کښ په دے آیت کښ دلیل دے چه حساب کول په شمر سره جائز دی ۔ لیکن په هلال سره حساب کول فرض کفائی دی۔ وَالْحِسَابَ دَ دینه مراد حساب دَ ورځو او دَ هفتو او دَ میاشتو دے، او فَصَّلْنٰهُ تَفْصِيْلًا ، دا سے دی لکه تبیانا لکل شیٔ، مرا تر ینه ضروریات دَ دین دی یا مراد دَ دینه دا دے چه شپه او ورځ او نمر سپوږمئ موږ جدا جدا کړی دی۔

۱۳ :۔ په دے کښ تخویف اخروی دے ۔ وَكُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ ، او طائر په معنیٰ دَ عمل سره دے که خیروی اوکه شر وی که دَ شپے کوی یا دَ ورځ نو دَ مخکښ آیت سره ربط راغے۔ یعنی هر انسان مکلف سره هغه عمل دے چه کړے ئے وی نو دَ ده په غاړه دے یعنی ده لره په دَ هغے جزاء سزا ضرور ورکولے کیدے شی ، یا طائر په معنیٰ دَ قسمت دی۔ یعنی سعادت او شقاوت ۔ یعنی دَ تقدیر په وجه سره هر انسان سره سعادت یا شقاوت لازم دے ۔

او فِيْ عُنُقِهٖ ، په عرب کښ ذکر کیږی دَ پاره دَ لزوم او دَ ذمه داری۔

بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ﴿۱۴﴾
ستا نفس نن ورځ په تا باندے حساب کوونکے۔
مَنِ اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي
چا چه هدایت اوموندلو نو یقیناً هدایت ئے اوموندلو
لِنَفْسِهِ ۚ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا
دپاره د ځان خپل او څوک چه بے لارے شو نو یقیناً
يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ
بے لارے کیږی وبال په هغه باندے وی، او نشی پورته کولے هیڅ پیټی والا
وِزْرَ أُخْرَىٰ ۗ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ
پیټی د بل چا، او مونږ نه یو عذاب ورکوونکی
حَتَّىٰ نَبْعَثَ رَسُولًا ﴿۱۵﴾ وَإِذَا أَرَدْنَا
تر دے پورے چه اولیږو رسول۔ او کله چه اوغواړو مونږ

كِتَابًا يَلْقَاهُ مَنشُورًا، مراد د دینه عملنامه ده چه پاڼړے اړول نه غواړی پخپله په څور اور وی۔
۱۴ :- دا هم تخویف کښ داخل دے او مطلب دا دے که اُمی وی او که لوستونکی وی لیکن خپل کتاب د اعمالو په پخپله اولولی او داسے په سورة القیامه ۱۴ آیت کښ هم دی۔
د اِقْرَأْ، نه مخکښ لفظ د یُقال پټ دے۔
۱۵ :- په دے کښ اشار د عملونو رد هغه عملونو چه په عملنامه کښ لیکلے شوی دی) او نتیجه د حساب ذکر کوی چه هر کس د خپل عملنامه نتیجه د خیر یا د شر به اوموهی، په بل چا باندے بوج نشی راتلے۔
وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ، دا رد دے په هغه چا باندے چه عمل کوی او وائی چه ما ته فلانی وئیلے دی ازار گناه به هغه

أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا

چه هلاک کړو یو کلے نو حکم اوکړو عیش پرستو دَ هغے کلی ته (دَ توحید)

فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ

نو نافرمانی اوکړی په هغے کښ نو پوره شی په هغوی باندے فیصله دَ عذاب

باندے وی۔

وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ، مراد دَ دینه عذاب دنیوی دے چه هغه موقوف دے په رسول لیږلو باندے یعنی خبر رسولو باندے اګرچه په واسطه دَ نائب دَ رسول وی دا رنګ په سورة هود ۱۱۷ کښ او انعام ۱۳۱ کښ ذکر دی۔ او دلیل دے په دے خبرے باندے چه چاته دعوت دَ حق نه وی رسیدلے نو هغه مستحق دَ عذاب نه دے او هرچه عذاب اخروی دے نو بعضے اهل علمو وئیلی دی او دا دَ امام ابوحنیفهؒ نه هم روایت دے چه په باب دَ توحید او دَ ایمان کښ صرف تنبیه ضروری ده۔ او توحید حاصلیږی په عقل سره او په داعی سره، نو هر کله چه عقل پکښ وی او دعوت ورته نه وی رسیدلے نو دَ ایمان او دَ توحید په باره کښ به ترینه تپوس کیدلے شی او اکثر محدثینو وئیلی دی چه دا آیات او داسے نور آیا نو نه عام شته دے چه مراد ئے دا دے چه په غیر دَ رسیدلو دَ دعوت نه عذاب اخروی هم نه ورکوی دا قول غوره دے۔ او پدے باندے دَ بخاری دَ یو حدیث سره اعتراض کیدیشی چه په هغے کښ وئیلے دی چه دَ اُور دَ پاره به الله تعالیٰ په آخرت کښ نور خلق پیدا کړی نو هغوی ته خو دعوت نه دے کړے شوے او اور ته به داخلیږی ؟

دَ دے جواب تفسیر ابن کثیر ذکر کړے دے چه دا په راوی باندے قلب راغلے دے په اصل کښ دا جمله په باره دَ جنت کښ ده۔ او دَ جهنم په باره کښ خو صحیح روایت کښ راغلی دی چه الله تعالیٰ به په هغے کښ خپل قدم کیږدی نو هغه به

فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا ⑯ وَكَمْ اَهْلَكْنَا

نو تباه کړو مونږ هغوی لره په لوئے تباهئ سره - او ډیر هلاک کړیدی مونږ

مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ بَعْدِ نُوْحٍ ؕ

پیړئ روستو د نوح علیه السلام نه،

وَكَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ

او پوره دے ستا رب په گناهونو د بندګانو باندے

دک شی او دا رنګ ابن کثیر د دے آیت د لاندے حکم د اهل فترة او د اطفال المشرکین په تفصیل سره ذکر کړے دے -

سلا :- پدے آیت کښ تخویف دنیوی دے او دا تفصیل د تیر شوی آیت دے یعنی هرکله چه الله تعالیٰ اراده د هلاک د یو قوم اوکړی نو د رسولانو په واسطه سره د هغے مالدارانو ته امر د توحید او د طاعت اوکړی لیکن هغوی مخالفت اوکړی نو عذاب پرے راشی، نو اشاره شوه چه هرڅه د الله تعالیٰ په ارادے سره کیږی لیکن الله تعالیٰ هغے له سبب هم جوړوی نو د اَمَرْنَا معنیٰ دا شوه چه اَمَرْنَا هُمْ بِالتَّوْحِيْدِ وَالطَّاعَةِ -
یا اَمَرْنَا، معنیٰ ډیرول دی یعنی ډیر کړو مونږ مالدارانو لره یعنی د هغوی مالونه وغیره په طور د استدراج سره ډیر شی ځکه چه په ژبه د عربو کښ کله امر په معنیٰ د کثر سره راځی او دا د ابن عباس او ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دے او امام بخاری د امر بنو فلان معنیٰ ډیر کړو مونږ فلانئ قبیله) ذکر کړے ده -
فَدَمَّرْنٰهَا تَدْمِيْرًا، تدمیر، اکثر په هغے کښ استعمالیږی چه هلاکت په یو قوم باندے په یو ځائے راشی او تتبیر عام دے که لږ لږ عذاب وی او که په یو ځائے وی-

خَبِيْرًا بَصِيْرًا ﴿١٧﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ

خبردار لیدونکے ۔ څوک چه غواړی دنیا ( په بدله د عمل

الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا

خپل ) نو ورکړو مونږ هغه لره په دے دنیا کښں

مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ ثُمَّ

څومره چه اوغواړو د چا دپاره چه مونږ اوغواړو بیا

جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ يَصْلٰهَا

مقرر کړے دے مونږ هغه دپاره جهنم داخل به شی ورته

مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿١٨﴾ وَمَنْ

بد وئیلے شوے رټلے شوے او څوک چه

سـ۱۷ :۔ په دے آیت کښں تخویف دنیوی دے په ذکر د اقوامو مکذبو سره ۔

او مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ، لفظ یې د دے وجے نه اُوئیلو چه ذکر د قوم نوح ته په آیت سـ۳ کښں اشاره تیره شوے ده۔

مِنْۢ بَعْدِ نُوْحٍ کښں اشاره ده چه د آدم علیه السلام نه تر نوح علیه السلام پورے خلق په توحید باندے وو د دے وجے نه په هغوی باندے عذاب نه دے راغلے۔

خَبِيْرًا، هغه ذات چه عالم وی د څیزونو په باطن او رازونو باندے۔

سـ۱۸ :۔ په دے آیت کښں تخویف اخروی دے هغه چا لره چه دین ذریعه گرځوی دپاره د دنیا او نه قصد کوی په هغے سره رضا د الله تعالیٰ،

او مَا نَشَآءُ، دلیل دے چه د انسان ټولے تمنا گانے نه حاصلیږی۔

او لِمَنْ نُّرِيْدُ، په دے کښ اشاره ده چه هر طلبګار د دُنيا ته هم دنيا نه حاصليږی هرځه د الله تعالىٰ په مشيت او ارادے پاندے موقوف دی او دارنګ د سورة شورىٰ په ۲۰ آيت کښ دی ليکن هغه مطلق مقيد دے په سبب د دے آيت سره۔

مَذْمُوْمًا، ذم (بدی) وئيلے شوے او ملامته کړے شوی ته وئيلے شی۔

او مَدْحُوْرًا، رټلے شوے شړلے شوے ۔ مذموم په نعمت د الله تعالىٰ کښ او مدحور په نقمت د الله تعالىٰ کښ۔

۱۹ :۔ پدے آيت کښ بشارت دے ۔ او سَعْيَهَا، د دېنه مراد هغه عمل دے چه د سنت سره موافق وی دارنګ ابن کثير ذکر کړے دے دا آيت دليل دے په دے خبره چه د عمل د قبوليت د پاره دوه شرطونه دی يو ايمان او دويم عمل موافق وی د سنت ۔

مَشْكُوْرًا، قبلول د عمل دی پداسے طريقه چه د هغے برکات په دنيا کښ ښکاريږی او په آخرت کښ هم ۔

عَطَآءِ رَبِّكَ ۚ وَمَا كَانَ عَطَآءُ

بخشش د رب ستا نه دے ، او نه دے بخشش

رَبِّكَ مَحْظُوْرًا ﴿٢٠﴾ اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا

د رب ستا بند کړے شوے . او ګوره چه څه رنګ غوره والے ورکړے مونږ

بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۭ وَلَلْاٰخِرَةُ

بعضو د دوی لره په بعضو باندے ، او خامخا آخرت

اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ وَّاَكْبَرُ تَفْضِيْلًا ﴿٢١﴾

ډیر لوبو درجو والا دے او ډیر لوے فضیلت والا دے .

ف۲۰ .- دا آیت د مخکښ دواړو آیتونو سره متعلق دے او په دے کښ اشاره ده دے خبرے ته چه الله تعالیٰ د مشرکانو حاجتونه هم پوره کوی او د مؤمنانو هم پوره کوی.

عَطَآءِ رَبِّكَ ، مراد د دے نه عطاء ده په دنیا کښ او دا مصداق د رحمانیت دے او په دیکښ رد دے په مشرکانو باندے چه د شرک کولو سره د هغوی حاجتونه پوره کیږی او هغوی دا په خپل حجت کښ پیش کوی.

ف۲۱ .- په دے آیت کښ ذکر دے د دے خبرے چه عطاء د الله تعالیٰ په دنیا کښ په طریقه د مساوات سره نه ده بلکه په طریقه د فرق سره ده.

وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ ، په دیکښ اشاره ده چه د دنیا ترقی طلب کول نه دی پکار بلکه طلب د آخرت پکار دے . او اکبر اسم تفضیل کښ اشاره ده چه په دنیا کښ هم تفاوت شته لیکن تفاوت د آخرت ډیر زیات دے.

لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ

مه جوړوه د الله تعالیٰ سره حقدار د بندګۍ بل

فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا ﴿۲۲﴾ ع ۱۳

نو ناست به پاتې شې بد وئیلے شوے شرمېدلے.

وَ قَضٰی رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْۤا اِلَّاۤ

او فیصله کړیده ستا رب چه مه کوئ بندګی سوا د الله تعالیٰ نه

اِیَّاهُ وَ بِالْوَالِدَیْنِ اِحْسَانًا ؕ

د بل چا او د مور او پلار سره ښېګړه کوئ،

۲۲۔ د دے آیت نه شروع کیږی ذکر د هغه دریوڅیزونو چه په هغے سره عذاب دفع کیږی او دا امور سبب د حصول د درجاتو د آخرت دی چه په لفظ د اکبر درجات کښ ذکر شول۔ نو اول په هغے کښ د شرک نه نهې کیدل دی او په یکښ منع ده د شرک فی الالوهیت نه۔

مَذْمُوْمًا۔ هغه چا ته وئیلے کیږی چه د هغه بدئ او عیبونه وئیلے کیدلے شی۔

او مَخْذُوْلًا۔ هغه چا ته وائی چه د ضرورت په وخت کښ د هغه دوست او مددګار نه وی نو مشرک به په ورځ د قیامت په دغسے حال کښ شی چه نه یے الله تعالیٰ مدد کوی او نه به یے خپل معبودان، دا رنګ مذموم به وی د طرف د بندګانو نه او مخذول به وی د طرف د الله تعالیٰ نه۔

او فَتَقْعُدَ، دلالت کوی چه دا حال به همیشه وی ځکه چه قعود دلالت کوی په مضبوط والی او دا رنګ اشاره ده چه مذموم او مخذول سړی د اودریدلو طاقت نه لری نو مجبوراً به ناست وی۔

إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ الْكِبَرَ

که چرے اورسی ستا په ژوند کښ بوډا والی ته

أَحَدُهُمَا أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُل

یو دَ دے دواړو نه یا دواړه نو مه وایه

لَّهُمَا أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُل

دوی ته اُف قدرے او زورنه مه کوه دوی ته او وایه

لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا ﴿٢٣﴾ وَاخْفِضْ لَهُمَا

دوی ته وینا ادب ناکه - او کوز کړه دوی ته

۲۳ :- په دے آیت کښ اولًا رد دے دَ شرک فی العبادات او دا علت دے دَ تیر شوی آیت کښ دَ نهی دَ پاره -

وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا ، دَ دے ځائے نه دوېم امر دے دَ پاره دَ دفع دَ عذاب چه هغه احسان کول دی دَ مخلوق دَ الله تعالیٰ سره او په دے آیت کښ درے اداب ذکر دی دوه نواهی او یو امر او احسان دَ والدین توحید دَ الله تعالیٰ سره متصل ذکر کړے دے دلته او په سورة بقره ۸۳ ، او سورة النساء ۳۶ کښ دَ هغے -

اوله وجه دا ده چه معلومه شی چه دَ الله تعالیٰ په بندګۍ کښ مور او پلار به هم نه شریکوئ بلکه هغوی سره به صرف احسان کوئ -

دوېمه وجه دا ده چه حق دَ مور او پلار دا نه دے چه په شرک او په ګناه کښ دَ هغوی طاعت اوکړیشی بلکه دَ هغوی حق احسان کول دی - او دَ احسان درے طریقے دی -

اول دا چه دَ هغوی خبر به لټوئ په دعوت الی الحق سره په شان دَ ابراهیم علیه السلام -

او دوېمه طریقه دا ده چه دَ هغوی خدمت به کوئ -

جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ

وزر دَ عاجزئ دَ شفقت دَ وجے نه

وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِي

اَوايه اے ربه زما رحم اوکړے په دوی باندے لکه چه دوی زما پالنه کړيده

صَغِيرًا ﴿٢٤﴾ رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا

په وړوکوالی کښ۔ رب ستاسو ښۀ پوهه دے په هغه څه

فِيْ نُفُوْسِكُمْ ؕ اِنْ تَكُوْنُوْا

چه ستاسو په زړونو کښ دی ، که تاسو یه زړه کښ

او دریمه طریقه مال خرچ کول دی په هغوی باندے۔

وَلَا تَنْهَرْهُمَا، ابن کثیر وئیلی دی چه مراد دَ دینه لاس پورته کول دی په هغوی باندے په غصّے سره او صدور دَ فعل قبیح او دَ زورنے کلمات وئیل۔

فَلَا تَقُلْ لَّهُمَا اُفٍّ ، اف ، دا آواز دے چه صادریږی دَ خُلے نه په وخت دَ بدګنړلو دَ یو شیز کښ نو مراد دَ اف نه هر یو ردی کلام دے چه هغه سبب دَ خفګان دَ مور او پلار وی۔

قَوْلًا كَرِيْمًا ، کریم ، هغه وینا ده چه په عزت باندے دلالت کوی۔

۲۴:۔ وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ ، په دے آیت کښ دوه آداب دی په صیغه دَ امر سره او دا کنایه ده دَ شفقت او دَ رحمت نه دَ هغوی سره لکه سورة حجر آیت ۸۸ کښ ذکر شوی دی۔ او دلته ئے لفظ الذل ذکر کړے دے ځکه دلته معنیٰ دَ طاعت او خدمت دَ وجے دَ رحم دَ زړه نه یه وی نه دَ ریا او نه دَ عادت نه۔

رَبَّيٰنِي ، ربیانی ، په اصل کښ ربانی وؤ لیکن قاعده ده چه په اسے حال کښ دویمه باء په یاء سره بدلیږی۔

وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا ، په یکښ اشاره ده دے خبرے ته چه

صٰلِحِيْنَ فَاِنَّهٗ كَانَ لِلْاَوَّابِيْنَ

اخلاص مند یئ نو یقیناً اللّٰه تعالیٰ دے تو به کوونکو ته

غَفُوْرًا ﴿۲۵﴾ وَاٰتِ ذَا الْقُرْبٰى حَقَّهٗ

بخنه کوونکے ۔ او ورکوه خپلوانو ته حق د هغوی

وَالْمِسْكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ وَلَا تُبَذِّرْ

او مسکین ته او مسافر ته او مه خرچ کوه مال

تَبْذِيْرًا ﴿۲۶﴾ اِنَّ الْمُبَذِّرِيْنَ كَانُوْٓا

په بے ځایه خرچ کولو سره (هیڅ قسم) ۔ یقیناً بے ځایه خرچ کوونکی دی

اولاد حق د مور او پلار ته شی پوره کولے نو دا دعا د هغے قائم مقام ده ۔

۲۵ :- په دیکښ اشاره ده صحیح کولو د نیت ته په احسان د مور او پلار کښ ۔

صٰلِحِيْنَ، نه مراد اخلاص کوونکی د نیت دی په احسان د والدینو کښ ۔

فَاِنَّهٗ كَانَ لِلْاَوَّابِيْنَ غَفُوْرًا، په دے کښ اشاره ده دے خبرے ته چه دا دواړه صفتونه چه صالحین او اوابین دی د دوی یو بل سره ملازمه ده ۔ اَوَّاب، هغه چا ته وائی چه د گناه نه توبه اوباسی او بیا چه کله گناه یاد وی نو استغفار وائی ۔

فائده :- حدیث صحیح کښ راغلی دی چه صلٰوة الاوابین په هغه وخت کښ دی چه زمکه په نمر باندے داسے گرمه شی چه د اوښانو د بچو خپے سوزوی او هغه وخت د ضحیٰ دے ۔ او دا خبره چه مشهوره ده په عامو خلقو کښ چه صلوٰة الاوابین د ماښام په وخت کښ نفل کول دی نو دا خبره غلطه ده ۔

۲۶ :- روستو د حق د والدینو نه نور درے حقدار ان په دے آیت کښ ذکر دی او په دیکښ دوه اداب ذکر کوی یو امر دویم نهی

او وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيْرًا ، تبذیرًا ، دیته وائی چه مال په ناحقه طریقے سره خرچ کړی اګرچه یو روپئ وی لکه په نذر دَ غیرالله کښ خرچ کول او په بدعاتو او رسموتو او په غیر ضروری څیزونو خرچ کول ۔

۲۷ :۔ دا علت دَ ما قبل نهی دے مبذر څکه ورور دَ شیطان دے چه شیطان باطل ته خلق رابلی نو مبذر دَ مال په ذریعه دَ شیطان امداد کوی ۔ دا رنګ شیطان دَ رب ناشکره دے نو دا سے مبذرهم ناشکرهٔ دے نو دواړه دَ یو بل سره مشابه شول دَ دینه تعبیر کړیدے په ورورولئ سره ۔

۲۸ :۔ په دے آیت کښ دَ یو ادب قولی ذکر دے په وخت دَ عدم قدرت کښ په حق ادا کولو باندے ۔ او په دے ادب کښ دیته اشاره ده چه په وخت دَ اعراض کولو کښ دَ هغوی سپکول او بے عزتی کول منع دی ۔

او رَحْمَةٍ ، نه مراد وسعت دَ حال او دَ مال دے ۔

قَوْلًا مَّيْسُوْرًا ، مراد دَ دینه نرمه او خوږه خبره ده ، دویمه معنیٰ دا ده چه دوی له دعا او غواړه چه په دوی باندے سختی آسانه شی ۔

وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَىٰ

او مه کرځوه لاس خپل تړلے شوے دَ

عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ

غاړے سره او مه پرانیزه لاس خپل په پوره پرانستلو سره

فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَّحْسُورًا ﴿٢٩﴾ إِنَّ

نو ناست به پاتے شے ملامته ستومانه (پښیمانه) یقینًا

رَبَّكَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ

رب ستا فراخوی رزق چالره چه اوغواړی

وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ خَبِيرًا ﴿١٠﴾

او تنګوی ، یقینًا الله تعالیٰ په خپلو بندګانو باندے خبردار دے

۲۹ :- په دے آیت کښ بیان دَ دوه ادابو دے په صیغه دَ نهی چه حاصل دَ هغے یو ادب دے چه هغه میانه روی کول دی په خرچ کولو او په صدقو کولو کښ او په اوله جمله کښ ئے تشبیه دَ بخیل کړیده دَ هغه چا سره چه لاس ئے دَ څټ سره تړلے شوے وی نو دَ هغه لاس بند وی دَ تصرف کولو نه په مال کښ نو دغه حال دَ بخیل دے چه خپل مال ته ئے لاس نه ورسیږی۔
او دویمه جمله کښ مطلب دا دے چه مال بے ځایه مه خرچ کوه اګرچه مباح وی۔
فَتَقْعُدَ ، دیکښ اشاره ده چه دَ ډیرے ملامتیا او پښیمانتیا دَ وجے نه به داسے شے چه دَ ځائے نه به نه شے پاڅیدے۔
مَلُومًا ، دَ اولے جملے سره تعلق لری۔
او مَحْسُورًا ، دَ دویمے جملے سره تعلق لری۔

بَصِيْرًا ﴿۳۰﴾ وَلَا تَقْتُلُوْٓا اَوْلَادَكُمْ

لیدونکے دے . او مہ وژنئ بچی خپل

خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ ؕ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ

دَ وجے دویرے دَ لوگے نه موږ روزی ورکوؤ دوی لره

وَاِيَّاكُمْ ؕ اِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْاً

او تاسو لره ، یقینًا دَ دوی وژل دہ گناه

كَبِيْرًا ﴿۳۱﴾ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰىٓ اِنَّهٗ

لویه . او مه نزدے کیږئ زنا ته یقینًا دا زناکاری

كَانَ فَاحِشَةً ؕ وَسَآءَ سَبِيْلًا ﴿۳۲﴾

دَ بے حیایئ ، او بده لاره ده .

ف۳۰ :- په دے آیت کښ ترغیب دے انفاق ته چه په انفاق کولو سره رزق نه تنگیږی ، نو په دے آیت کښ دَ تیرشوؤ ادابو علت بیانوی ، هغه دا دے چه الله تعالیٰ ښه پوهه دے په مصالحو دَ بندګانو خپلو چه چاله فراخی دَ رزق ورکوی او چاله تنگسیا ورکوی . دَ دے وجے نه تیرشوی آداب یے تاسو ته او خودل چه هغه آداب په مینځ دَ فراخ رزق والا او دَ تنگ رزق والا کښ دی .

ف۳۱ :- دَ دے آیت نه تر ف۳۹ آیت پورے دریم څیز ذکر کوی دَ پاره دَ دفع دَ عذاب چه هغه ظلمونو نه ځان بچ کول دی او دلته دَ هغے نه اووه منهیات او درے مامورات ذکر شوی دی په دے آیت کښ اوله نهی ده دَ قتل دَ اولاد نه . دَ دے آیت تشریح په تفسیر دَ سورۃ انعام کښ آیت ف۱۵۱ کښ تیره شوی ده .

خِطْاً ، دا دلیل دے چه دَ خطا اطلاق کله په گناه کبیره هم کیږی .

ف۳۲ :- په دیکښ دویمه نهی ذکر شوی ده دَ ظلم نه چه هغه زنا ده ، او لفظ دَ وَلَا تَقْرَبُوْا ، دلالت کوی په دے باندے چه دَ زنا اسباب او دواعی ( لیدلے ورکوونکی څیزونه ) هم حرام دی .

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ
او مه وژنئ نفس لره هغه چه حرام کړیدے
اللّٰهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَمَن قُتِلَ
الله تعالی وژل د هغه مګر په حق شرعی سره او څوک چه اووژلے شو
مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ
په ظلم سره نو یقیناً ورکړیدے مونږ وارث د هغه لره
سُلْطَانًا فَلَا يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ
اختیار نو زیاتے دے نه کوی په وژلو کښ
إِنَّهُ كَانَ مَنصُورًا ﴿٣٣﴾ وَلَا تَقْرَبُوا
یقیناً دغه سره امداد کړے شوے دے۔ او مه نزدے کیږئ
مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ
مال د یتیم ته مګر په داسے طریقه چه وی

وَسَآءَ سَبِيلًا، کښ اشاره ده چه د زنا کولو په انسان کښ قبیح عادات پیدا کیږی۔

۳۳:- په دیکښ دریمه نهی ده د ظلم نه چه هغه قتل دے بغیر د سبب شرعی نه۔

سُلْطَانًا، د دینه مراد قدرت د قصاص دے په امداد د بادشاه سره یا د دینه مراد حجت شرعی دے د پاره د قصاص۔

فَلَا يُسْرِف فِّي الْقَتْلِ، اسراف په قتل کښ په دریو طریقو سره دی یو دا چه د قاتل په ځائے بل سړے قتل کړی، دویم دا چه د یو په بدل کښ ډیر کسان قتل کړی، او دریم دا چه د مقتول نه اندامونه پرے کړی نو دا ټول حرام دی۔

إِنَّهُ كَانَ مَنصُورًا، یعنی اسلامی حکومت او نورو مسلمانانو له پکار دی چه په قصاص اخستلو کښ د ده امداد اوکړی۔

أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ ۖ

خاښته (شرعًا) تر دے پورے چه اورسی دے خوانۍ خپلې ته

وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ ۖ إِنَّ الْعَهْدَ

او پوره کوئ لوظ لره یقینًا دَ لوظ په باره کښ به

كَانَ مَسْئُولًا ﴿٣٤﴾ وَأَوْفُوا الْكَيْلَ

تپوس کیدے شي . او پوره کوئ پیمانه

إِذَا كِلْتُمْ وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ۚ

کله چه پیمانه کوئ او تول کوئ په تله برابر سره ،

ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴿٣٥﴾

دا غوره کار دے او خاښته انجام والا .

۳۴ :- په یکښ غلورمه نهی ده دَ ظلم نه چه هغه دَ یتیم مال خوړل دی ، او دَ دے آیت تشریح په تفسیر دَ سورة انعام آیت ۱۵۲ کښ تیره شویده په دے آیت کښ یو امر دے او دَ عهد نه مراد هر هغه شے دے چه الله تعالیٰ په هغے امر کړے وی یا ئے دَ هغے نه نهی کړے وی . او دا رنګ عقدونه کول په کورنۍ کښ .

مَسْئُولًا ، تپوس کیدے شي دَ هغے دَ بے وفایئ او دَ نقص په باره کښ .

۳۵ :- په دے آیت کښ دوه اوامر دی چه دَ هغے نه خلاف کول ظلم دے .

وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ ، القسطاس میزان دے په لغت دَ عربو کښ اګر چه عام عرب په دے باندے خبر نه وو او لغت دَ رومیانو دَ دے سره موافق دے . لیکن داسے وینا کول غلطه ده چه وائی چه دا لفظ دَ لغت دَ روم نه اخستلے شوے دے . ځکه چه قرآن خالص عربی کتاب دے په دے کښ عجمی لفظ نشته .

ذَٰلِكَ خَيْرٌ ، په یکښ دنیوی فائدو ته اشاره ده .

وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ؕ

او مه زئ په هغه څيز پسے چه نه وى تالره په هغے باندے هيڅ دليل ،

إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ

يقيناً غوګونه او سترګے او زړونه

كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا ﴿٣٦﴾

دَدے ټولو په باره کښ دَ هرچا نه به تپوس کيدے شى .

وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ، اشاره ده راتلونکى فائدے ته . تَأْوِيل ، په معنىٰ دَ مرجع او دَ عاقبت دے .

۳۶ : په دے کښ پنځمه نهى ده دَ ظلم نه چه هغه بهتان لګول او بے دليله تابعدارى کول دى .

وَلَا تَقْفُ ، دَ دے معنى يو دا ده چه طعن مه وايه چا باندے دَ هغے خبرے چه تا سره دَ هغے علم نه وى او مراد دَ دے نه بهتان لګول دى او بله معنى ئے دا ده چه تابعدارى مه کوه دَ هغه خبرے او دَ حکم چه په هغے باندے دليل شرعى نه وى او دواړه معانى قرطبى ذکر کړيدى .

عِلْمٌ ، لفظ يقين او غلبے دَ ظن دواړو ته شامل دے او په دے آيت کښ دَ درے اندامونو ذکر دے او دَ دوى په باره کښ تپوس کول دا دے چه دا درے قوتونه ولے په ناحقه استعمال کړے شوے دى . او دويم قسم تپوس دا دے چه په غوږ سره ئے څه خبره نه وى اوريدلے او دعوى کوى چه ما آوريدلے ده او دا رنګ په سترګو ئے څه شے نه وى ليدلے او دعوىٰ کوى چه ما ليدلے دے او په زړه کښ ئے په يو څيز باندے فکر نه وى کړے او دعوى کوى چه زهٔ په هغے عالم يم نو دَ دے دروغ ويلو تپوس به کيدے شى .

وَلَا تَمْشِ فِى الْاَرْضِ مَرَحًا ۚ

او مه ګرځه په زمکه کښې په لويئ کولو سره

اِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْاَرْضَ وَلَنْ

يقيناً ته نه شې شلولے زمکه او چرے نشې

تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُوْلًا ﴿۳۷﴾ كُلُّ

رسیدلے غرونو ته په دنګوالی سره - دا ټول

۳۷:- په دے کښې شپږمه نهی ده دَ ظلم ته چه هغه تکبر او لوئی کول دی۔

وَلَا تَمْشِ فِى الْاَرْضِ مَرَحًا ، مراد دَ مشي مرحًا نه تکبر کول دی چه دَ هغے اثر په ګرځیدلو کښې ښکاره کیږی ، یعنی تکبر اصل په زړه کښې دے لیکن اثر یې په ظاهر کښې ښکاره کیدل ډیر قبیح دی - او دَ مؤمنانو په صفت کښې په سورة فرقان ۶۳ کښې مشي هونًا راغلے ده او دَ دے نوره تشریح په سورة لقمان ۱۸ کښې شته دے او په مشي مرحًا کښې رقص او نڅا کول هم داخل دی او تفسیر قرطبی کښې دَ هغے ډیره بدی بیان کړے ده - او هغه پیران چه وخت دَ ذکر کښې رقص او نڅا کوی په هغوی باندے سخت رد کړے دے -

اِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْاَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُوْلًا ، حاصل دا دے چه لوئی خو دَ درونِد والی او دَ قوت دَ وجے نه وی یا دَ غټ والی او دَ دنګوالی دَ وجے نه وی نو چه دَ اول په وجه زمکه نه شے شلولے او دَ دویم په وجه دَ غرونو سرته نشے رسیدلے یعنی انسان کښې دا دواړه صفتونه نشته نو تکبر ولے کوی - دا رنګ نه عاجزئ دَ هغه کار نه چه نور خلق تر ینه هم عاجز دی چه دا دوه ذکر کړے شوے کارونه دی - نو تکبر په خلقو باندے ولے کوی -(ابن جریر) -

ذٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهُ عِنْدَ رَبِّكَ
په دے کښ خراب کارونه ستا د رب په نیز باندے
مَكْرُوهًا ﴿٣٨﴾ ذٰلِكَ مِمَّا أَوْحَىٰ إِلَيْكَ
ناروا دی ۔ دا چه ذکر شول د هغے نه دی چه وحی کړیده تاته
رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ ۗ وَلَا تَجْعَلْ
رب ستا د حکمت د خبرو نه ، او مه گرځوه
مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ فَتُلْقَىٰ فِي
د الله تعالیٰ سره حقدار د بندگۍ بل نو ته به اوغورځولے شے په
جَهَنَّمَ مَلُومًا مَّدْحُورًا ﴿٣٩﴾
جهنم کښ ملامته کړے شوے رټلے شوے ۔

۳۸ ۔ ذٰلِكَ ، اشاره ده ماقبل ذکر کړے شوے اوامرو او نواهی ته او سیئه نه مراد اوامرو د هغے پریښودل دی او د نواهی د هغے ارتکاب کول دی ۔

مَكْرُوهًا ، او مکروه په شرع کښ عین حرام دی د دے وجے نه اطلاق د دے په مکروه تنزیهی باندے مُحْدَثْ دے ۔

۳۹ ۔ دا تائین د ماقبل احکامو دے یعنی دا احکام وحی د الله تعالیٰ ده او دا حکمت دے او پدے کښ تفسیر د حکمت نه اشاره ده کوم چه سورة النحل ۱۲۵ کښ تیر شویدے ۔ یعنی قرآن ټول حکمت دے او دا ذکر شوی احکام په هغے کښ بعضے حصّه ده ۔

او وَلَا تَجْعَلْ ..... آه ، کښ او ومه نهی د ظلم د شرک نه دوباره ذکر کړیده ، اشاره ده چه شرک د ټولو ظلمونو بیخ او جړ دے او هر کله چه په انسان کښ د شرک سره دغه ظلمونه هم موجود شی نو هغه ډیر ملامته او د زجرونو لائق وی د دے وجے نه دلته ئے ملوم مدحور ذکر کړو ۔ او په ۲۲ آیت کښ هر کله چه مخکښ ئے فضیلتونه ذکر کړل او دا رنګ د مشرک خیال دا دے چه زما الله به

أَفَأَصْفَاكُمْ رَبُّكُم بِالْبَنِينَ

آیا نو غوره کړی یئ تاسو رب ستاسو په ځامنو سره

وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِنَاثًا ۚ

او نیولی دی د ملائکو نه لوڼړه ،

إِنَّكُمْ لَتَقُولُونَ قَوْلًا عَظِيمًا ﴿٤٠﴾

یقینًا تاسو خامخا وائی وینا لویه (د رد نه) -

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ

او یقینًا بیان (د توحید) په تفصیل سره کړیدے موږ په دې قرآن کښې

لِيَذَّكَّرُوا وَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا نُفُورًا ﴿٤١﴾

د دے د پاره چه نصیحت قبول کړئ او نه زیاتوی دا قرآن دوی لره مګر نفرت -

ما لره مدد او فضیلت راکوی نو د هغوی په رد کښې ئې منوم مخذول ذکر کړے وو -

۴۰ :- هر کله چه مخکښې آیت کښې منع کول وو د عام شرک فی اللالوهیت نه چه مشرکین بالملائکه پکښې داخل وو نواوس په دے آیت کښې زجر دے خاص مشرکین بالملائکه ته چه هغوی وئیل چه ملائک بنات د الله تعالی دی او دا د ملوم او مدحور تفسیر دے چه مشرکینو لره زجر ورکوی او دا مدحوریت دے ځکه چه په زجر کښې دا دواړه صفتونه شته دے - او د دے تفصیل په سورة نحل ۵۷ کښې، سورة صافات ۱۴۹ او سورة زخرف ۱۶ آیت کښې شته دے -

۴۱ :- په دے آیت کښې ترغیب دے قرآن ته او بیا زجر دے د قرآن نه نفرت کوونکو ته او سبب د نفرت دا دے چه پدیکښې رد دے د دوی په شرک او په ظلمونو لکه چه مخکښې تیر شول -

لِيَذَّكَّرُوا ۔ د دینه مخکښې لفظ د التوحید مراد دے یعنی لقد صرفنا

قُلْ لَّوْ كَانَ مَعَهٗۤ اٰلِهَةٌ كَمَا
ته اووایه که چرې وې د الله تعالیٰ سره نور حقدار د بندګئ لکه چه
يَقُوْلُوْنَ اِذًا لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِی
دوی وائي نو دغه وخت خامخا طلب کړې به وې دوی خاوند
الْعَرْشِ سَبِيْلًا ﴿٤٢﴾ سُبْحٰنَهٗ
د عرش ته یو لار - پاک دې الله تعالیٰ

فی هذا القرآن التوحید یعنی توحید او دلیلونه او وعظونه قسما قسم بیان کړیدی او هرکله چه دلته مراد توحید دے نو مفعول ئے ذکر نه کړو ځکه چه هغه د مخکښ او روستو آیاتونو نه معلوم دے. او د دے سورت په ۸۹ آیت کښ دلیلونه او وعظونه مراد دی نو هلته ئے من کل مثل لفظ ذکرکړیدے.

۴۲:- په دے کښ رد دے په شرک فی الالوهیت باندے او اِذًا لَّابْتَغَوْا اِلٰى ذِی الْعَرْشِ سَبِيْلًا، کښ مطلب دا دے چه د دوی د معبودانو که د الله تعالیٰ سره په الوهیت کښ څه حصه وے نو د الله تعالیٰ ته (چه خاوند د عرش دے) مطالبه د خپلے حصے به ئے کولے او په دے سره به ضرور جدال پیدا کیدے لکه په سورة مؤمنون ۹۱ کښ دی. یا دا معنی چه دا مشرکان د خپلو معبودانو په باره کښ عقیده لری چه دا زمونږ شفعاء دی نو لازم دا ده چه دا شفعاء الله تعالیٰ ته لار د نزدیکت طلب کوی او څوک چه طلب کوونکے د نزدیکت وی نو هغه خو عاجز وی. نو اله نشی کیدے او دلته دویمه توجیه غوره ده په قرینه د ۵۷ سره چه په هغے کښ د صالحینو معبودانو ذکر دی او لفظ د كَمَا يَقُوْلُوْنَ، هم پدے باندے دلیل دے او په سورة المؤمنون ۹۱ آیت کښ اوله توجیه مراد ده . او دغه وجه د فرق په مینځ د دواړه آیاتونو کښ ده.

وَتَعٰلٰى عَمَّا يَقُوْلُوْنَ عُلُوًّا

او لوړ دے دَ هغه نسبتونو نه چه دوی الله تعالیٰ ته کوی په لوېئ

كَبِيْرًا ﴿۴۳﴾ تُسَبِّحُ لَهُ السَّمٰوٰتُ

ډیرے سره ۔ پاکی وائی الله تعالیٰ لره آسمانونه

السَّبْعُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ط

اووه او زمکه او هغه څوک چه په دے کښ دی،

وَاِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ

او نشته هیڅ شے مګر تسبیح وائی

بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ

سره دَ حمد دَ هغه ته لیکن نا سو نه پوهیږئ

تَسْبِيْحَهُمْ ط اِنَّهٗ كَانَ حَلِيْمًا غَفُوْرًا ﴿۴۴﴾

په تسبیح دَ دوی باندے، یقینًا الله تعالیٰ دے صبرناک بخنه کوونکے ۔

۴۳ :۔ په دے کښ نتیجه دَ ماقبل آیت ده او دعوٰی دَ توحید ده۔ سُبْحٰنَهٗ ، کښ اشاره ده رد دَ شرک بالملائکه ته او وَتَعٰلٰی، کښ اشاره ده ردِ دَ شرک فی الالوهیت دَ نورو عبادو صالحینو ته چه دا دواړه قسمونه مخکښ آیا تونو کښ ذکر شویدی۔
عُلُوًّا كَبِيْرًا ، په دے کښ اشاره ده چه علو دَ الله تعالیٰ په ښکاره دلیلونو سره ثابت ده۔
۴۴ :۔ په دے کښ علت دے دَ پاره دَ سبحانه او دعوٰی دَ توحید ده په بله طریقه ، او پدے سره تسبیح دلالةً مراد ده ، یعنی دَ هر څیز حال او عجز دَ الله تعالیٰ په توحید باندے دلالت کوی لیکن اے مخاطبینو (مشرکانو) تاسو په هغے کښ فکر نه کوئ، او یا تسبیح حقیقتًا مراد ده او تسبیح دَ هر څیز دَ هغه دَ شان مناسب وی او په دے توجیه سره۔

وَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ

او کله چه ته لولے قرآن نو پیدا کړو مونږ په مینځ ستا

وَبَيْنَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ

او په مینځ د هغے کسانو کښ چه ایمان نه لری په آخرت باندے

حِجَابًا مَّسْتُورًا ﴿٤٥﴾ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ

پرده پټه (مضبوطه) - او پیدا کړیدی مونږ ددوی په

قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَن يَفْقَهُوهُ

زړونو باندے پردے (منع کوونکی) د پوهے د قرآن نه

---

وَمَنْ فِيهِنَّ وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ ، کښ په تخصیص کیدے شی سِوا د کافرانو او مشرکانو نه - او دویمه توجیه غوره ده ځکه چه په احادیثو سره تسبیح د کانړو ، او تسبیح د طعام او تسبیح د ونانو او تسبیح د اونو او د ستنے د مسجد نبوی ثابت ده -

حَلِيمًا ، کښ اشاره ده چه د دے تسبیح د وجے نه الله تعالیٰ د مستحقینو د عذاب نه عذاب روستو کوی -

او غَفُورًا ، کښ اشاره ده چه په دے تسبیح سره د ګنهګارو خلقو ګناهونه معاف کوی -

۴۵ - په دے آیت کښ زجر دے په انکار د قرآن سره او مراد د حجاب مستور نه حجاب د ضد او د عناد او د جهل دے او یا مراد د دینه حجاب حقیقی دے په طریقه د خرق عادت سره یعنی د دوی په سترګو داسے پردے راشی چه قرآن والا نه وینی او دا په طریقه د عَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ سره دے - او مستور نه مراد دا دے چه دا حجاب ستاسو نه پټ دے - یا مستور په معنیٰ د ساتر دے یعنی پټوونکے -

وَفِيٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَاِذَا ذَكَرْتَ

او په غوږونو دَ دوی کښې دروند والے، او کله چه یاد کړے

رَبَّكَ فِي الْقُرْاٰنِ وَحْدَهٗ وَلَّوْا

رب خپل په قرآن کښې په یو والی سره نو اوګرځی دوی

عَلٰٓى اَدْبَارِهِمْ نُفُوْرًا ﴿۴۶﴾ نَحْنُ

په خپلو شاګانو بانډے نفرت کوونکی ۔ مونږ

۴۶ :- په دیکښې دَ زړونو او دَ غوږونو افت یې دَ دوی دَ پاره ذکر کړو لکه ﴿خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ ۚ وَعَلٰى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ﴾ (سورة بقره ۷) او دارنګ انعام ۲۵ کښې۔
وَقْرًا ، دَ دے مراد کوڼ والے دے لکه دَ صُمٌّ، اطلاق چه شوے دے یا مراد دَ دینه شرکی قصے او خرافات دی چه دَ هغے نه دَ دوی غوږونه ډک دی نو دَ توحید او حق آواز یکښې نه ځائیږی او په دے وارو کښې اشاره ده چه دَ قرآن کریم نه دَ فائدے اخستلو دَ پاره مانع په دوی کښې موجود دے ۔ او بیا زجر دے په انکار دَ توحید سره ، یعنی قرآن نه هسے ناست وی لیکن هر کله چه په قرآن کښې دَ توحید مسئله راشی چه صرف الله تعالٰی نه مراد غواړئ او صرف دَ هغه بندګی کوئ او بل څوک ورسره شریک مه جوړوئ نو دوی دَ دینه نفرت شروع کړی او دارنګ په سورة صافات ۳۵ او سورة ص ۵ او سورة زمر ۴۵ او سورة مؤمن ۱۲ کښې دی ۔
او دَ وَحْدَهٗ ، نه لفظ دَ توحید اخستلے شوے دے نو توحید شرعی لفظ دے ۔
نُفُوْرًا ، مصدر دے او تمیز دے علت دے دَ وَلَّوْا دَ پاره او دَ بعضو په نیز دا جمع ده او حال دے ۔

أَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُونَ بِهٖٓ إِذْ

ښهٔ پوهيږو په هغه نيت دَ دوی چه دوی پرے غوږ ږدي کله

يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ وَإِذْ هُمْ

چه دوی غوږ کيږدي تا ته او کله چه دوی

نَجْوَىٰٓ إِذْ يَقُولُ الظّٰلِمُونَ

پټے جرګے کوی کله چه وائي ظالمان خلق

إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَّسْحُورًا ﴿٤٧﴾

تابعداری نه کوئ تاسو مګر دَ يو سړی چه جادو پرے کړے شويدے

اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ

اوګوره چه څه رنګ بيانوی ستا دَپاره صفتونه (دَ بدئ)

ف ۲۷:- په دے آيت کښ زجر دے په انکار دَ رسول سره او هغه ته يے مسحور اُوئيل او مسحور په معنیٰ دَ دهوکه کړے شوے يا په معنیٰ دَ محتاج دے خوراک او څښاک ته ، يا په معنیٰ دَ جادو کړے شوے دے په داسے طريقے سره چه عقل يے برباد شی۔ او دا فتوی دَ دوی په مکه کښ وه او په دغه وخت کښ په نبی صلی الله عليه وسلم جادو نه وؤ کړے شوے دوی دروغ وئيل، او بيا روسته په مدينه کښ په هغه باندے جادو کړے شوے وؤ لکه چه په حديث صحيح کښ ثابت دی نو دَ دے په مينځ کښ هيڅ تعارض نشته او دَ دے پوره تفصيل په سورة فلق کښ به راشی انشاء الله تعالیٰ۔

إِذْ يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ ، يعنی اول دوی قرآن ته غوږ کيږدی ليکن په نيت دَ اعتراض کولو سره بيا کورنئ کښ جرګه اوکړی چه په دے نبی باندے څه رنګ فتویٰ اوکړو۔

فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا ﴿۴۸﴾

نو دوی گمراه شول نو دوی طاقت نه لري د سمے لارے ۔

وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا

او دوی وائي آیا کله چه شو مونږ هډوکي او ذرے ذرے

ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿۴۹﴾

آیا مونږ به ژوندي کړے شو په پیدائش نوي سره ۔

قُلْ كُوْنُوْا حِجَارَةً اَوْ حَدِيْدًا ﴿۵۰﴾

ته ورته اووایه تاسو شئ کاڼي یا اوسپنه ۔

۴۸ :- دا هم دَ مخکښې آیت په حکم کښې داخل دے یعنې زجر دے په انکار دَ رسول سره ، او دا دلیل دے چه طعنونه لګول په رسول باندے سبب دَ داسے ګمراهئ دے چه بیا هدایت نه شي موندلے ۔

اَلْاَمْثَالَ ، مراد دَ دے ناکاره صفتونه دي لکه شاعر ، ساحر ، کاهن ، مفتري وغیره او داسے په سورة فرقان ۸ ، ۹ کښې هم دي ۔

۴۹ :- په دے آیت کښې زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت او داسے په سورة یس ۷۸ او سورة صافات ۱۶ کښې هم دي ۔

۵۰ ، ۵۱ :- په دے آیتونو کښې جواب دے منکرینو دَ بعث ته حاصل دَ جواب دا دے چه دَ خاورو نه دوباره جوړول خو اسان کار دے بلکه که تاسو کاڼي شئ یا اوسپنه شي یا دَ دینه هم سخت شئ لکه فولاد یا آسمانونه او زمکه ، نو هم الله تعالیٰ تاسو دوباره پیدا کولے شي ۔

لفظ دَ كُوْنُوْا ، په معنیٰ دَ شرط دے یعنې لَوْ كُنْتُمْ حِجَارَةً الخ او دا رنګ دا امکان لري چه انسان کله خاورے شي نو کله دَ دے خاورے نه کاڼي او مالګه جوړیږي او کله دَ اوسپنے په کان کښې دَ

اَوْ خَلْقًا مِّمَّا يَكْبُرُ فِيْ صُدُوْرِكُمْ ج

او یا بل مخلوق دَ هغې نه چه لوئے وی ستا په سینو کښ

فَسَيَقُوْلُوْنَ مَنْ يُّعِيْدُنَا ط قُلِ الَّذِيْ

نو خامخا دوی به وائی څوک به موږ دوباره پیدا کړی، ته اوایه هغه ذات

فَطَرَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ ج فَسَيُنْغِضُوْنَ

چه پیدا کړی یئ تاسو اول ځل نو خوځوی به دوی

اِلَيْكَ رُءُوْسَهُمْ وَيَقُوْلُوْنَ

تا ته سرونه خپل او وائی به

مَتٰى هُوَ ط قُلْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ

کله به وی دا، ته اوایه کیدیشی چه وی

قَرِيْبًا ﴿۵۱﴾ يَوْمَ يَدْعُوْكُمْ فَتَسْتَجِيْبُوْنَ

نزدے وی - په کومه ورځ چه آواز به درکړی تاسو ته نو تاسو به حکم او منئ

خاورے نه او سپنه جوړیږی او کله ترینه فولاد وغیره هم جوړیږی، بیا دَ دوی دویم اعتراض ئے ذکر کړو په باره دَ اعاده کوؤنکو کښ او دَ هغې جواب دے پدے قول سره.

قُلِ الَّذِيْ فَطَرَكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ، بیا دَ دوی دریمه شبه په طور دَ استهزاء تپوس کوی په باره دَ وخت دَ بعث کښ.

فَسَيُنْغِضُوْنَ اِلَيْكَ رُءُوْسَهُمْ، او انغاض په عرف دَ عرب کښ داسے وی چه سر اوچت کړی او بیا ئے ښکته کړی او دا عمل بار بار کوی یعنی سر ښکته او بره کوی.

او عَسٰی، دَ باره دَ تاکید دَ قربت دے. ځکه چه عسی دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ باره دَ یقین وی.

بِحَمْدِهٖ وَتَظُنُّوْنَ اِنْ لَّبِثْتُمْ

سره د حمد وئیلو نه او گمان به کوئ تاسو چه نه وے حصار شوے تاسو

اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۵۲﴾ وَقُلْ لِّعِبَادِيْ

مگر لږه موده . او ته اووایه زما بندګانو ته

يَقُوْلُوا الَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ ؕ

چه وائی دِ دوی هغه خبره چه هغه خائسته وی ،

اِنَّ الشَّيْطٰنَ يَنْزَغُ بَيْنَهُمْ ؕ

یقینًا شیطان فساد اچوی په مینځ د دوی کښ ،

اِنَّ الشَّيْطٰنَ كَانَ لِلْاِنْسَانِ

یقینًا شیطان دے د انسان د پاره

۵۲ . په دے کښ بیان د حال د بعث دے . يَدْعُوْكُمْ ،

نه مراد شپیلئ وهل دی د پاره د بعث بعد الموت یا مراد

د دینه آواز دے د پاره د حشر لکه په دے سورت ۵۱ آیت

کښ به راځی او دا رنګ په سورة روم ۲۵ آیت کښ

راځی .

فَتَسْتَجِيْبُوْنَ بِحَمْدِهٖ ، یو معنی دا ده چه د دغه آواز به

استجابت اوکړئ (زنو راپورته به شئ) او د الله تعالیٰ حمد

به وایئ او اقرار به کوئ چه الله تعالیٰ د تسبیح او حمد

لائق دے .

دوېمه معنیٰ دا ده چه تاسو به استجابت اوکړئ په سبب د امر

د الله تعالیٰ سره یعنی حمد په معنیٰ د امر سره دے او باء

سببیه ده .

اِلَّا قَلِيْلًا ، لکه په سورة نازعات ۴۶ او سورة طٰهٰ ۱۰۳ ، ۱۰۴

او سورة مؤمنون ۱۱۳ کښ دی .

عَدُوًّا مُّبِيْنًا ﴿۵۳﴾ رَبُّكُمْ اَعْلَمُ

دشمن ښکاره ۔ رب ستاسو ښه پوهه دے

بِكُمْ ؕ اِنْ يَّشَاْ يَرْحَمْكُمْ اَوْ

په تاسو (ستاسو په حال)، که اوغواړی نو رحم به اوکړی په تاسو باندې او

اِنْ يَّشَاْ يُعَذِّبْكُمْ ؕ وَمَاۤ اَرْسَلْنٰكَ

که اوغواړی نو عذاب به درکړی تاسو ته، او نه یې لیږلے مونږ ته

عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ﴿۵۴﴾ وَرَبُّكَ اَعْلَمُ

په دوی باندې ذمه وار ۔ او رب ستا ښه پوهه دے

۵۳ ۔ په دے آیت کښ بیان دَ ادب دے دَ پاره دَ دعوت کوونکو روستو دَ بیان دَ سرکشئ دَ منکرینو نه او مراد دَ لِعِبَادِی ، نه مؤمنان دی یعنی مؤمنانو ته اووایه چه کله مشرکانو ته دعوت دَ توحید ورکوی نو په احسن طریقے سره دے بیان کوی دَ دے دَ پاره چه شیطان په مینځ کښ فساد پیدا نکړی ۔ دویم تفسیر دا دے چه په دے آیت کښ دعوت دَ توحید دے مشرکانو ته روستو دَ ذکر کولو دَ خباثانو دَ مغوی نه او عبادی نه مراد مشرکان او کافران دی۔
او اَلَّتِیْ ہِیَ اَحْسَنُ ، نه مراد کلمه دَ توحید ده او نور شرعی عقیدے او اقوال دی او دا عطف دے په قل باندے په ۵۱ کښ۔
۵۴ ۔ په دے آیت کښ خطاب دے مشرکینو ته روستو دَ دعوت دَ مغوی نه توحید ته او دلیل عقلی عملی دے په توحید باندے یعنی هدایت دَ الله تعالیٰ په اختیار کښ دے یا به رحم اوکړی په تاسو باندے په توفیق دَ ایمان ، یا به عذاب درکړی چه مره کړی تاسو په شرک باندے او رسول دَ دوی ذمه دار نه دے نو په مغه باندے اعتراض نه راځی یا دا خطاب دے مؤمنانو ته پس دَ ذکر دَ طریقے دَ دعوت نه یعنی که دعوت تاسو جاری

بِمَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ط

په حال دَ هغه چا چه په آسمانونو او زمکه کښې دی،

وَلَقَدْ فَضَّلْنَا بَعْضَ النَّبِيّٖنَ

او یقیناً غوره والے ورکړیدے مونږ بعضے پیغمبرانو ته

عَلٰى بَعْضٍ وَّاٰتَيْنَا دَاوٗدَ

په بعضو باندے او ورکړے وو مونږ داؤد علیه السلام ته

زَبُوْرًا ﴿۵۵﴾ قُلِ ادْعُوا الَّذِيْنَ

زبور کتاب ۔ ته اُوایه را اوبلئ هغه کسان

اوساتلونو الله تعالیٰ به په تاسو رحم اوکړی او دَ کافرانو نه به مونږ اوساتی اوکه تاسو دعوت ترک کړو نو الله تعالیٰ به تاسو له عذاب درکړی او رسول تاسو نشی بچ کولے۔

۵۵:۔ هرکله چه مخکښې بیان کړے شو هدایت او عدم هدایت نو په دے آیت کښې اشاره ده اختلاف دَ مرتبو ته چه الله تعالیٰ ستاسو دَ طاعت او معصیت په مرتبو باندے عالم دے او په مختلفو مرتبو دَ ملائکو او دَ زمکے والو باندے عالم دے او دا هم دلیل عقلی علمی دے دَ پاره دَ توحید بیانیږی او فرمائیل چه اختلاف دَ مرتبو په انبیاؤ علیهم السلام کښې شته اشاره ده چه فضیلت دَ الله تعالیٰ په نیز په وحی او کتاب سره دے په بادشاهئ دَ دنیا سره نه دے ۔یعنی داؤد علیه السلام بادشاه هم وو لیکن دَ هغه فضیلت دَ کتاب دَ وجے نه دے دَ بادشاهئ دَ وجے نه نه دے۔

فائده:۔ زبور دَ زبر نه دے زجر او وعظ ته وائی دَ کتاب زبور وجه تسمیه دا ده چه په هغے کښې احکام دَ حل او حرمت نه وو بلکه اذکار او تسبیحات او مواعظ وغیره وو۔

زَعَمْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ فَلَا يَمْلِكُوْنَ

چه گمان پرې کوئ تاسو معبودګاران سوا د الله تعالیٰ نه نو هغوی اختیار نه لري

كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا ﴿۵۶﴾

د لرې کولو د تکلیف ستاسو نه او نه د اړولو

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ يَبْتَغُوْنَ

هغه کسان چه دوی ورته رامدد شه وائي غواړي هغوی

اِلٰى رَبِّهِمُ الْوَسِيْلَةَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ

خپل رب ته نزدیوالے چه کوم یو د دوی نه زیات نزدے وي

۵۶:- د دے آیت تعلق دے د آیت ۵۳ سره یعنی توحید او منع ځکه چه شرک باطل دے او په یکښې هم طریقه د دعوت ذکر کوي۔ بیا په دے آیت کښې رد دے په شرک فی الدعاء باندے۔ او بیا رد دے په شرک فی التصرف باندے او روستنے علت دے دپاره د مخکښې او په دے آیت کښې رد دے په مشرکین بالجن او بالعباد الصالحین باندے ځکه چه په حدیث د بخاري کښې وارد دي چه دا آیات نازل شوي دے په باره د دغه خلقو کښې چه د پیریانو عبادت ئے کولو بیا هغه پیریانو ایمان راوړلو لیکن دغه عابدان هغسې د هغوی په عبادت باندے کلک وؤ او ابن کثیر او نورو ډیرو مفسرینو د دے آیت دلاندے عابدین د ملائکو او عزیر او عیسیٰ علیهم السلام هم داخل کړیدي نو دا رنګ عابدان د اولیاؤ که ژوندي وي او که د مړو دي نو هغوی یکښې هم داخل دي۔ کشف او تحویل کښې دا فرق دے چه کشف لرے کول د ضرر دے د بیخ نه او تحویل بدلول د یو حالت دي بل حالت ته یعني کمول د تکلیف۔

وَيَرْجُوْنَ رَحْمَتَهٗ وَيَخَافُوْنَ عَذَابَهٗ

او امید لری دوی دَ رحمت دَهغه او ویره کوی دَ عذاب دَهغه نه

اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُوْرًا ﴿۵۷﴾

یقیناً دَ عذاب دَ رب ستا نه ویره کیدلے شی۔

وَاِنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوْهَا

او نشته هیڅ کلے مگر مونږ هلاکوونکی دَهغے یو

قَبْلَ يَوْمِ الْقِيٰمَةِ اَوْ مُعَذِّبُوْهَا

مخکښ دَ ورځ دَ قیامت نه یا عذاب ورکوؤ هغے (کلی والو) ته

عَذَابًا شَدِيْدًا ؕ كَانَ ذٰلِكَ

عذاب سخت ، ده دا فیصله

فِى الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا ﴿۵۸﴾ وَمَا مَنَعَنَاۤ

په لوح محفوظ کښ لیکلے شوے ده ۔ او نه دے منع کړے مونږ لره

۵۷:۔ تیر شوی آیت کښ عجز ئے بیان کړو دَ معبودانو باطلو په نفی دَ تصرف سره نو پدے آیت کښ عجز دَ هغوی بیانوی دَ عبودیت په درے اجزاؤ سره ۔ یو محبت دے دَ الله تعالیٰ سره چه دَ هغے دَ وجے نه نزدیکت دَ الله تعالیٰ طلب کوی او بل امید ساتل دی دَ الله تعالیٰ دَ رحم او دریم خوف دے دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه ۔

او اَيُّهُمْ اَقْرَبُ ، تفسیر دے دَ الوسیله یعنی وسیله په معنیٰ دَ نزدیکت ده دا رنگ په سورة مائده ۳۵ کښ تیر شویدی ۔

مَحْذُوْرًا ، داسے په سورة معارج ۲۸ کښ دے ۔

۵۸:۔ په دے آیت کښ تخویف دنیوی دے او مطلب ئے دا دے چه په کلو دَ مشرکانو باندے هلاکت او عذاب راځی لیکن دَ هغوی معبودان باطله هغوی لره نشی بچ کولے اگر چه هغه

أَنْ نُّرْسِلَ بِالْاٰيٰتِ اِلَّآ اَنْ كَذَّبَ

دَ لیږلو دَ معجزاتو نه (کوم چه دوی غواړی) مګر دے خبرے چه انکار کړیوؤ

بِهَا الْاَوَّلُوْنَ ؕ وَ اٰتَيْنَا ثَمُوْدَ

دَ دے معجزاتو نه زړو (مخکنو) خلقو، او ورکړے وه موږ ثمودیانو ته

النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوْا بِهَا ؕ

اوښه دَ ښکاره کولو دَ حق دَ پاره نو هغوی عناداً انکار (ظلم) اوکړو په هغے سره،

وَمَا نُرْسِلُ بِالْاٰيٰتِ اِلَّا تَخْوِيْفًا ﴿۵۹﴾

او نه لیږو موږ معجزاتو لره مګر دَ ویرولو دَ پاره۔

مشرکانو عقیده ساتله چه زموږ دَ کلو حفاظت دا معبودان زموږ کوی۔

قَرْيَةٍ، نه مراد نافرمان او مشرکان دی په قرینه دَ سورة طلاق سره۔

عَذَابًا شَدِيْدًا، نه مراد قتلونه فسادونه او قحطونه وغیره دی۔

الْكِتٰبِ، نه مراد کتاب تقدیر یعنی لوح محفوظ دے او دا دلیل دے په اثبات دَ تقدیر لیکلے شوی باندے۔

۵۹ : خلاصه :۔ دَ دے آیت نه دویمه حصه ده تر ۶۵ آیت پورے په دے حصه کښ دویم سبب دَ عذاب ذکر کوی چه هغه انکار کول دی دَ آیاتونو دَ الله تعالیٰ نه یعنی خرق عادت کار وشی او دَ هغے مثال ئے پیش کړیدے په واقعه دَ ثمودیانو سره په ۵۹ آیت کښ او په واقعه دَ اسراء او په ذکر دَ شجر دَ زقوم په آیت ۶۰ کښ او په واقعه دَ ابلیس چه انکار ئے کړے وؤ دَ آیت دَ الله تعالیٰ نه چه آدم علیه السلام او تعظیم دَ هغه وؤ دَ آیت ۶۱ نه تر ۶۵ پورے، بیا دلیل عقلی دے په ۶۶ آیت کښ، بیا زجر دے مشرک ته په ۶۷

وَإِذْ قُلْنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ

او کله چه مونږ اوئیل تا ته یقینًا ستا رب راګیر کړی دی

بِالنَّاسِ ۚ وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا

خلقو لره ، او نه دے ګرځولے مونږ هغه لیدل

الَّتِي أَرَيْنَاكَ إِلَّا فِتْنَةً لِّلنَّاسِ

چه ښودلی دی مونږ تا ته مګر امتحان د پاره د خلقو

وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُونَةَ فِي الْقُرْآنِ ۚ

او ونه چه بد یئے وئیلے شوی دی په قرآن کښې ،

وَنُخَوِّفُهُمْ فَمَا يَزِيدُهُمْ إِلَّا

او ویره ورکوؤ دوی لره نو نه زیاتوی دوی لره مګر

کښې بیا تخویف دنیوی دے په ۶۸ او ۶۹ کښې ، بیا ترغیب دے په ذکر دَ نعمتونو سره په ۷۰ آیت کښې ، بیا تخویف اخروی دے په ۷۱ ، ۷۲ کښې ، بیا تحذیر دے دَ من اهنت نه آیت ۶۳ ، ۶۴ ، ۶۵ کښې.

تفسیر:- په دے آیت کښې جواب دَ شبهے دے ، شبه دا ده هرکله چه رد اوشو په مشرکانو نو هغوی طلب اوکړو دَ پیغمبر نه دَ معجزاتو نو سوال راځی چه دا معجزات دوی ته ولے نه رالیږلے کیږی دَ جواب حاصل دا دے چه هغه معجزات چه دوی طلب کړی دی، مانع دَ هغے نه دا دے چه که هغه رااولیږلے شی او دوی ترے انکار اوکړی نو عذاب به پرے راشی دَ مخکنو قومونو پشان چه یو مثال دَ هغے ثمودیان دی چه هغوی طلب دَ معجزے کړے وؤ نو ناقه پیدا شوه او دوی دَ هغے انکار اوکړو نو عذاب پرے راغے ، نو په دے آیت کښې اشاره ده چه انکار دَ معجزاتو سبب دَ عذاب دے.

طُغْيَانًا كَبِيرًا ۝ وَإِذْ قُلْنَا

| سرکشي | لويه - | او کله چه اُوئیل موږ |
| --- | --- | --- |

وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا ، مراد دَ دینه هغه آیات دی چه خلق دَ هغې طلب کوی نو دَ هغې په رالیږلو کښ تخویف بالعذاب وی کله چه او نه مننے شي نو په منکرینو باندے ضرور عذاب راځي. دویمه معنیٰ داده چه آیت نه مراد ټول معجزات دی چه هغه دَپاره دَ انکار کوونکی تخویف وی او دَپاره دَ مؤمنانو رحمت وی، نو دَ الایات نه مراد هغه آیات دی چه دوی طلب کړے دی او دَدے سورت په ۹۰، ۹۱، ۹۲، ۹۳ آیتونو کښ ذکر دی۔

فَظَلَمُوا بِهَا ، مراد دَ ظلم نه انکار کول عنادًا او قتل کول دَاوښے دی۔

۶۰:- دَ دے آیت په اوله جمله کښ تیزی ورکول دی پیغمبر علیه السلام ته په تبلیغ باندے چه الله تعالیٰ به ستا حفاظت کوی او ته تبلیغ کوه مراد دَ احاطے نه احاطه دَ قدرت او دَ علم دَ الله تعالیٰ ده په ټول مخلوق باندے او حفاظت دَ نبی پکښ داخل دے او په احاط بالناس کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ عالم دے چه دے خلقو ته معجزات راولیږی نو دوی انکار کوی تو بیا قادر دے دَ هغوی په عذاب باندے - او بیا ئے دوه آیاتونه پیش کړی دی یو واقعه دَ معراج او دویم ذکر دَ اونے په جهنم کښ ، دَ دے دواړو په انکار سره وبره دَ عذاب ده -

الرُّؤْيَا ، صحیح قول دا دے چه مراد دَ دینه لیدل دی په سترګو سره په حالت دَ بیدارئ کښ په شپه دَ معراج کښ ځکه چه رؤیا مصدر دے په معنٰی دَ رویت سره دے او دا قول امام بخاری دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے او نه دی مراد دَ دینه لیدل دَ خوب ځکه که دَ خوب لیدل وی نو په هغې سره امتحان نه کیدو ځکه چه دَ خوب دَ لیدلو نه هیڅ څوک انکار نه کوی -

لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا

ملائکو ته چه سجده اوکړئ آدم علیه السلام ته نو سجده اوکړه ټولو

اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ قَالَ ءَاَسْجُدُ لِمَنْ

سوا د ابلیس نه ، اوئیل هغه آیا سجده اوکړم زۀ هغه چا ته

خَلَقْتَ طِيْنًا ﴿۶۱﴾ قَالَ اَرَءَيْتَكَ

چه تا پیدا کړیدے د خټے نه . هغه اوئیل چه خبر راکړه

وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ ، یعنی هر کله چه الله تعالیٰ خبر ورکړو په سورة صافات کښ د آیات ۶۲ نه تر ۶۸ پورے چه ونه ده په جهنم کښ نو دا دوی د پاره سبب د امتحان شو او منکرینو اعتراض اوکړو چه اونه په اور کښ څه رنګ راټوکیدے شی . الملعونة یعنی داسے اونه چه لعنت کړے شویدی د هغے په خوړونکو باندے په قرآن کښ یا دا معنی ده چه بد صفات بیان کړے شوی دی د دغے اونے په قرآن کښ لکه په سورة دخان آیت ۴۳ نه تر ۴۶ پورے دا رنګ سورة صافات کښ او چا چه د دے شجرے تفسیر کړیدے په بنی امیه سره نو دا تحریف دے ځکه چه په قرآن کښ ذکر د بنو امیه او په هغوی باندے لعنت نشته او نسبت کول د دے ابن عباس رضی الله عنهما ته غلط دی.
طُغْيَانًا كَبِيْرًا ، کښ اشاره ده چه دوی د کفر سره استهزاء او مسخرے او اعتراضونه هم کوی.
۶۱:. دا واقعه د آدم علیه السلام او د ابلیس ده او مقصد په دے واقعه کښ دا دے چه آدم علیه السلام آیت الله وو ځکه چه د الله تعالیٰ د قدرت عظیمه نخه ده. او ابلیس د هغه د تعظیم نه انکار اوکړو او د هغه توهین ئے اوکړو په دے جمله کښ.
ءَاَسْجُدُ ، او اَرَءَيْتَكَ آه ، دا سبب اوګرځیده د پاره د عذاب د ابلیس او د دے وجے نه دا ئے عطف کړے دے په ماقبل

هٰذَا الَّذِیْ كَرَّمْتَ عَلَیَّ ز
چه دا هغه سړے دے چه تا عزت ورکړیدے دۀ ته په ما باندے
لَئِنْ اَخَّرْتَنِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ
که چرے تا زۀ روستو کړم (مهلت دِ را کړو) تر ورځے دَ قیامت پورے
لَاَحْتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهٗۤ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۶۲﴾
نو خامخا به خپل قابو کښ به راولم اولاد دَ دهٔ سوا دَ لږو کسانو نه.
قَالَ اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ
اُوئیل الله تعالٰی (للارشاد) نو څوک چه ستا تابعداری اوکړه دَ دوی نه
فَاِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمْ جَزَآءً مَّوْفُوْرًا ﴿۶۳﴾
نو یقیناً جهنم سزا ستاسو ده سزا پوره.

باندے.
طِیْنًا، په معنٰی دَ من الطین دے او دا کلمه په طریقه دَ توهین سره ابلیس ذکر کړے ده
۶۲:- دے آیت کښ اشاره ده چه ابلیس حسد اوکړو دَ وجے دَ عزت دَ آدم علیه السلام نه چه الله تعالٰی ورکړے وۀ.
او هٰذَا الَّذِیْ كَرَّمْتَ عَلَیَّ، دَ هغه دَ اهانت په غرض سره اُوئیل.
لَاَحْتَنِكَنَّ، دا دَ حنك نه دے او حنك په معنٰی دَ بیخکندے راځی نو معنٰی دا شوه چه زۀ به دَ دهٔ دَ اولاد بیخ اوباسم او بیخ ویستل دا دی چه په شرک او په کفر کښ ئے اخته کړی او دویمه معنٰی دَ حنك دَ اس په خله کښ واچول دی چه مقصد دَ هغے نه منع کول وی او په خپل قابو کښ راوستل دی نو معنٰی دا شوه چه منع به کړم زۀ اولاد دَ دهٔ دَ توحید نه.
۶۳:- په دے آیت کښ تخویف اخروی دے ابلیس او تابعدارو دَ هغه ته.

وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ

او اوخوځوه ده هغه څوک چه ستا وس پرې برشي دَ دوی نه

بِصَوْتِكَ وَأَجْلِبْ عَلَيْهِمْ

په آواز خپل سره او راوله په دوی باندې

بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ

په سورو خپلو او پیاده خپلو سره او برخه اونیسه دَ دوی نه

فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ وَعِدْهُمْ ؕ

په مالونو کښې او اولاد کښې او وعدې کوه دَ دوی سره ،

وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ إِلَّا غُرُورًا ﴿٦٤﴾

او وعده نه کوی دَ دوی سره شیطان مګر دَ دهوکې ۔

اِذْهَبْ ، کښې اشاره ده دَ هغه مهلت ورکولو ته لکه په سورة اعراف ۱۵ او سورة حجر ۳۷ او سورة ص ۸۰ کښې دی ۔
مَوْفُوْرًا ، په معنیٰ دَ وافر سره یا په معنیٰ دَ اسم مفعول سره یعنی پوره کړې شوی دی څه کمے پکښې نه وی او دا سے سزا دَ کافر او مشرک وی څکه دَ مؤمن په سزا کښې دَ عفو او مغفرت دَ وجې نه کمے کیدیشی او دا سے په سورة اعراف ۱۸ او سورة ص ۸۵ کښې دی ۔
۶۴ :- په دے آیت کښې دَ ګمراه کولو دَ ابلیس خلقو لره څلور طریقے ذکر شوی دی ۔
اوله طریقه ، دهوکه ورکول خلقو ته په آواز دَ ابلیس سره او دَ آوازونو نه مراد هر هغه داعی دے چه دعوت کوی هر معصیت دَ الله تعالیٰ ته او په دے کښې دعوت دَ شرک او کفر او بدعت اوغِنا وغیره داخل دی دا ابن جریر غوره کړے دے
او دویمه طریقه وَاَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ ، مراد دَ دے دا دے چه دَ دوی دَ ګمراه کولو دَ پاره خپل ټول کیدونه

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ

یقیناً زما بندګان نشته تا لره په دوی باندې

سُلْطَٰنٌ ۚ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ وَكِيلًا ﴿٦٥﴾

وس دګمراه کولو، او پوره دے ستا رب ذمه وار.

استعمال کړه او داخل دے په دیکښې هر هغه څوک چه په سورلۍ باندے ګرځي یا پیاده ګرځي په معصیت دَ الله تعالیٰ کښې دا دَ ابن عباس رضی الله عنهما او مجاهد نه نقل دی۔

او دریمه طریقه وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ، او مراد دَ شراکت نه په مالونو کښې نذرکول دَ مال دَپاره دَ غیر الله دا رنګ مال خرچ کول په شرک او بدعت او رواجونو کښې او تحریم دَغیرالله او په حرامه طریقه کسب کول هم په دے کښې داخل دے او دَ شراکت فی الاولاد نه نسبت کول دَ اولاد دی غیر الله ته چه دا اولاد فلانکی ولی را بخلے دے او نوم کیخودل دَ هغې نبی بخش عبد الحارث او عبد العزی او عبد الرسول بنده علی او پیر بخش وغیره او دا رنګ اولاد ته طریقې دَ کفر او شرک خودل او مشابه کول دَ هغوی کافرانو سره په لباس او په شکل کښې۔

او څلورمه طریقه وَعِدْهُمْ، مراد دَ دینه وعدے کول دی دَ ثواب او کامیابۍ په شرک او په بدعت کولو کښې۔

۶۵:- په دے آیت کښې حفاظت دَ بعض بندګانو دَ ابلیس نه ذکر دے۔

او په عِبَادِي، کښې اضافت دَ تخصیص دَپاره دے چه هغوی ته ئې په نورو آیاتونو کښې مخلصین وئیلے دی۔

وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ وَكِيلًا، په دیکښې اشاره ده چه دا بندګان په عصمت کښې الله تعالیٰ ته محتاج دی،

سُلْطَٰنٌ، مراد دَ دینه غلبه دَګمراه کولو یا دلیل مراد دے۔

۶۶ :- په دے کښں دلیل عقلی ذکر دے او تمهید دے د روستو زجر دپاره او عام انعام ئے ذکر کړے دے روسته د خاص انعام نه او دا ربط دے د ماقبل سره یعنی د شیطان نه بچ کول خاص انعام دے په خاص بندګانو باندے او د دریاب کښں د غرق کیدلو نه بچ کول عام انعام دے مشرکانو ته هم شامل دے ۔

یُزْجِیْ ، ازجاء شړل دی په ذریعه د هواګانو سره چه هغے ته نعمة الله وئیلے دے په سورة لقمان ۳۱ کښں ۔

أَعْرَضْتُمْ ۚ وَكَانَ الْإِنسَانُ كَفُورًا ﴿٦٧﴾

نو تاسو مخ گرځوئ (د توحید نه) او دے انسان نا شکره۔

أَفَأَمِنتُمْ أَن يَخْسِفَ بِكُمْ

آیا بے غمه (بے پرواه) یئ تاسو چه الله تعالی په ځمکه ننوځی تاسو

جَانِبَ الْبَرِّ أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ

په طرف د اوچے ځمکے کښ یا به را اولیږی په تاسو باندے

حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ

باران د کانړو بیا به او نه مومئ تاسو ځان له

وَكِيلًا ﴿٦٨﴾ أَمْ أَمِنتُمْ أَن يُعِيدَكُمْ

ذمه وار۔ آیا بے غمه (بے پرواه) یئ تاسو چه واپس به بوځی تاسو

فِيهِ تَارَةً أُخْرَىٰ فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ

په دریاب کښ بل ځل نو را اوبه لیږی په تاسو باندے

قَاصِفًا مِّنَ الرِّيحِ فَيُغْرِقَكُم

ماتوونکے سیلئ نو غرق به کړی تاسو

۶۷:۔ په دے آیت کښ زجر دے مشرکینو ته په ضعف د طریقه د هغوی چه په سختئ کښ صرف الله تعالی رابلی او روستو د بچ کیدلو نه شریک جوړوی دا سے په سورة یونس ۲۲ او سورة عنکبوت ۶۵ او سورة لقمان ۳۲ کښ هم دی۔

۶۸:۔ په دے آیت کښ تخویف دے هغه مشرک ته چه مخکښ آیت کښ د هغه حال بیان شو، او مراد دا دے چه دریاب نه اګر چه دے بچ شو لیکن د اوچے د عذاب نه نه شی بچ کیدے۔

أَن يَخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ، پشان د قارون أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا، پشان د قوم لوط دے او دا سے په سورة ملک ۱۶، ۱۷ کښ هم دی۔

بِمَا كَفَرْتُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُوا
په سبب دَ انکار ستاسو دَ توحید نه) بیا به او نه مومئ تاسو

لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا ﴿٦٩﴾
ځان لره په مونږ باندے دَ دے کار په باره کښ څوک تپوس کوونکے.

وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيٓ اٰدَمَ وَحَمَلْنٰهُمْ
او یقیناً عزت ورکړیدے مونږ اولاد دَ آدم علیه السلام ته او سواره کړیدی مونږ دوی لره

فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنٰهُمْ
په اوچه او دریاب کښ او روزی مو ورکړیده دوی ته

مِّنَ الطَّيِّبٰتِ وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى
دَ پاک رزقونو نه او غوره والے مو ورکړے دے دوی ته په

كَثِيرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا ﴿٧٠﴾ ع
په ډیرو دَ هغه چا نه چه مونږ پیدا کړیدی ډیر غوره والے.

۶۹:۔ دا هم تخویف دے دَ مخکښ پشان مطلب ئے دا دے چه الله تعالیٰ به دغه کس لره دریاب ته دوباره بوځی او غرق به ئے کړی نو څوک به ئے بچ کړی۔
تَبِيعًا، هغه څوک دے چه بدله اخلی دَ خپل دشمن نه یا مدد ګار که وټیلے شی۔
۷۰:۔ په دے آیت کښ ترغیب دے په ذکر دَ څلور انعاماتو عامو سره دَ پاره دَ دے چه دوی شکر اوکړی په توحید منلو سره نو دَ هغه عذابونو نه به بچ شی چه مخکښ بیان کړے شول۔
اول انعام وَلَقَدْ كَرَّمْنَا، سره بیان شوے دے او دا کرامت عام دے په نطق او په تمیز سره او په عقل سره او په نیغ قامت سره او په خائسته شکل سره او په خوراک کولو په ګوتو سره او تابع کول دَ نور مخلوق هغوی لره، او دا رنګ اکرام

يَوْمَ نَدْعُوا كُلَّ أُنَاسٍ

په کومه ورځ چه آواز به ورکړو مونږ (ټولو خلقو) ته په نوم

بِإِمَامِهِمْ ۚ فَمَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ

د پیشوا د هغوی نو هغه څوک چه ورکړیشي هغه ته کتاب (عملنامه)

بِيَمِينِهِ فَأُولَٰئِكَ يَقْرَءُونَ

په ښی لاس کښی پس دغه خلق به لولی

كِتَابَهُمْ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿٧١﴾

عملنامے خپلے او ظلم به نه کیږی په دوی باندې په قدر د تار د هډوکی کجورے

د سرې په بدیره سره او اکرام د زنانو په کونځو سره ، دا ټول په دیکښی داخل دی ۔ نو دا کرامت ټولو بنی آدمو ته شامل دے اگر چه کافران د بے دینۍ په وجے سره شرالدواب دی ۔

دویم انعام سورلۍ په اوچه کښی په ګادو ، موټرو او اوښانو ، اسونو خچرو او خرو وغیره سره او په دریابونو کښی په کشتو لانچونو او جهازونو وغیره سره ۔

دریم انعام په دیکښی خوراک څکاک او لباس داخل دے چه په هغے کښی قسم قسم مزیدار خوش رنګ څیزونه دی څلورم انعام فضیلت ورکول دی په ډیر مخلوق باندے جمادات ، نباتات حیوانات او جنس ملائک هم د بعضے اهل علم په نیز پکښی داخل دی ، او که مراد د فضیلت نه ظاهری وی نو دا شامل دے کافرانو ته هم او که فضیلت معنی وی نو دا خاص دے په مؤمنانو پورے ۔

سوال :- په سورة الانفال او سورة البینه کښی کافرانو او منافقانو ته شرالدواب او شرالبریه ویلی دی نو دا څوکرامت سره منافی ده ؟

جواب ۱ :- دلته د کرامت او فضیلت نه ظاهری امور مراد دی

وَمَنۡ كَانَ فِىۡ هٰذِهٖۤ اَعۡمٰى فَهُوَ
او هغه څوک چه وي په دے دنیا کښ ړوند (بے دلیله) نو هغه به
فِى الۡاٰخِرَةِ اَعۡمٰى وَاَضَلُّ سَبِيۡلًا ﴿۷۲﴾
په آخرت کښ هم ړوند وي او زیات بے لارے به وي۔

چه هغه منافقانو او کافرانو ته شامل دی سره د دے چه هغوی په حقیقت کښ بد تر دی۔
جواب ۲:۔ دلته مراد د بنی آدم نه صرف مؤمنان دی په هر امت او هره زمانه کښ۔
ے:۔ د دنیوی فضیلت نه روستو اخروی فضیلت ذکر کوی د مؤمنانو د پاره۔ بِاِمَامِهِمۡ، د دینه هر هغه څوک مراد دے چه هغه اقتداء کړے شوے ده۔ برابره خبره ده که حق دے او که باطل دے۔ یا په معنی د کتاب الاعمال دے۔ اول قول غوره دے ابن کثیر ویلی دی " هذا اکبر شرف لاصحاب الحدیث لأن امامهم النبی صلی الله علیه وسلم۔ یَقۡرَءُوۡنَ، یعنی په خوشحالئ سره لولی۔ او په دے جمله کښ بشارت دے۔
۲ے:۔ په دے کښ تخویف اخروی دے او د اَعۡمٰى، اول نه د زړه ړوند مراد دے یعنی چه بے دلیله تقلید کوی د باطل۔ او دویم اَعۡمٰى، پخپله معنی سره مراد دے یا د دینه مراد بے دلیله دے لکه فَعَمِيَتۡ عَلَيۡهِمُ الۡاَنۡۢبَآءُ، قصص ۶۶ آیت او د دے وضاحت په سورة طٰه ۱۲۴ کښ دے۔
فائده:۔ که شبه اوکړے شی چه نورو آیاتونو کښ تصریح ده چه دوی به په ورځ د حشر سترګے لری لکه سورة قٓ ۲۲ کښ او مریم ۳۸ کښ چه ذکر دی۔
جواب دا دے چه په ورځ د قیامت کښ مختلف مقامات دی بعضے مقاماتو کښ هم فرق دے، بعث د قبر نه پورته کیدل دی او حشر په میدان کښ راجمع کیدل دی نو اعمٰی ئے په حشر کښ ذکر کړے دے نه په بعث کښ بعث به ئے روغ اوشی او په حشر کښ به ئے ړوند کړی۔
وَاَضَلُّ سَبِيۡلًا، یعنی د دوی ګمراهی به په آخرت کښ ښکاره شی یا مراد د سبیل نه لار د جنت ده۔

وَإِن كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ عَنِ
او یقینًا غوارې دا مشرکان چه واړوي تا لره د بیان د
الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ لِتَفْتَرِيَ
هغه څیزې نه چه وحی کړې ده مونږ تا ته دے د پاره چه او تړې
عَلَيْنَا غَيْرَهُ ۖ وَإِذًا لَّاتَّخَذُوكَ
په مونږ باندے د دینه بغیر (ربل څه) او دغه وخت به اونیسي دوی تا لره
خَلِيلًا ﴿٧٣﴾ وَلَوْلَا أَن ثَبَّتْنَاكَ
په دوستانه ۔ او که مونږ نه دے کلک کړے تا لره
لَقَدْ كِدتَّ تَرْكَنُ إِلَيْهِمْ
یقینًا نژدے وه چه کوږ شوے به وے ته دوی ته

۷۳ :۔ په دے کښ تحذیر دے د مداهنت کولو نه، یعني مشرکان
او نور باطل پرست په اهل حق باندے کوشش کوي چه د حق
په بیانولو کښ نرم شي او دا دلیل دے چه د دوي د حق نه اعلیٰ
دي لکه چه په مخکښ آیت کښ ذکر شول او دائے ربط دے۔
مثلًا مشرکانو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اوئیل چه نه زمونږ
الهه شفعاء او منه نو مونږ تا سره ملګري یو۔
او په لفظ د لِتَفْتَرِيَ، کښ اشاره ده چه چا وحی (قرآن او سنت)
پریخودله نو ضرور به په الله تعالیٰ باندے افتراء کوي۔
وَإِن كَادُوا، إِنْ مخفف دے د مثقل نه نو په اصل کښ انّه دے۔
كَادُوا، په معنیٰ د ارادہ کولو او د کوشش کولو سره دے۔
الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ، مراد د دینه توحید دے۔
او غَيْرَهُ، نه مراد شرک دے۔ خَلِيلًا، هغه دوست دے چه د
زړه حاجت ورباندے سرکیږي یا هغه دے چه د هغه د مینے
د پاره زړه د نورو محبتونو نه خالي وي مراد ترینه قریبي او مخلص دوست دے۔

شَيْـًٔا قَلِيلًا ﴿٧٤﴾ إِذًا لَّأَذَقْنَاكَ

لږ غوندې . دغه وخت خامخا څکولے به ونے موږ تا ته

ضِعْفَ الْحَيَاةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ

دوچنده عذاب په ژوند د دنیا او دوچنده پس د مرګ نه

ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيرًا ﴿٧٥﴾

بیا به او نه موندے نه ځان د پاره په موږ باندے امداد ی.

وَإِنْ كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ مِنَ

او یقیناً دوی غوارې چه چلو نه جور کړی تا نه پد لے

الْأَرْضِ لِيُخْرِجُوكَ مِنْهَا وَإِذًا

زمکه (د مکه کښ) د پاره د دے چه اوباسی تا لره د دینه او په دغه وخت

لَا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٧٦﴾

په حصار نشی سنا نه روستو مګر لږ وخت .

۷۴ :- دا دلیل دے چه پیغمبر صلی الله علیه وسلم مشرکانو سره هیڅ مداهنت نه دے کړے بلکه معصوم وو او په عصمت او تثبت کښ الله تعالیٰ ته محتاج وو او په دے کښ دبر تاکیدات یو کړلے، دویم تَرْکَنُ، دریم شَيْـًٔا، (په اثبات کښ) څلورم قَلِيلًا ، دے - یعنی هیڅ قسم مداهنت ئے د هغوی سره نه دے کړے.

۷۵ :- په دے کښ تعریض دے امت ته چه پیغمبر ته مداهنت نه معاف کیږی نو تاسو ته به څنګ معاف کړے شی - او آیت کښ اشاره ده چه څومره د چا درجه اعلی وی نو دومره به په وخت د مخالفت کولو کښ د هغه عذاب لوے وی.

۷۶ :- خلاصه :- د دے آیت نه دریمه حصه ده ترستا پورے په دیکښ دریم سبب د عذاب ذکر کوی چه هغه ویستل د رسولانو دی د ملک د هغوی نه او د دے مثال ورکوی په هجرت د نبی

سُنَّةَ مَنْ قَدْ اَرْسَلْنَا قَبْلَكَ

په شان د طریقې (رِزما) د هغه چا سره چه لیږلی دي مونږ ستا نه مخکښې

مِنْ رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا

رسولان زمونږ او او به نه مومې ته زمونږ طریقې لره

صلی الله علیه وسلم زمونږ ۷۶ ، ۷۷ کښې. بیا څلور اداب او امور مصلحه یې ذکر کړیدي د پاره د تثبیت په وخت د ابتلاء کښې د ۷۸ نه تر ۸۱ پورې بیا ترغیب الی القرآن دے په ۸۲ کښې بیا پنځه زجرونه دي اول زجر په سبب د اعراض کولو ۸۳ ، ۸۴ کښې. دویم زجر دے په سوال عنادًا ۸۵ ، ۸۶ ، ۸۷ کښې او صداقت د قرآن په طریقه د تحدی سره په ۸۸ کښې. دریم زجر په اعراض عن القرآن ۸۹ کښې. څلورم زجر په طلب د آیاتونو تعنتًا (عنادًا) ۹۰ ، ۹۱ ، ۹۲ کښې. پنځم زجر په انکار د بشریت د رسول ۹۴ او د هغې جواب ۹۵ کښې او اثبات د رسالت په شهادت د الله تعالی سره ۹۶ کښې بیا تخویف اخروی ۹۷ کښې او سبب د هغې انکار د بعث ۹۸ کښې او اثبات د بعث سره د توحید نه په ۹۹ کښې او بیا زجر په بخل د انسان او مقصد په دے کښې اثبات د توحید او د رسالت دے.

تفسیر :- په دے آیت ۷۶ کښې د مشرکانو کوششونه او مکرونه د پاره د اخراج د رسول ته اشاره شویده یعنی هرکله چه حیله د مداهنت د دوی کامیابه نه شوه نو دوی د هغه د ویستلو کوشش شروع کړلو.

وَاِذًا لَّا يَلْبَثُوْنَ خِلٰفَكَ اِلَّا قَلِيْلًا ، کښې اشاره ده عذاب د اهل مکے ته یعنی هرکله چه دوی تا لره او باسی نو زر به په دوی باندے عذاب راشي نو په بدر کښې په دوی باندے عذاب راغے. استفزاز، په چل ول او مکرونو سره خوځول او ویستل دي.

تَحْوِيْلًا ﴿۷۷﴾ اَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوْكِ

بدلیدل ۔ کوه مونځونه د وخت د زوال

الشَّمْسِ اِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ

د نمر نه تر تیارے د شپے پورے

وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ ؕ اِنَّ قُرْاٰنَ

او مونځ د صبا ، یقیناً مونځ

الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا ﴿۷۸﴾ وَمِنَ الَّيْلِ

د صبا ته حاضری کیدیشی (د ملائکو) ۔ اود شپے په یوه برخه کښ

۷۷ :۔ په دے آیت کښ تاکید دے د تیر شوی تخویف یعنی په دوی به عذاب راشی پشان د حال د تیر شوؤ قوموچه هغوی رسولان شړلی وؤ نو عذاب پرے راغے نو هرکله چه مشرکان مکه په مختلف طریقو سره نبی صلی الله علیه وسلم لره تنګ کړو او د مکے نه یے ویستلو نو یو نیم کال روستو په بدر کښ مشرکان اووژلے شول او ذلیل شول ۔

سُنَّةَ ، په دے کښ تقدیر د عبارت دے نَفْعَلُ لَكَ مِثْلَ سُنَّةِ مَنْ (او په کړو تا لره پشان د کار د مخکښنی رسولانو) ۔

۷۸ :۔ په دے آیت کښ ذکر د اول امر مصلح او ادب دے د پاره د تثبت ، او مراد د اَقِمِ الصَّلٰوةَ ، نه پابندی او همیشګی کول دی په ټولو مونځونو باندے ۔

او لِدُلُوْكِ ، د دلوک یوه معنیٰ زوال د نمر ، دویمه معنیٰ غروب د نمر ، په اوله معنیٰ سره څلور مونځونو ته اشاره ده ماسپخین ، مازیګر ، ماښام او ماسخوتن ته ځکه چه اِلٰى غَسَقِ الَّيْلِ غایه داخل ده په ما قبل کښ او په دویمه معنیٰ سره صرف د ماښام مونځ مراد دے ابن جریر او ابن کثیر اول قول د ډیرو صحابو او تابعینو نه نقل کړیدے او د دُلُوْكِ په

فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ ۖ ق

تهجد کوه دا زیاتی دے ستا د پاره

عَسٰٓى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا

نزدے ده چه اوبه رسوی تا لوه رب ستا ځائے

مَّحْمُوْدًا ﴿٧٩﴾ وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِیْ

ستائیلے شوی ته۔ او ته وایه اے ربه داخل کړی ما لره

معنی په زوال سره یو مرفوع حدیث کښے هم راوړے شوے دے نو دغه قول غوره دے۔

قُرْاٰنَ، دا مصدر دے په معنیٰ دَ قراءت سره دے او مراد دَ قراءت نه ټول مونځ دے ځکه چه قرآن لوستل رکن اصلی دے په مونځ کښ۔

مَشْهُوْدًا، وجه دا ده چه ملائک دَ شپے او دَ ورځے په دغه مونځ کښ جمع کیږی۔

۷۹:۔ په دیکښ دویم امر مصلح او ادب ذکر دے چه هغه صلوٰة اللیل دے روستو دَ بیدارئ دَ خوب نه۔

فَتَهَجَّدْ، په معنیٰ دَ ترک هجود (خوب) دے نو معلومه شوه چه تهجد هغه مونځ دے چه روستو دَ خوب دَ شپے نه وی یعنی دَ نیمے شپے نه روستو دَ هغے غوره وخت شروع کیږی۔

نَافِلَةً لَّكَ، یو معنی دا ده چه دا زیاتی عزت او اکرام ستا دے، دویمه معنی دا چه دا عطیه او بخشش ستا دے او لفظ دَ نافله دلیل دے چه دا په نبی صلی الله علیه وسلم باندے هم فرض نه وُو او دا صحیح قول دے لیکن تخصیص دَ هغه په لفظ دَ لَكَ سره دَ وجے دَ شرافت دَ هغے نه دے ځکه چه نفل کولو سره دَ امت گناهونه معاف کیږی او هرچه نبی صلی الله علیه وسلم دے نو دَ هغه درجات پورے زیاتی کیږی ځکه چه گنهگار نه دے۔

مَقَامًا مَّحْمُوْدًا، نه مراد مقام دَ شفاعت کبری دے یا مقام

مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّاَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ

په داخلیدلو دَ رښتیاؤ او اوباسه ما په ویستلو

صِدْقٍ وَّاجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْكَ

دَ رښتیاؤ او دا کړے ما لره دَ خپل طرف نه

سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا ﴿۸۰﴾ وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ

غلبه چه مدد ورسره وی ۔ او ته او وایه راغے حق

دَ زیات قربت دَ الله تعالیٰ دے اول قول غوره دے او محمود ورته په دے وجه سره وائی چه دَ دغه مقام ستائینه کیدلیشی وئیلے شی چه دالوے مقام دے، یا دا چه دَ هغے دَ صاحب ستائینه کیدیشی ۔ یا محموداً، په معنیٰ دَ محمود فیه سره دے ځکه چه په حدیث شفاعت کښ راغلے دی چه په هغه مقام کښ به ما ته داسے حمد ورته اوخودلے شی چه دَ هغے نه مخکښ ما ته نه دی خودلے شوی ۔ او احتمال شته چه مقام محمود په دنیا کښ لویه مرتبه دَ نبی صلی الله علیه وسلم مراد ده ۔ چه رفعنا لک ذکرک کښ اشاره ده ۔

نمبر ۸۰ :۔ په دے کښ دریم امر مصلح او ادب دے ۔ وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّاَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ، دَ مدخل صدق او مخرج صدق نه مراد دا دے چه دخول او خروج دَ الله تعالیٰ دَ رضا دَ پاره وی او دَ هغه په امر سره وی دَ دنیا مقصد او په خپل خواهش سره نه وی نو مدخل او مخرج مصدرونه میمیه دی ۔

سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا، مراد دَ دینه حجت قویه دے یا مراد دینه هغه غلبه ده چه په مدد دَ الله تعالیٰ سره وی یعنی روستو غلبے نه بیا کمزوری نه پیداکیږی او په دے کښ اشاره ده چه روستو دَ هجرت فی سبیل الله نه سلطان او نصرت حاصلیږی ۔

وَزَهَقَ الْبَاطِلُ ۖ اِنَّ الْبَاطِلَ

او ورک شو باطل ، یقینًا باطل

كَانَ زَهُوْقًا ﴿۸۱﴾ وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْاٰنِ

دے ورکیدونکے ۔ او نازلوو مونږ دَ قرآن نه

مَا هُوَ شِفَآءٌ وَّرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِيْنَ

هغه شے چه هغه شفاء او رحمت دے ایمان والو لره

وَلَا يَزِيْدُ الظّٰلِمِيْنَ اِلَّا خَسَارًا ﴿۸۲﴾

او نه زیاتوی ظالمانو لره مګر تاوان ۔

سه ۸۱ :- په دیکښ څلورم امر مصلح او ادب دے او دا خبر په طریقه دَ پیشنګویئ سره دے ، او بشارت او تسلی ده دَ دے وجے نه حدیث دَ صحیحین کښ وارد دی چه کله مکه فتح کړے شوه او رسول الله بُتان درے سوه شپیته په خپله نیزه او وهل نو داۓ اوفرمائیل وَقُلْ جَآءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ اِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوْقًا ، اَلْحَقُّ نه مراد توحید ، قرآن او رسالت دے ۔

سه ۸۲ :- په دے آیت کښ ترغیب دے قرآن ته یعني مهاجر دَ پاره دَ قرآن لوستل ډیر ضروری دی ، او اشاره ده چه دَ استفا دے دَ قرآن دَ پاره ایمان ضروری دے او کله چه عناد او ضد وی نو دَ قرآن په سبب سره نقصان زیاتیږی لکه په سورۃ مائده سه ۶۴ سه ۶۸ کښ دی ۔

او شِفَآءٌ ، نه مراد شفاء دَ امراضو روحانیو او ظاهریو دواړو ده ، روحانیه امراض شرک ، شک نفاق وغیره دی او ظاهریه امراضو دَ پاره دَ قرآن دم لوستل په ډیرو صحیحو روایاتو سره ثابت دے او دَ هغے تعویذ لیکل په حدیث صحیح مرفوع سره ثابت نه دی اګرچه موقوف حدیث او عمل دَ سلفو په هغه دَ جواز دَ پاره پوره دے لیکن په دے زمانه کښ دَ هغے نه ډیر مفاسد پیدا

وَإِذَآ أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنسَانِ أَعْرَضَ
او کله چه انعام اوکړو مونږ په انسان باندے نو مخ اوګرځوی

وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦ ۖ وَإِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ
او لرے کړی ډډه خپله او کوم وخت چه اورسی ده ته تکلیف

كَانَ يَـُٔوسًا ﴿٨٣﴾ قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ
نو وی دے ناامیدی کوونکے . اُووایه ته هر یو عمل کوی

کیږی نو فتوی دَ عام جواز پکار ته ده - زاد المعاد دَ ابن قیم کښې او روح المعانی دَ دے آیت دَ لاندے ډیر روایات ذکر کړیدی - وَ رَحِمَهُ، مراد دَ دینه زیاتیدل دَ ایمان او تثبیت او ثواب ونه دی چه په قرآن کریم سره حاصلیږی -

مِنَ الْقُرْاٰنِ ، مِن بیانیه دے دَ مَا هُوَ دَ پاره اګرچه په مخکښے باندے مخکښ دے یا مِن دَ پاره دَ تبعیض دے او مراد په تبعیض کښې دا دے چه هره حصّه دَ قرآن شفاء او رحمت دے -

۸۳ :- دا حال دَ ظالمانو دے چه مخکښ آیت کښې ذکر شویدے او په دیکښې زجر دے په اعراض کولو سره دَ توحید او دَ قرآن نه روستو دَ ترغیب الی القرآن او دا اعراض دے په سبب دَ مالدارئ او دَ وسعت او دَ صحت سره او دا معنی دَ أَنْعَمْنَا، ده او ناامیدی کول په وخت دَ سختئ کښې او وَنَـَٔا بِجَانِبِهِ، نه مراد لرے تلل دَ موضع بیان دَ حق نه یا تکبر کول دی -

یَـُٔوسًا ، یو معنی دا ده چه دَ الله تعالی نه ناامیدی کوی او دَ مخکښ تائید په سورة یوسف ۸۷ کښې دے - دویمه معنی دا ده چه په وخت دَ سختئ او مصیبت کښې دَ خپلو باطلو معبودانو نه ناامیده وی او صرف الله تعالی ته آواز کوی لکه چه دا عادت دَ مشرکین عرب وو او دا رنګ په سورة هود ۹ ، ۱۰ کښې دی -

عَلٰى شَاكِلَتِهٖ ؕ فَرَبُّكُمْ اَعْلَمُ

په خپله طريقے سره ، نو رب ستاسو ښه پوهه دے

بِمَنْ هُوَ اَهْدٰى سَبِيْلًا ﴿۸۴﴾

په هغه چا چه هغه روان دے په سمه لار ۔

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ

او دوی ستا نه تپوس کوی په باره د روح کښې

قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّيْ وَمَآ

نه او وایه روح (پیدا شویدے) په حکم د رب زما او نه ده

اُوْتِيْتُمْ مِّنَ الْعِلْمِ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۸۵﴾

درکړے شوے تاسو ته د پوهے نه مګر لږ غوندے ۔

۸۴ :۔ په دے آیت کښې تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او براءت کول دی د مشرکانو نه چه مخکښې آیت کښې د هغوی ذکر تیر شو۔

شَاكِلَتِهٖ ، په معنی د طریقے او نیت او د طبیعت سره راغلے دے۔ او داسے په سورة هود ۱۲۱ کښې شته دے ۔

۸۵ :۔ په دے کښې زجر دے په سوال عنادی او تعنتی سره چه مطلب د سوال ځان پوهه کول نه وی بلکه مسئول عنه چپ کول ئے صرف مقصد وی ، دا سوال مشرکانو عرب د یهودو په لمسه سره کړے وؤ نو دوارو د پاره زورنه ده او د دے ربط د اَعْرَضَ وَنَاٰ بِجَانِبِهٖ ، سره یعنی معرضین خلق داسے تپوس نه کوی۔

او مراد د الرُّوْحُ ، نه په دے کښې ډیر اقوال دی یو دا چه د ژوند روح دے ، د هغوی د سوال مقصد دا دے چه روح د کوم ځائے نه ښکاره شویدے لکه چه معلومه شوه چه بدن د

# وَلَئِن شِئۡنَا لَنَذۡهَبَنَّ بِالَّذِيٓ

| اوكه موږ اوغواړو خامخا بو به څو ستا نه هغه شے چه |
|---|

خاورو نه پیدا شوے دے، نو روح د کوم ځائے او کوم مادے نه پیدا شو ؟
جواب :- روح د عالم الامر نه راکوز شوے دے او د دینه زیات په تفصیل پاندے تا سو پوهیدلے نه شئ ځکه چه بعض څیزونه د متشابها تو نه دی. نو په دے تحقیق سره معلومه شوه چه جواب د هغوی د سوال سره موافق دے. او دویم قول دا دے چه مراد د روح نه قرآن دے چه سورة النحل آیت ۲ کښ په هغے پاندے اطلاق د روح کړے شوے دے یعنی قرآن د ځان نه تا جوړ کړے دے یا جبرائیل د ځان نه راوړے دے ؟
جواب :- دا د الله تعالیٰ په امر سره نازل شوے دے. دریم قول دا دے چه مراد د دینه جبرائیل دے ځکه چه قرآن کښ هغه ته روح الامین او روح القدس وئیلے شوے دے یعنی دوی سوال کوی چه جبرائیل د څه نه پیدا دے. څلورم قول دا دے چه روح یو خاص قسم دے د ملائکو نه چه د هغوی اوصاف صرف الله تعالیٰ ته معلوم دی او روح او نفس کښ د علماء اختلاف دے چا وئیلی دی چه نفس ساه ته وئیلے شی چه په هغے سره حیوانات او انسانان ژوندی تیروی او روح یو قسم مخلوق دے د دے وجے نه قرآن د موت په وخت توفی د نفس ذکر کړیده او د روح ذکر ئے نه دے کړے. دویم قول دا دے چه روح او نفس دواړه ساه ته وئیلے شی لیکن نفس هغه وخت وئیلے شی چه په بدن پورے متصل وی او روح عام دے که بغیر د اتصال نه وی او که په وخت د اتصال کښ وی.
سوال :- په حدیث د بخاری کښ راغلی دی چه دا سوال یهودیانو په مدینه کښ کړیدے او حال دا دے چه دا آیت مکیه دے او په حدیث د احمد کښ راغلی دی چه یهو یانو مشرکینو د مکے ته دا

أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ
وحي کړې دی موږ تا ته بیا به او نه مومې ته ځان له

بِهٖ عَلَيْنَا وَكِيلًا ﴿٨٦﴾ إِلَّا رَحْمَةً
په دې سره زموږ په مقابل کښې مددګار. لیکن ژغورل دي) د وجه د رحمت

مِّن رَّبِّكَ ۚ إِنَّ فَضْلَهُ كَانَ
د رب ستا نه، یقیناً فضل د الله تعالی دے

عَلَيْكَ كَبِيرًا ﴿٨٧﴾ قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ
په تا باندے ډیر لوے. ته اُووایه که چرے جمع شي

دا سوال خودلے وؤ؟
جواب ۲:- اول نازل شو ټول آیت په مکه کښې بیا په وخت د سوال د یهودیانو کښې چه نبي صلی الله علیه وسلم انتظار اوکړو د وحي نو په وحي سره حواله ئې ورکړله په دغه آیت سره.
وَمَآ أُوتِيتُم، کښې خطاب عام دے او دا دلیل دے چه د مخلوق علم قلیل دے نو د الله تعالی سره په علمِ محیط او علمِ کلي او علمِ غیب کښې شریک نشي کیدلے او دا رنګ د قلت علم په وجے سره په متشابه څیزونو باندے هم نه پوهیږي.
۸۶، ۸۷:- په دے آیتونو کښې صدق د قرآن ذکر دے او تسلي ده پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته چه د دوی د اعتراضونو په وجے سره په تا باندے رحمت او وحي د الله تعالی نه بندیږي، او دا آیت دلیل دے چه وحي نبي د ځان نه نشي جوړولے، او په دے لفظ إِنَّ فَضْلَهُ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا، کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم عظمت شان ته اشاره ده.
رَحْمَةً، ابقاء د وحي د قرآن نعمتِ خاصه دے او لفظ د فضله کښې اشاره ده نورو صفتونو د نبي صلی الله علیه وسلم ته.

الْإِنْسُ وَالْجِنُّ عَلَىٰ أَنْ يَأْتُوا

انسانان او پیریان په دې خبره چه راوړي

بِمِثْلِ هَٰذَا الْقُرْآنِ لَا يَأْتُونَ

په شان د دې قرآن نو نه شي راوړې

بِمِثْلِهِ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ

د دې په شان اګر چه شي بعضې د دوي

لِبَعْضٍ ظَهِيرًا ﴿٨٨﴾ وَلَقَدْ صَرَّفْنَا

د بعضو د پاره مددګار ۔ او یقینًا قسمًا قسم بیان کړیدی مونږ

لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ

خلقو ته په دې قرآن کښې د هر قسم بیان ته

۸۸: ۔ په دے کښې اثبات د صدق د قرآن کریم دے په طریقه د تحدی سره او بیان د اعجاز د قرآن کریم دے او په آیت کښې اشاره ده عجز د ټول مخلوق ته نو دوی الهه نشي کیدلے او په سورة یونس ۳۸ کښې تحدی په یو سورت سره ده او سورة هود ۱۳ کښې په لس سورتونو سره ده او په سورة طور ۳۴ کښې په لفظ د حدیث سره چه یو خبرے ته شامل دے هر کله چه اول مخاطب په قرآن سره انسانان دی د دے وجے نه مغوی ئے د جن نه مخکښې ذکر کړی دی ۔ او په مقام د خلق کښې جن ئے مقدم ذکر کړے دے لکه په سورة ذاریات ۵۶ کښې ځکه چه خلق د جناتو مخکښې دے په انسانانو باندے ۔

فَاَبٰیٓ اَکْثَرُ النَّاسِ اِلَّا کُفُوْرًا ﴿۸۹﴾

نو نه کوی ډیر خلق بل کار سوا دَ ناشکرئ نه۔

وَقَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَکَ حَتّٰی

او دوی وائی چرے مونږه ایمان نه راوړو په تا باندے تر دے پورے

تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْاَرْضِ یَنْۢبُوْعًا ﴿۹۰﴾

چه را اوباسے مونږ لره دَ زمکے نه چینے۔

اَوْ تَکُوْنَ لَکَ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِیْلٍ

یا وی تا لره باغ دَ کجورو

وَّعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الْاَنْهٰرَ خِلٰلَهَا

او انګورو پس چه اوبهوی نهرونه په مینځ دَ هغے کښ

تَفْجِیْرًا ﴿۹۱﴾ اَوْ تُسْقِطَ السَّمَآءَ کَمَا

په ډیرو بهولو سره۔ یا را اوغورځوے نه آسمان لکه څنګ چه

سو۸۹ :۔ دا بو علت دے دَ پاره دَ اعجاز دَ قرآن کریم په دے کښ روستو دَ ترغیب الی القرآن نه زجر دے په انکار دَ قرآن سره۔

مِنْ کُلِّ مَثَلٍ، مثل نه مراد قسما قسم بیانات دی یعنی دلیلونه زجرونه تخویفات او بشارات وغیره۔

فائده :۔ په لفظ دَ فَاَبٰیٓ، کښ معنیٰ دَ نفی موجوده ده یعنی لا یفعل شیئًا دَ دے وجے نه استثناء ترینه صحیح شوه او په دے جمله کښ ډیر تاکید دے په انکار کولو سره۔

سو۹۰، سو۹۱، سو۹۲، سو۹۳ :۔ په دے آیاتونو کښ زجر دے په طلب دَ آیاتو دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم نه په طریقه دَ ضد او عناد سره، او په دے کښ دَ اتو آیاتونو مطالبے ذکر شوے دے، په اول کښ دَ زمکے دَ مکے نه چینے راویستل

زَعَمۡتَ عَلَيۡنَا كِسَفًا اَوۡ تَاۡتِيَ بِاللّٰهِ

ستا گمان دے په موږ باندے ټکړے يا راولے ته الله تعالیٰ

وَالۡمَلٰٓئِكَةِ قَبِيۡلًا ﴿۹۲﴾ اَوۡ يَكُوۡنَ لَكَ

او ملائکو لره مخامخ ۔ يا وى ستا

بَيۡتٌ مِّنۡ زُخۡرُفٍ اَوۡ تَرۡقٰى

کوټه د سروزرو او يا خيژے

فِى السَّمَآءِ ؕ وَلَنۡ نُّؤۡمِنَ لِرُقِيِّكَ

آسمان ته ، او چرے نه منو موږ ختل ستا

حَتّٰى تُنَزِّلَ عَلَيۡنَا كِتٰبًا نَّقۡرَؤُهٗ ؕ

ترڅو چه نازل کړے په موږ باندے کتاب چه موږ يې اولولو ،

دى چه فائده يې عامه شي ، او په دويم کښ باغونه او نهرونه پيدا کيدل اګرچه ستا د پاره خاص وى او دا تصرفات د زمکے دى ۔ او په دريم کښ تصرف کول په آسمان کښ دى ۔ او تصرف کول په آسمان والا کښ ، او په څلورم کښ تبديلى د فقيرۍ نه مالدارۍ ته ، يا ترقى کول پداسے طريقے چه زمکے نه آسمان ته اوخيژى ، او هر کله چه رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوى ته وئيلى وُو چه زهٔ په شپه د معراج کښ آسمان ته ختلے يم نو هغوى زر مطالبه بدله کړه چه صرف ختل نه منو بلکه ځنې کتاب به د ځان سره راوړے ۔

فائده :۔ د باطل پرستو عقيده په باره د نيکانو خلقو کښ دا وى چه د دوى سره د زمکے او آسمان تصرفات دى او الله او ملائک هم د دوى تابع دى ، د دے عقيدے په بناء سره دوى د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا مطالبے کولے ؟

د جواب حاصل دا دے چه زهٔ بشر يم او رسول يم او د بشر

قُلْ سُبْحَانَ رَبِّيْ هَلْ كُنْتُ

ته اووایه پاکی ده رب زما لره نه یم زهٔ

إِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۳﴾ وَمَا مَنَعَ

مګر بشر رسول یم ۔ او نه دے منع کړے

النَّاسَ أَنْ يُّؤْمِنُوْا إِذْ جَاءَهُمُ

خلقو لره د ایمان راوړلو نه کله چه راغے دوی ته

الْهُدٰى إِلَّا أَنْ قَالُوْا أَبَعَثَ اللّٰهُ

هدایت مګر دے بهانے چه دوی وائی آیا راولیږلو الله تعالیٰ

اګرچه رسول وی په قدرت کښ تصرفات دَ عالم نشته۔

كَمَا زَعَمْتَ، په دے کښ اشاره ده هغه آیا نونوته چه په هغے کښ دَ آسمانونو انشقاق او انفطار ذکر دے او دوی دَ هغے نه ردَ کفر دَوجے نه) تعبیر اوکړو په زعم سره۔

وَلَنْ نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ،، رُقِيِّكَ، مصدر دے دَ رقی او ارتقاء نه په معنیٰ دَ ختلو سره دے او په معنی دَ صحیفے او وړوکی کتاب سره خو په هیڅ لغت کښ نه دی راغلی نو دغه معنی غلطه ده۔

سُبْحَانَ رَبِّيْ، په دیکښ اشاره ده چه دغه ذکر کړے شوی دَ الوهیت تصرفات دی او دَ الله تعالیٰ شریک په الوهیت کښ نشته نبی الله نه دے بلکه بشر رسول دے۔

سوال:۔ په حدیث دَ مسند احمد کښ دی چه الله تعالیٰ نبی صلی الله علیه وسلم ته اوفرمائیل که ته غواړے چه بطحاء رشګه) دَ مکے ستا دَ پاره سره زرجوړکړم لیکن هغه رد کړه؟

جواب:۔ دَ هغه حدیث په سند کښ علی بن یزید راوی دے هغه ضعیف دے۔ بل جواب دادے چه په هغے کښ هم ذکر دَ تصرف او قدرت دَ الله دے۔

بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۴﴾ قُلْ لَّوْ كَانَ

بشر لره رسول ۔ ته اُوایه که چرے وے

فِي الْاَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ

په زمکه کښ ملائک چه گرځیدے

مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ مِّنَ

اوسیدونکی وے نو رالیږلے به وو مونږ په دوی باندے دَ

السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا ﴿۹۵﴾ قُلْ

آسمان نه ملک (فرښته) رسول ۔ ته اُوایه

۹۴:۔ دا زجر دے په انکار دَ بشریت دَ رسول نه ، او دا سوال دَ تیر شوی آیت نه پیدا شو چه مخکښ اُوئیلے شو چه زهٔ بشر رسول یم نو دوی دَ دے وجے نه انکار اوکړو حاصل دا دے چه بشریت دَ رسول صرف مانع دے دوی لره دَ رسول منلو نه او په سورۃ کهف ۵۵ کښ مانع دَ توحید دَ منلو نه ذکر کړیدے دَ دے وجے نه په دواړو حصرونو کښ منافات نشته دے او اوس هم باطل پرست خلق لکه بریلیان دَ رسول دَ بشریت نه منکر دی صرف فرق دا دے چه مخکنو خلقو رسول لره په سترګو لیدلو چه بشر دے نو دَ رسالت نه ئے انکار کوؤ او دے موجود وؤ خلقو رسول په سترګو نه دے لیدلے نو دوی دَ بشریت نه انکار کوی ، او دواړه په دے عقیده کښ شریک دی چه دَ بشریت او رسالت په مینځ کښ منافات ګنړی۔

۹۵:۔ په دے آیت کښ جواب دَ تیر شوی سوال دے ۔ حاصل دَ جواب ئے دا دے چه رسول دَ جنس دَ مرسل الیهم نه ضرور پکار وی نو که په زمکه کښ ملائک وے نو دَ دوی رسول به ضرور ملک وؤ دَ هغوی دَ جنس نه ، لیکن تاسو بشر یئ نو ستاسو رسول به ضرور بشر وی ۔

كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًاۢ بَيْنِيْ وَ

پوره دے الله تعالیٰ گواه (فیصله کوونکے) په مینځ زما او

بَيْنَكُمْ ؕ اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ

په مینځ ستاسو کښ، یقینًا الله تعالیٰ دے په بندګانو خپلو

خَبِيْرًاۢ بَصِيْرًا ﴿۹۶﴾ وَمَنْ يَّهْدِ

خبردار لیدونکے. او هغه څوک چه هدایت اوکړي

اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ

الله تعالیٰ هغه نو هغه هدایت موندونکے دے او هغه څوک چه

يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ اَوْلِيَآءَ

بے لارے کړي الله تعالیٰ هغه لره نو چرے او به نه مومے ته هغوی لره مددګار

مِنْ دُوْنِهٖ ؕ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

سوا د الله تعالیٰ نه، او راغونډ به کړو مونږ دوی په ورځ د قیامت

يَمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ، کښ اشاره ده چه که ملائک داسے شي چه آسمان ته نشي ختلے په زمکه کښ ژوند تیروی او دا ئے ځکه اوفرمائیل چه په زمکه کښ خو ملائک شته لیکن هغوی آسمانونو ته ځي راځي۔

ملګ :- دا هم جواب دے او اثبات د رسالت د رسول الله صلی الله علیه وسلم دے په شهادت د الله تعالیٰ سره، او دا رنګ په سورة رعد ۴۳ کښ دي۔

شَهِيْدًا، شهادت کول د الله تعالیٰ په رسالت د رسول بانديے هغه اخبارات او حجتونه دي چه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ په ډیرو آیاتونو کښ ذکر کړي دي او په هغې فیصله کیږي د دوه فریقو په مینځ کښ د دے وجے نه بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ ئے اوئیلو۔ یا د شهادت نه علم د الله تعالیٰ په حال د نبي او په حال د

عَلٰی وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا
په مخونو دَ مخوی باندے پانده او چاړه ګان
وَّصُمًّا ؕ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ
او کاڼره ځائے دَ دوی جهنم دے ،
كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ﴿۹۷﴾
هر کله چه لمبے کمے شي نو زیاتوؤ به دوی لره لمبے دَ اور -

النصف

منکرینو باندے مراد دے یعني بالفرض که دا نبي حق نه وے نو الله تعالیٰ به دے هلاک کړے وے لکه چه په سورة الحاقه ۴۵ ، ۴۶ کښ ذکر دی -

۹۷ :- په دے آیت کښ ذکر دَ دوؤ پلو دے روستو دَ اثبات دَ رسالت نه څوک به دا رسول مني او څوک به يئے نه مني او بیا ته منونکوته تخویف اخروي دے او دا رنګ دا جواب دَ سوال دے چه دا رسول که چرته په حقه باندے وي نو لازم داده چه ټولو خلقو به هدایت موندلے وے حاصل جواب دا دے چه هدایت او اضلال په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دے -

وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰی وُجُوْهِهِمْ ، او دا رنګ په سورة فرقان ۳۴ کښ دی -

عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ، په حقیقت حمل دے یعني په بعضے حالت کښ په ورځ دَ حشر به دَ دوی دا سے حال وي ، او حدیث صحیح کښ راغلی دی - ( قَالَ أَلَيْسَ الَّذِيْ أَمْشَاهُ عَلَى الرِّجْلَيْنِ فِي الدُّنْيَا قَادِرًا عَلٰی أَنْ يُمْشِيَهُ عَلٰی وَجْهِهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ) یعني هغه ذات چه په دنیا کښ يئے دوی په خپو باندے ګرځولی دی نو هغه قادر دے چه په قیامت کښ يئے په مخ باندے اوګرځوي - هر کله چه په عذاب دَ جهنم کښ تخفیف نه راځي لکه نورو نصوصو کښ دا ظاهر راغلی دی -

نو كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ، معنیٰ حقیقي مراد نه ده بلکه

ذٰلِكَ جَزَآؤُهُم بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا

دا سزا دَ دوی ده په وجه دَ دے چه دوی کفر کړیدے

بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوٓا ءَاِذَا كُنَّا

په آیاتونو زمونږ او دوی وائی آیا چه کله شو مونږ

عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوثُونَ

هډوکی او ذرے ذرے آیا مونږ په ضرور پورته کړیشو

خَلْقًا جَدِيدًا ﴿۹۸﴾ اَوَلَمْ يَرَوْا

په پیدائش نوی سره ۔ آیا نه گوری دوی

اَنَّ اللّٰهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ

چه یقیناً الله تعالیٰ داسے ذات دے چه پیدا کړیدی آسمانونه

وَالْاَرْضَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ

قادر دے چه پیدا کړے دَ دوی پشان

وَجَعَلَ لَهُمْ اَجَلًا لَّا رَيْبَ فِيهِ ط

او مقرر کړیده دَ دوی دَپاره نیټه نشته شک په هغے کښ،

فَاَبَى الظّٰلِمُونَ اِلَّا كُفُورًا ﴿۹۹﴾

نو نه کوی ظالمان بل کار سوا دَ ناشکرئ کولو نه ۔

ترق په عذاب کښ مراد ده ۔ یا خبث، په معنی دَ فی زعمهم دے.
۹۸ ؛۔ په دے کښ اسباب دَ عذاب ئے ذکر کړی دی یو کفر بالاٰیات یعنی انکار دَ توحید نه، او دویم انکار دَ بعث بعد الموت نه او دا دویم سبب دَ دے سورت په ۴۹ کښ ذکر وؤ۔
۹۹ :۔ دا دلیل عقلی دے دَپاره دَ اثبات دَ بعث بعد الموت او دَپاره دَ توحید۔

قُلْ لَّوْ اَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ خَزَآئِنَ

ته اُووایه که تاسو شئ اختیارمند دَ خزانو

رَحْمَةِ رَبِّيْٓ اِذًا لَّاَمْسَكْتُمْ

دَ رحمت دَ رب زما نو دغه وخت به خامخا تاسو بند کړئ

خَشْيَةَ الْاِنْفَاقِ ۭ وَكَانَ الْاِنْسَانُ

دَ وجې دَ يرې دَ خلاصيدو نه او دے انسان

قَتُوْرًا ﴿۱۰۰﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى

ډير تنګ زړے ۔ او يقيناً ورکړے دی مونږ موسیٰ علیه السلام ته

ع ۱۱

فَاَبٰى الظّٰلِمُوْنَ اِلَّا كُفُوْرًا ، په دے کښ ئې ظالمون لفظ دَ دے وجې نه راوړو چه انکار دَ قدرت دَ الله تعالیٰ نه لوے ظلم دے، او په ۸۹ کښ النّاس ئې ذکر کړيدے ځکه چه صرفنا للناس پکښ ذکر کړے دے۔

عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ، دا رنګ په سورة یٰس ۸۱ کښ او په سورة احقاف ۳۳ کښ دی او دَ مثلهم نه مراد نفس ذاتونه دَ دے خلقو دی ځکه چه مثل کله په معنیٰ دَ ذات راځی او آيت ۳۳ سورة احقاف دَ دے تفسير دے ځکه چه په هغې کښ دَ مثلهم په ځائے کښ الموتیٰ ذکر کړيدے۔

۱۰۰ :- تیر شوی آیت کښ قدرت دَ الله تعالیٰ ذکر کړے شو نو په دے آیت کښ عجز او ضعف دَ مخلوقاتو ذکر کوی چه دوی سره دَ خزانو مِلك او اختیار نشته او که بالفرض دَ خزانو مالکان شي نو خرچ نشي کولے دَ دے يرے نه چه دا خزانے خو به خلاصے شي ۔ او دا آیت رد دے په هغه چا باندے چه انبياء او اولياء دَ خزانو اختيارمند ګنړی نو په دے آیت کښ هم دليل دَ توحيد دے ۔

تِسۡعَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ فَسۡـَٔلۡ
نهه معجزات ښکاره نو تپوس ئې اوکړه
بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اِذۡ جَآءَهُمۡ فَقَالَ
دَ بني اسرائیلو نه کله چه راغے دوی ته نو اُوئیل
لَهٗ فِرۡعَوۡنُ اِنِّىۡ لَاَظُنُّكَ
هغه ته فرعون یقینًا زه گمان کوم په تا باندے
يٰمُوۡسٰى مَسۡحُوۡرًا ﴿۱۰۱﴾ قَالَ لَقَدۡ
اے موسٰی دَ جادو کړے شوُ نه ۔ اُوئیل موسٰی علیه السلام یقینًا

سلا ۱۰۱ :۔ خلاصه :۔ دَ دے آیت نه تر آخر دَ سورت پورے خلورمه حصه ده په دے کښ خلورم سبب دَ عذاب ذکر کوی چه هغه استهزاء بالرسول ده او دَ دے مثال ئې ذکر کړے دے په واقعه دَ فرعون او دَ موسٰی علیه السلام دَ سلا ۱۰۱ نه تر سلا ۱۰۴ آیت پورے ۔ او بیا ترغیب دے قرآن ته په سلا ۱۰۵ ، سلا ۱۰۶ آیتونو کښ ، بیا دلیل نقلی دے دَ اهل کتابو سابقینو نه سلا ۱۰۷ ، سلا ۱۰۸ ، سلا ۱۰۹ آیتونو کښ ۔ بیا اختتام دَ سورت دے په سلا ۱۱۰ ، سلا ۱۱۱ آیتونو کښ په توحید سره ۔

تفسیر :۔ په دے کښ وَلَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسٰى تِسۡعَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ، مراد دَ آیات نهٔه معجزات دَ موسٰی علیه السلام دی چه په سورۃ اعراف سلا ۱۳۰ ، سلا ۱۳۳ کښ ذکر شوی دی او بعضے مفسرینو دَ دینه نهه احکام اراده کړی دی او هغه په حدیث دَ صفوان بن عسال کښ ذکر شوی دی لیکن ابن کثیر وئیلی دی چه دا حدیث منکر دے او دَ عبدالله بن سلمه راوی په حفظ کښ نقصان دے ۔ او په هغه باندے اشتباه راغلے ده چه تسع ایات دَ حشر کلمات سره ۔
ربط :۔ او دَ دے آیت ربط دَ ماقبل سره دا دے چه فرعون سره اگرچه ډیرے خزانے وے لیکن دَ هغے په سبب سره دَ

عَلِمْتَ مَآ أَنزَلَ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا

ته پوهه یې چه نه دي نازل کړي دا معجزات مګر

رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ بَصَآئِرَ

رب دَ آسمانونو اوذمکې دلیلونه ښکاره کولو دَ توحید

وَإِنِّى لَأَظُنُّكَ يَٰفِرْعَوْنُ مَثْبُورًا ﴿١٠٢﴾

او یقیناً زهٔ ګمان کوم په تا باندې اے فرعونه تباه کړے شوے۔

فَأَرَادَ أَن يَسْتَفِزَّهُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ

پس اوغوښته فرعون چه اوباسي دوي لره (په زور) دَ ملک دَ مصر نه

فَأَغْرَقْنَٰهُ وَمَن مَّعَهُۥ جَمِيعًا ﴿١٠٣﴾

نو غرق کړو موږ دے او دَ ده ملګري ټول۔

عذاب دَ الله تعالٰی نه بچ نه شو نو معلومه شوه چه دے اختیارمند دَ خزانو نه وؤ او په هغه باندے دَ وجے دَ استهزاء نه په رسول پورے عذاب راغے۔

مَسْحُوْرًا ، پخپله معنی سره دے یا په معنی دَ ساحر دے کله مفعول په معنی دَ فاعل سره راځي او دَ مسحور معانی په ۴۷ آیت کښ تیرے شوي دي۔ معجزات دَ موسٰی علیه السلام نورے هم ډیرے وے لکه چه سورۃ بقره کښ ذکر دي لیکن دَ فرعون په ژوند کښ غټې معجزات صرف نهه وو۔

۱۰۲:۔ دا خطاب دے دَ موسٰی علیه السلام فرعون ته او دلیل دے په دے خبره چه فرعون په زړه کښ حق پیژندلو لیکن په ژبه یې عناداً انکار کوؤ لکه سورۃ نمل ۱۴ آیت کښ دي۔

مَثْبُوْرًا ، هلاک شوے او ناقص العقل او لعنتی۔

۱۰۳:۔ په دے آیت کښ بل ظلم دَ فرعون ذکر شوے دے چه ویستل دَ بنی اسرائیلو دي دَ مصر نه هغه هم سبب دَ عذاب شو۔

وَقُلْنَا مِنْ بَعْدِهٖ لِبَنِیْٓ اِسْرَآئِیْلَ

او اُوئیل مونږ روستو دَ دغرقیدلو دَ هغه نه) بنی اسرائیلو ته

اسْكُنُوا الْاَرْضَ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ

اوسیږئ په زمکه کښ پس هر کله چه راشی وعده

الْاٰخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِیْفًا ﴿۱۰۴﴾

دَ آخرت راولو به تاسو لره غونډ (په جمع سره).

وَبِالْحَقِّ اَنْزَلْنٰهُ وَبِالْحَقِّ

او په حق سره نازلول شروع کړیدی مونږ دَ دے قرآن او په حق سره

نَزَلَ ؕ وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا

نازل شوی دی، او نه یئ لیږلے مونږ ته مګر زیرے ورکوونکے

فَاَرَادَ اَنْ یَّسْتَفِزَّهُمْ مِّنَ الْاَرْضِ ، اَرَادَ ، په معنی دَ کوشش کولو دے او بیا عذاب ذکر شوے دے او په دے کښ تصریح ده چه فرعون دَ غرق نه بچ شوے نه دے.

۱۰۴ :- په دے کښ ذکر دَ انعام دے په بنی اسرائیلو باندے سره دَ تخویف اخروی نه،

او مراد دَ اَلْاَرْضَ . نه زمکه دَ شام او بیا زمکه دَ مصر ده په زمانه دَ داؤد علیه السلام کښ او په دے آیتونو کښ لطیفه اشاره ده چه دا مکے والا به هم دَ دے رسول تکذیب کوی او بیا به یئ دَ مکے نه اوشړی لکه چه بنی اسرائیلو لره فرعون اوشړل ، وبیا به مؤمنان په مدینه او په مکه (پس دَ غلبے نه) کښ آباد پاتے شی.

وَّنَذِيْرًا ﴿١٠٥﴾ وَقُرْاٰنًا فَرَقْنٰهُ

او یرہ ورکوونکے ، او قران مونږ تقسیم کړیدے په حصو کښ

لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ

دے دپارہ چه او لولے ته دا په خلقو باندے په دمه دمه

وَّنَزَّلْنٰهُ تَنْزِيْلًا ﴿١٠٦﴾ قُلْ اٰمِنُوْا

او لږ لږ نازل کړیدے مونږ دے په نازلولو سره - ته اُوايه که ایمان راوړئ

۱۰۵ :- په دے کښ ترغیب دے قرآن ته چه نزول دَ قرآن په حق سره شروع شوے دے او په حق سره زمکے ته رارسیدلے دے یعنی په مینځ کښ هیڅ تبدیلی ته ده راغلی او په دیکښ اشارہ تخویف دے یعنی فرعون دَ حق انکار اوکړو نو عذاب وربانداے راغے نو دا موجوده خلق که دَ قرآن (چه حق دے) انکار اوکړی نو په دوی باندے به هم عذاب راشی - او په دے کښ صداقت دَ رسول هم ذکر شویدے -

۱۰۶ :- دا هم متعلق دے دَ تیر شوی آیت سره - فَرَقْنٰهُ ، کښ مراد دا دے چه تقسیم کړے دے مونږ دا قرآن په سورتونو او په آیاتونو سره چه په خلقو باندے په دمه دمه لوستلے کیږی چه هغوی پرے پوهه شی -

او وَنَزَّلْنٰهُ ، کښ اشارہ ده چه لږ لږ نازل کړے شوے دے۔

وَقُرْاٰنًا ، منصوب دے په شرط دَ تفسیر سره په ما بعد کښ نو فعل دَ دے مناسب پټ دے - یعنی وَاَنْزَلْنَا قُرْاٰنًا.

فَرَقْنٰهُ ، په دیکښ دوه قراءتونه دی یو په تخویف او بل په تشدید سره لیکن غوره دا ده چه دلته مخفف په معنی دَ مشدد سره دے او مراد پرے سره تقسیم دے آیاتونو او سورتونو ته او په دیکښ جواب دَ سوال دَ منکرینو دے چه هغوی وئیل چه دا قرآن په یو کرت ولے نه نازلیږی-

بِهٖۤ اَوْ لَا تُؤْمِنُوْاؕ اِنَّ الَّذِیْنَ

پدے قرآن او که نه راوړی ایمان ، یقیناً هغه کسان

اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖۤ اِذَا

چه علم ورکړے شوے دے هغوی ته مخکښې د دینه کوم وخت چه

یُتْلٰی عَلَیْهِمْ یَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ

اولوستلے شی په هغوی باندے پریوځی په زنو باندے

سُجَّدًاۙ ﴿۱۰۷﴾ وَّ یَقُوْلُوْنَ سُبْحٰنَ رَبِّنَاۤ

سجده کوونکی ۔ او دوی وائی پاکی ده د رب زمونږ

اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا ﴿۱۰۸﴾

یقیناً وعده د رب زمونږ خامخا پوره کړے شوے ده ۔

ف۱۰۷ :- پس د بیان د صداقت د قرآن ته او د جواب د سوال د هغوی ته اولا زجر دے منکریتو ته او بیا دلیل نقلی دے د مخکنو کتابیانو نیکانو ته ۔ او اذقان نه مراد تندے او مخ دے په ذکر د جزء مجاور سرا و مراد ترینه کل دے او په دے کښې زیاتی خشوع ته اشاره ده چه په سجده کښې د زیاتے خشوع د وجے نه تندے بدیرے زمکے ته نزدے کوی ۔ او هر کله چه عین زنه او دیره کیخودل په زمکه باندے کیخودل مراد نه دی د دے وجے نه علی الاذقان ئے نه دے وئیلے ۔

اُوْتُوا الْعِلْمَ ، هغه علماؤ ته وئیلے شی چه په کتاب الله باندے تمسك کوی عمل کوی نو شهادت هم د هغوی قبلیږی ۔

ف۱۰۸ :- دا دلیل دے د تسبیح وئیلو په حال د سجده کښې یعنی د دوی په کتابونو کښې د آخری رسول صلی الله علیه وسلم په باره کښې پیشنګوی کړے شوے وه هغے ته ئے وعده اوئیله ۔

وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ
او پرېوځي په زنو باندې ژاړي دوی او زياتوي دوی لره
خُشُوعًا ﴿١٠٩﴾ قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ
عاجزي۔ ته اُوايه بلنه کوئ د الله تعالیٰ يا
ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ ۖ أَيًّا مَّا تَدْعُوا
بلنه کوئ د رحمان ، هريو چه بلئ تاسو
فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ ۚ وَلَا تَجْهَرْ
نو هغه لره نومونه ښائسته دي او جهر مه کوه
بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ
په دعاء خپله سره او پټوالے مه کوه په هغې سره او طلب کړه
بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١١٠﴾ وَقُلِ
د دے په مينځ کښې لار۔ او ته اُوايه

۱۰۹ :۔ په دے کښې د دوی نور صفات ذکر کړے شوي دي يعني ژړا او زياته خشوع کول ، او تکرار کولو کښې اشاره ده کثرت د سجود ته او د اولے سجدے سبب اوريدل د قرآن دي او د دويم محل سجدے کولو سبب بکاء او خشوع ده يا اول آيت کښې د دوی سجده ذکر ده او په دويم کښې ذکر د سجدے نشته بلکه روستو د سجدے نه سرتيټ کړي د ژړا د پاره او آيت دليل دے چه په کتاب د الله تعالیٰ سره په انسان کښې خشوع زياتيږي او دغه خشوع ايمان دے او په ذکر د دے صفت کښې اشاره ده چه علماؤ د قرآن لره همدا اسے کيفيت پکار دے.
۱۱۰ :۔ په دے کښې ترغيب دے دُعا ته په حال د سجده او حال د خشوع کښې او تصريح ده په دے خبره باندے چه د دعا په وخت کښې اسماء حسنیٰ د الله تعالیٰ ذکر کول په

الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ

ټول صفتونه د الوهيت خاص الله تعالیٰ لره دي داسې ذات دی چه نه دی نیولې

وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ

ولد (ځوی) | او نشته هغه لره | شريک

طريقه د وسيلې سره ضروري دي لکه سورة اعراف ۱۸۰ آيت کښ چه دي۔ او په دې کښ رد دے په شرک في الدعاء باندې۔
فائده :- دا چه خلقو کښ مشهوره ده چه د دعاء په وخت وائی اے خدايه دا د دې آيت او د آيت د سورت اعراف نه صريح مخالفت دے د دې لفظ پريښودل ضروري دي بلکه يا الله يا رحمان دِ وائی يا نور اسماءِ حسنیٰ ځکه چه لفظ خدا اگر چه په معنی د مالک دے ليکن تعين په معانو سره صحيح نه دے اگرچه د معانی په لحاظ سره اطلاق ئې په طريقه د توصيف او اخبار په الله تعالیٰ باندې صحيح دے۔
وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا، د دې معنی دا ده چه دعا په جهر سره مه لوله او په زړه کښ پورې هم اکتفا مه کوه بلکه په ژبه لوله او دا روايت دے د عائشه رضی الله عنها او اشاره ده چه جهر په دعاء سره بغير د شرعی مواضعو نه بدعت دے دلته په سورة اعراف ۵۵ او ۲۰۵ کښ هم دی۔
دويمه معنی دا ده چه مراد د صلاتك نه قراءت دے او دا روايت دے د ابن عباس رضی الله عنهما يعنی قراءت په ټولو مونځونو کښ په جهر مه لوله او په ټولو کښ په خفاء سره مه لوله بلکه بعضې په جهر او بعضې په اخفاء سره او دا رنګ خارج د مانځه نه هم قراءت په اوچت اواز سره چه خلق پريشان کوی جائز نه دی او اکتفاء د زړه په فکر کولو سره فقط دا هم نه دی جائز۔

فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ وَلِيٌّ

په بادشاهۍ کښې او نشته هغه لره امداد

مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ﴿١١١﴾

دَ وجې دَ کمزورۍ نه او لوئي وايه دَ هغه لوئي کول۔

ف ۱۱۱:- پدے آیت کښې امر دے په حمد ویئیلو دَ دُعاء سره په اول دَ دعا کښې او په نعمت دَ اختتام دَ دے سورت سره۔ هر کله چه مخکښې آیت کښې دَ الله تعالیٰ صفات ثبوتیه ته اشاره اوکړه په اسماء حسنیٰ سره نو اوس پدے آیت کښې صفات سلبیه ذکر کوی۔ او پدے آیت کښې رد دے په درے اقسامو دَ شرک، یو شریک ادنیٰ وی چه هغه ولد دے هغه یې نفی کړو په دے قول سره لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا، او دویم شریک مساوی وی هغه یې نفی کړو پدے لفظ سره وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ، او دریم قسم شریک اعلیٰ دے په هغې رد دے په دے قول سره چه وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ، او دَ دے قسم شرک په صابئینو مجوسو کښې شته چه هغوی وئیل (لَوْلَا أَوْلِيَاءُهُ لَذَلَّ) (العیاذ بالله)۔

او دا رنګ په دے امت کښې شته چه اولیاء الله په الله تعالیٰ شفعاء قهریه یعنی زورآور ګنړی، او دَ بریلیانو عقیده دہ چه عبد القادر جیلانی نه دستګیر دَ دے وجے نه وائی چه (نعوذ بالله) یو ځل یې دَ الله تعالیٰ مدد کړے وو۔ او پدے آیت کښې اشاره دہ چه په مانځه کښې دَ تکبیر اولیٰ نه وړاندے دَ شرک نه براءت ضروری دے۔

تمت سورة بنی اسرائیل

| سورة الکهف مکیة | بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ | ایاتها ١١٠ رکوعها ١٢ |
|---|---|---|

خاص په نوم د الله تعالی امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمن او رحیم دے

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ

ټول صفتونه د الوهیت خاص الله تعالی لره دی هغه ذات دے چه نازل کړی دے

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

## سورة الکهف

### سورة الکهف او بل نوم د دے الحائله دے

د دے سورت نه دریمه حصّه د مضامینو د قرآن ده تر سورة سبا پورے او په دے حصّه کښې شپاړس سورتونه دی ، په دے کښې مضمون د رحمانیت د الله تعالی دے په دوؤ طریقو سره اوله طریقه ، دا چه الله تعالی نظام پخپله چلوی چا ته ئے نظام نه دے سپارلے یعنی ولی ئے نشته . دویمه طریقه دا چه برکات اچونکے بواځے الله تعالی دے .

ربط :- د سورة کهف د سورة اسراء سره دا دے ، سورة اسراء کښې بیان شو چه شرک سبب د عذاب دے او د شرک شرک رد او شو تفصیلاً په آخر کښې نو په دے سورت کښې جوابات دی د شبهاتو په توحید باندے دا رنګ په سورة اسراء کښې هجرت د نبی ذکر کړے دے نو په دے سورت کښې د هجرت درے اقسام ذکر کوی .

دعوای د سورت :- دفع د شبهاتو د مشرکینو ده چه دلیل نیسی په امور خارقه للعادة باندے . او ماخذ د دے دعوی ( وَلَمْ یَجْعَلْ لَّهٗ عِوَجًا ) کښې دے یعنی شبهات او ( وَّیُنْذِرَ الَّذِیْنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ) په دے آیت کښې یعنی دا سے شخص چه په هغه کښې اثار د الوهیت ښکاریږی یعنی قدرت کامله او علم غیب دا سے د الله تعالی نائب نشته دے .

او اثبات د توحید ئے ذکر کړیدے په رد د اقسامو د شرک

عَلٰى عَبْدِهِ الْكِتٰبَ وَلَمْ يَجْعَلْ
په بنده خپل باندے کتاب او نه دے کړے
لَّهٗ عِوَجًا ۟ۜ قَیِّمًا لِّیُنْذِرَ بَاْسًا
ده لره هیڅ کږ لیچ - پوخ بیان والا دے دے دپاره چه یره ورکړی د عذاب

سره یعنی شرک فی العلم او فی التصرف او فی العبادات او فی الدعاء سره په لسو آیاتو کښ، او په ذکر کولو د شپږو اسماؤ حسنیٰ سره۔
خلاصه د دے سورت :- دا سورت تقسیم دے یو مقدمے او څلورو حصّو ته او یوے خاتمے ته۔
مقدمه : د سورت تر ۸ آیت پورے ده۔
۱ : خلاصه :- په دے کښ دعوی د توحید ده په الحمد لله سره او اثبات د هغے په راليږلو د داسے کتاب سره چه شبهات نه لری په ۱ کښ - بیا مقصد د کتاب ئے ذکر کړے دے په انذار او په بشارت سره ۲، ۳ کښ بیا زجر دے په عقیده د اتخاذ ولد سره چه قرآن د دے د رد دپاره نازل کړے شوے دے ۴، ۵ آیتونو کښ - بیا تسلی د رسول ۶ آیت کښ - بیا تزهید فی الدنیا ۷، ۸ آیتونو کښ او دا مضامین په سورت کښ تفصیلاً ذکر کیږی۔
تفسیر ۱ :- په دے آیت کښ دعویٰ د توحید په اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ سره ده ځکه چه معنیٰ ئے دا ده ، ټول صفتونه د الوهیت (چه قدرت کامله او علم غیب دے) خاص الله تعالیٰ لره دی په دے کښ ورسره هیڅوک شریک نشته ، بیا ذکر د انزال د کتاب الله دے چه په هغے کښ شبهات نشته ، او شبهات دفع کوی۔
عِوَجًا ، معنیٰ ئے شبهات دی اشاره ده که په توحید کښ د چا شبه وی یا ورته پیش کیږی نو دا قرآن دِ اولولی۔

شَدِيدًا مِّن لَّدُنْهُ وَيُبَشِّرَ
دَ سخت نه چه دَ هغه دَ طرف نه دے او زيرے ورکړي
الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ
مؤمنانو لره هغه کسان چه عملونه کوي
الصّٰلِحٰتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا حَسَنًا ﴿٢﴾
دَ سنت برابر چه يقيناً دوي لره ثواب دے خائسته.

ت ۲. قَيِّمًا، مضبوط مضمون والا دَے يعني توحيد په دليلونو سره ثابتوي او موحد لره په توحيد باندے مضبوطوي، او بيا ئے حکمت دَ انزال قرآن ذکر کړے دے چه انذار او تبشير دے. انذار دَپاره منذِر او منذَر لهم او منذر عنه درے واړه ضروري دي او دا رنګ دَ بشارت دَپاره مبشر او مبشر لهم او مبشر به ضروري دي.

نو په ضمير دَ لِيُنْذِرَ، کښ چه کتاب يا عبد ته راجع دے اشاره ده منذِر ته.

او په بَأْسًا شَدِيدًا، سره ذکر دَ منذر عنه دے او منذر لهم به روستو ذکر کوي. او په ضمير دَ يبشر کښ اشاره ده مبشر ته چه کتاب دے يا عبد دے.

الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصّٰلِحٰتِ، سره مبشر لهم ذکر کړے شو يں لے.

او أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا حَسَنًا، سره مبشر به ذکر کړے دے او په الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصّٰلِحٰتِ، سره لطيفه اشاره ده واقعے دَ اصحاب کهف او موسىٰ عليه السلام او خضر او ذوالقرنين ته. او په دے آيت کښ تخويف او بشارت دے.

مَّاكِثِينَ فِيهِ أَبَدًا ﴿٣﴾ وَّيُنذِرَ

اوسیږی په هغې کښې همیشه ۔ او یره ورکړی

الَّذِينَ قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ

هغه کسانو لره چه وائی نیولے دے الله تعالیٰ

وَلَدًا ﴿٤﴾ مَّا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ

ولد (ځوے) ۔ نشته دوی لره په دے باندے هیڅ علم

وَلَا لِآبَائِهِمْ ۚ كَبُرَتْ كَلِمَةً

او نه پلارانو دَ دوی لره ، ډیره لویه خبره ده (په ناکاروالی کښې)

تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ ۚ إِن

چه راوځی دَ خلو دَ دوی نه ، دوی

يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا ﴿٥﴾ فَلَعَلَّكَ

نه وائی مګر دروغ ۔ نو آیا ته

س۳ :۔ دا متعلق دے دَ بشارت سره او دوام دَ جنت او دَ اهل جنت ته اشاره ده ۔

س۴ :۔ په دے آیت کښې منذر لهم ذکر کوی ۔ او اشاره ده چه قرآن دَ هغه چا دَ رد دَپاره دے چه عقیده دَ اتخاذ ولد لری او دَ ولد نه مراد په تیز دَ مشرکانو ثابتول دَ داسے ذات دی چه هغه لره الله تعالیٰ دَ خپلو صفاتو خاصو نه څه ورکړے وی نو په هغے کښې دَ الوهیت آثار ښکاریږی او دَ دے وجے نه هغه لره بندګی کول هم لازم ګنړی او حاجت پوره کوونکے ئے ګنړی لکه چه په ولد کښې اثار دَ ولد ښکاره کیږی او دَ هغه نائب وی ۔

س۵ :۔ په دے آیت کښې تقبیح دَ دغه عقیدے ئے ذکر کړیده چه دا بے دلیله خبره ده او دا دَ خبرے او عقیدے دَپاره دا قباحت پوره دے چه دلیل پرے موجود نه وی صرف دَ اباؤ

بَاخِعٌ نَّفۡسَكَ عَلٰٓى اٰثَارِهِمۡ
وژونے ځان خپل په دوی پسے

اِنۡ لَّمۡ يُؤۡمِنُوۡا بِهٰذَا الۡحَدِيۡثِ
که چرے دوی نه راوړی ایمان په دے خبره (رد توحید)

اَسَفًا ۝٦ اِنَّا جَعَلۡنَا مَا عَلَى
د غم د وجے نه - یقیناً موږ خامخا گرځوو به هغه څه چه په

الۡاَرۡضِ زِيۡنَةً لَّهَا لِنَبۡلُوَهُمۡ
زمکه باندے دی ډول د زمکے د پاره د دے چه دوی ازمائش اوکړو

تقلید کوی، بیا شبه راغله که په دے خبره څه دلیل نشته دے لیکن خیر دے معمولی خبره ده څه پرواه نشته نو جواب اوشو۔

كَبُرَتۡ كَلِمَةً تَخۡرُجُ مِنۡ اَفۡوَاهِهِمۡ، یعنی دا خبره ډیره غټه قبیحه ده چه د دوی د وړو خلو نه را وځی بے دلیله، بیا د دے قباحت دلیل دا دے چه اِنۡ يَّقُوۡلُوۡنَ اِلَّا كَذِبًا، یعنی په دے خبره کښ سوا د دروغو نه بل هیڅ نشته۔

سلا :- په یکښ تسلی ده نبی علیه السلام ته چه د دے منکرینو د انکار په سبب دومره خفګا مه کوه چه د غم د وجے نه ځان وژنے۔

فَلَعَلَّكَ، لَعَلَّ، د پاره د استفهام انکاری دے او دا رنګ په سورة شعراء سلا ۳ او سورة فاطر سلا ۸ کښ هم دی۔

بَاخِعٌ، بخع په اصل کښ د مری رګ پریکولو ته وئیلے شی چه هغے سره مرګ لازمیږی۔

اٰثَارِهِمۡ، په دے لفظ کښ د دے مشرکینو د کفر او شرک کارونو او ظلمونو ته اشاره ده۔

أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ﴿٧﴾ وَإِنَّا

چه کوم یو خائسته عمل والا دے. او یقینًا

لَجٰعِلُونَ مَا عَلَيْهَا صَعِيدًا

مونږ خامخا گرځوو به هغه څه چه په زمکه دی میدان (صفا)

جُرُزًا ﴿٨﴾ أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ

خوړبه. آیا ته گمان کوے چه

أَسَفًا، تمیز دے دا باخع نفسك سره متعلق دے.

۷، ۸:- په دے دواړو آیاتونو کښ تزهید فی الدنیا دے - یعنی دَ دوی دَ نه منلو وجه دَ دنیا محبت دے لیکن دا دنیا او دَ دے سامانونه دَ لږو ورځو زینت دے او ابتلا ده او زر فنا کیدونکے دے نو په دے باندے مه دهوکه کیږئ -

زِينَةً، په دے سورت ۴۶ کښ هم ذکر شوے دے او رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ هغے تفسیر کړے دے په خُضْرَةٌ حُلْوَةٌ سره یعنی ستر گے پرے خوشحالیږی او خُله کښ صرف خوږ خوند پیدا کوی.

لِنَبْلُوَهُمْ، یعنی زینت دَ دنیا دَ ابتلاء او دَ امتحان دَپاره دے او امتحان دوه قسمه وی، اول قسم هغه چه دَ هغے فائده ممتحن ته اورسیږی یعنی هغه ته حقیقت حال معلوم شی - او دویم قسم هغه دے چه دَ هغے فائده امتحان ورکوونکی ته اورسیږی یعنی ممتحن دَ ځان دَ حال نه خبر نه وی بلکه خیال کوی چه زهٔ لائق یم او په کامیابئ کښ یم نو په امتحان سره هغه ته حقیقت حال معلوم شی - او دَ الله تعالیٰ امتحان په مخلوق باندے دویم قسم دے دا دَ دے وجے نه چه بلا یبلو په معنیٰ دَ حقیقت ښکاره کیدلو دے لکه یونس ۳۰ آیت کښ تو لنبلو، اصل معنیٰ دا ده چه او خایو مونږ دوی ته حقیقت حال دَ دوی-

أَحْسَنُ عَمَلًا، دا رنگ په تفسیر دَ سورة هود کښ تیره شویده-

# اَلْكَهْفِ وَالرَّقِيْمِ كَانُوْا مِنْ اٰيٰتِنَا عَجَبًا ⑨

غار والا او رقیم والا، وو دَ دلیلونو (دَ توحید) زمونږ نه ډیره عجیبه۔

او آیت ۸ کښ صَعِيْدًا جُرُزًا، اشاره ده فنا دَ دے سامان دَ دنیا ته۔ او دا لفظ په طریقه دَ تشبیه سره دے یعنی دَ دنیا تمام څیزونه چه فنا شي نو زمکه به داسے شي لکه شار میدان چه بتول بوټي تر ینه پرے کړے شوي وي۔

۹:۔ خلاصه:۔ دَ دے آیت نه اوله حصّه شروع ده تر آیت ۲۶ پورے۔

خلاصه تفصیلي ئے دا ده چه په دے کښ جواب دَ شبهے دَ مشرکانو دے چه دلیل نیسي په امورو خارقة للعبادة دَ اصحاب کهفو چه دَ دے امورو نه معلومیږي چه اصحاب کهف خاوندان دَ لوے قدرت وو، ډیر عمر اوده کیدل لوګه تنده نه راتلل دَ زمکے دَ بد آثارو نه بچ کیدل دَ نمر دَ تپش نه محفوظ کیدل دَ خلقو دَ تلو راتلو نه په امن کیدل دا امور خارقة للعادة دي۔

حاصل دَ جواب دا دے چه دغه احوال دلیلونه دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دي نه دَ قدرت دَ هغوي په آیت ۹ کښ ځکه چه دوي الله تعالیٰ ته محتاج وو او عاجزي کوونکي وو په آیت ۱۰ کښ۔ او محتاج وو اوده کیدلو ته په آیت ۱۱ کښ۔ او محتاج وو الله تعالیٰ ته دَ خوب نه په پاڅیدلو کښ په آیت ۱۲ کښ۔ او محتاج وو په زیاتوالي دَ هدایت کښ په آیت ۱۳ کښ۔ او محتاج وو په ربط القلب کښ الله تعالیٰ ته او رد کوونکي وو په شرک باندے په آیت ۱۴ او ۱۵ کښ او ځان ئے جدا کړے وو دَ مشرکانو نه په امید دَ رحمت دَ الله تعالیٰ په آیت ۱۶ کښ۔ بیا ذکر دَ کرامتونو دَ دوي دے سره دَ احتیاج نه الله تعالیٰ ته په آیت ۱۷، ۱۸ کښ۔ او ذکر دَ عدم علم دَ دوي دے په غیب باندے په آیت ۱۹ او ۲۰ کښ۔ بیا ذکر دَ حال دَ دوي

دے دلیل دَ پارہ دَ بعث بعد الموت اوزجر هغه چاته چه تنازع
ئے کوله په باره دَ دوی کښ پس دَ مرګ نه اوزجر په هغه چه جوړولو سره دَ دوی
په خوا کښ په آیت ۲۱ کښ ۔ او زجر په اختلاف کولو سره په
عدد دَ دوی کښ بیا تعلیم ورکول نبی صلی الله علیه وسلم ته دَ
ادا بو شپږو په آیت ۲۲، ۲۳، ۲۴ کښ ۔ او ذکر دَ بعث دَ دوی
په غار کښ په آیت ۲۵ کښ ۔ بیا تفریعات څلور دَ دوی په واقعه
باندے او دا آداب هم دی ۔
اوله تفریع او ادب په رد دَ شرک فی العلم او فی الحکم په آیت ۲۶
کښ ۔
دویمه تفریع او ادب تبلیغ دَ کتاب الله په آیت ۲۷ کښ ۔
او دریمه تفریع او ادب اختیارول دَ جماعت دَ موحدینو په آیت
۲۸ کښ ۔
څلورمه تفریع اظهار دَ حق په تخویف اخروی او په بشارت
سره په آیت ۲۹، ۳۰ کښ ۔
بیا اصلاح دَ منکرینو دَ پاره تزهید فی الدنیا په ذکر دَ دریو
خبرو ، اول دا ده چه محبت دَ دنیا سبب دَ انکار دَ بعث او دَ شرک
دے او سبب دَ عذاب دنیوی دے او دا دَ آیت ۳۲ نه تر ۴۴
پورے ۔ دویمه خبره دا ده چه دنیا قلیل او فانی ده نو په دے
باندے مه دهوکه کیږئ په آیت ۴۵، ۴۶ کښ ۔ او دریمه
خبره دا ده چه محبت دَ دنیا سبب دَ عذاب او دَ افسوسونو دے
په آخرت کښ په آیت ۴۷، ۴۸، ۴۹ کښ ۔
تفسیر :- په دے آیت کښ اولا تسلی ده پیغمبر ته او مطلب دا دے
چه دا ګمان مه کوه چه واقعه دَ اصحاب کهفو دَ قدرت دَ الله تعالی
نه څه ډیره عجیبه ده ځکه چه مشرکینو دَ دے په باره کښ ستا نه
تپوس کړیدے بلکه دَ الله تعالی دَ قدرت نخے دَ دے نه لوے
هم شته لکه پیدائش دَ آسمانونو او دَ زمکو او واقعه دَ معراج ۔
او په دیکښ جواب دَ شبهے دَ مشرکینو دے چه هغوی استدلال
کوو په عجیبه حالاتو دَ اصحاب کهفو لکه چه ډیره موده اوده کیدل

اِذْ اَوَی الْفِتْیَةُ اِلَی الْکَهْفِ

| کله چه پناه ئی | واخسته | ځوانانو | غار | ته |
|---|---|---|---|---|

اوبه نونو ته یئ نقصان نه رسیږو دا دلالت کوی په دے خبره چه اصحاب کهف لره دَ الله تعالی دَ طرف نه لوئے قدرت او اختیار ورکړے شوے دے نو جائز دی مونږ لره چه دَ دوی نه خپل حاجات اوغواړو او دوی له بندګی کوو ځکه چه دوی پشان دَ ولی شول دَ الله تعالی دَ پاره دا رنګ اوس هم بعضے تعویذ کر دَ دوی نومونه په کاغذ کښ لیکی دَ پاره دَ تبرک حاصلولو دَ دوی په نومونو سره ؟

نو حاصل دَ جواب دادے چه دا حالات دَ اصحاب کهفو دلیل دَ قدرت دَ الله تعالی دے نه دَ قدرت هغوی ۔

الرَّقِیْمِ، په دے کښ اقوال مختلفه دی : دا دَ وادی نوم دے یا دَ هغه غر نوم دے یا دَ کتاب نوم دے یعنی هغه تختے چه په هغے کښ نومونه دَ هغوی لیکلے شوی دی ۔ لیکن هیڅ یو قول په نقل صحیح مسند سره نه دے ثابت نو معلومه شوه چه دا تاریخی مسئله ده او دَ تاریخ نه دا ثابت ده چه کلے دَ اصحاب کهفو په ملک دَ اردن کښ مشهور دے په رقیم سره او دا سے دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے او هغه دَ کعب نه نقل کړیدے او په روم کښ هغے ته پیترا وائی او کله چه مسلمانانو روم فتح کړو نو هغه یئ مسمی کړو په بتراء سره او په مخکنو کتابونو کښ مسمی وؤ په راقیم سره او دا رنګ دَ تاریخ نه معلومیږی چه دا واقعه په ملک دَ روم کښ وه روسته دَ زمانے دَ عیسی علیه السلام نه ۔

فَقَالُوْا رَبَّنَآ اٰتِنَا مِنْ لَّدُنْكَ

نو دوی اُووئیل اے ربه زموږه راکړے موږ ته دَ خپل طرف نه

رَحْمَةً وَّهَيِّئْ لَنَا مِنْ اَمْرِنَا

لګوالے او اسانه کړے موږ ته زموږ دَے کار نه

رَشَدًا ۝۱۰ فَضَرَبْنَا عَلٰٓى اٰذَانِهِمْ

کامیابی - نو ټپول اوکړه موږ په غوږونو دَ هغوی

فِى الْكَهْفِ سِنِيْنَ عَدَدًا ۝۱۱

په غار کښې یو څو کلونه دَ شمار -

سنا :- په دے آیت کښې عجز دَ اصحاب کهفو ذکر دے په هجرت کولو سره غار ته او بیا دعاء دَ هغوی ذکر ده په طلب دَ رحمت او دَ رُشد سره - او دا په دین دَ نصرانیت کښې ( په یو قول سره ) جائز ده چه رهبانیت اختیار کړی او غار کښې ژوند تیروی -

فائده :- دا دلیل دے په دے خبره چه هجرت کول دَپاره دَ حفاظت دَ دین په وخت دَ خوف دَ فتنو کښې دا سنت دَ اولیاؤ او انبیاؤ دے او دا غار ته تلل دَ دوی دلیل دَ هغه پیرانو دَپاره نه شی کیدے چه بغیر څه دَ یرے دَ فتنے او فساد نه په غارونو کښې چیلے اوباسی او دعوت دَ دین او جماعت دَ صلوٰة سره دَ قدرت او دَ طاقت نه پریږدی -

سلا :- په دے کښې احتیاج دَ اصحاب کهف الله تعالیٰ ته په خوب راوستلو کښې ذکر کړیدے - یعنی هر کله چه دوی دَ دین په دعوت ستړی شوی وؤ نو الله تعالیٰ دوی له آرام ورکړو په خوب سره -

او فَضَرَبْنَا عَلٰٓى اٰذَانِهِمْ فِى الْكَهْفِ سِنِيْنَ عَدَدًا ، اٰذان ، یئے ذکر کړو ځکه چه کمال دَ خوب هله راځی چه غوږونه دَ خبرو اوریدلو نه بند شی او دا رنګ په دے کښې اشاره ده چه دا او ده کول شفقت

ثُمَّ بَعَثْنٰهُمْ لِنَعْلَمَ اَیُّ الْحِزْبَیْنِ

بیا راپیدار کړل مونږ دوی د پاره د دې چه ښکاره کړو مونږ چه کوم یو د دوا پړو ډلو نه

اَحْصٰی لِمَا لَبِثُوْٓا اَمَدًا ﴿۱۲﴾ نَحْنُ

شمار کوی د مُدې مودې چه دوی حصار شوی وُو په غار کښ۔ مونږ

نَقُصُّ عَلَیْكَ نَبَاَهُمْ بِالْحَقِّ ؕ

بیانوؤ په تا باندې خبر د دوی د حق ښکاره کولو د پاره ،

اِنَّهُمْ فِتْیَةٌ اٰمَنُوْا بِرَبِّهِمْ

یقینًا دوی ځوانان وُو ایمان ئې راوړې وُو په رب خپل باندې

د الله تعالیٰ وؤ په دوی باندې لکه څنګه چه مور د شفقت د وجې نه د ۔ بچی غوګونه ټپوی په وخت د اوده کولو کښ۔

۱۲ :۔ په دې کښ ئې ذکر کړې دې احتیاج د اصحاب کهف الله تعالیٰ ته په بیداریدلو کښ د خوب نه ، او په دې وجې په حدیث کښ د خوب د بیدارئ په دُعا کښ دا الفاظ نقل کړې شوی دی۔ (اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ اَحْیَانَا بَعْدَ مَا اَمَاتَنَا) او پدې آیت کښ یو حکمت د بیدارولو د هغوی ذکر کړیدې۔

لِنَعْلَمَ... آه ، مراد د علم نه علم د اظهار دے یعنی لنظهر ځکه نورو نصوصو قطعیو سره ثابته ده چه الله تعالیٰ په هر څه عالم دے۔

اَلْحِزْبَیْنِ ، د دې نه مراد هغه دوه ډلې وې په اصحاب کهف کښ چه روستو د بیدارئ نه یو ډلې وئیلې وؤ لَبِثْنَا یَوْمًا ، او بلې ډلې وئیلی وؤ اَوْ بَعْضَ یَوْمٍ ، او دا قول غوره دے نو حاصل دا دے چه ښکاره شوه دا خبره چه دا دواړه ډلې د خپلې مودې د خوب نه خبر نه وؤ نو معلومه شوه چه غیبدان نه وؤ۔

وَزِدْنٰهُمْ هُدًى ﴿۱۳﴾ وَّرَبَطْنَا

او زیاتی کړې وو موږ هدایت دَ دوی - او کلک کړیوو موږ

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اِذْ قَامُوْا فَقَالُوْا

زړونه دَ هغوی کله چه اودریدل نو اُووئیل دوی

سا۱ :- تیرشوی آیاتونو کښ دَ اصحاب کهف عجز او احتیاج او عدم دَ علم غیب یې ذکر کړو دَ پاره دَ جواب دَ شبهے - او س په دے آیت کښ تفصیل دَ نورو حالاتو دَ هغوی ذکر کوی په پاره دَ دیانت او دعوت دَ هغوی کښ -

بِالْحَقِّ، کښ اشاره ده چه دے واقعه کښ قرآن کریم رشتینی حالات ذکرکړی دی په خلاف دَ یهودیانو چه هغوی پکښ ډیر اسرائیلیات ذکرکړی دی - او دا رنګ اشاره ده دَ حق دَ اظهار دَ پاره (چه هغه اثبات دَ توحید او رد دَ شرک دے) دَ دوی واقعه ذکر کوی -

فِتْيَةٌ، دَ دے معنٰی دا ده چه دَ عمر په لحاظ سره نو عمر ځوانان وو او اولاد وو دَ اشرفو دَ قوم خیل او دَ دوی غاړو ته طوقونه دَ سرو زرو او لاسونو ته کړۍ دَ سرو زرو پرانه وو او په غوږونو کښ یې والۍ وے بنا په عادت دَ هغه قوم سره - او هر کله چه دَ دوی نه پلاران په مسئله دَ توحید ناراض شول نو دَ دوی نه یې دغه کالی واخستل - او تفسیر ابن کثیر کښ ذکر دی چه اکثر اولیاؤ الله نوجوانان خلق وی او زاړه عمر والا اکثر دَ قبول دَ حق نه محروم وی -

وَزِدْنٰهُمْ هُدًى، دلیل دے په دے خبره باندے چه په هدایت او ایمان کښ زیاتے او کمے راځی - او اشاره ده چه دَ دعوت الی الحق دَ پاره زیات ایمان او هدایت ضروری دے -

رَبُّنَا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

رب زمونږ رب دَ آسمانونو او دَ زمکے دے

لَنْ نَّدْعُوَا۟ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلٰـهًا

هیچرے به او نه بلو مونږ سِوا دَ الله تعالیٰ نه بل مددګار

لَّقَدْ قُلْنَآ اِذًا شَطَطًا ﴿۱۴﴾

یقینًا ولیلے به وی مونږ په دغه وخت دَحد نه تیره شوے خبره۔

ﮪﻼ :۔ په دے آیت کښ ذکر شوے دے احتیاج دَ دوی الله تعالیٰ ته په ربط القلب کښ او ربط القلب حال دَ قوت صبر دے چه معلومیږی په وخت دَ سختو مصیبتونو کښ او دا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه یو کرامت وی دَ صالحینو بندګانو دَ پاره لکه سورة قصص ۱۰ کښ۔ او مقابل دَ دے ختم قلب دے چه دَ عنادیانو دَ پاره آخری مقام دے۔

فَقَالُوْا ، بادشاه مشرک وو هغه چه دوی نه خبر شو نو دوی ئے ځان ته حاضر کړل او دَ دوی نه ئے یو څو سوالونه په ترتیب سره اوکړل۔

اول سوال :- ستاسو رب څوک دے ؟

دوی جواب ورکړو رَبُّنَا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ،۔

دویم سوال :- دَ دغه نه سِوا بل څوک دَ بلنے او دامداد کولو حقدار شته دے ؟

دوی جواب اوکړو لَنْ نَّدْعُوَا۟ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلٰـهًا ، په اول کښ توحید دَ ربوبیت دے او په دویم کښ توحید دَ الوهیت دے۔

دریم سوال :- که څوک دَ الله تعالیٰ نه سِوا دَ بل چا نه حاجت غواړی نو دَ دے څه حکم دے ؟

دوی جواب اوکړو لَقَدْ قُلْنَآ اِذًا شَطَطًا ، شطط ، دَ حد نه تجاوز کول ، باطل او دروغ ته هم شطط وائی۔

هٰٓؤُلَآءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوْا مِنْ
دا قوم زمونږ دے نیولی دی دوی سِوا
دُوْنِهٖٓ اٰلِهَةً ؕ لَوْلَا يَاْتُوْنَ
دَ الله تعالیٰ نه نور مددګاران ، ولے نه راوړی
عَلَيْهِمْ بِسُلْطٰنٍۭ بَيِّنٍ ؕ فَمَنْ
پرے باندے دلیل ښکاره ، نو څوک
اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ
لوئے ظالم دے دَ هغه چانه چه جوړوی په الله تعالیٰ باندے
كَذِبًا ⑮ وَاِذِ اعْتَزَلْتُمُوْهُمْ
دروغ ۔ او هر کله چه ډډه اوکړه تاسو دَ دوی نه
وَمَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ فَاْوٗٓا
او دَ هغه چا نه چه دوی یے بندګی کوی سِوا دَ الله تعالیٰ نه نو پناه واخلئ
اِلَى الْكَهْفِ يَنْشُرْ لَكُمْ رَبُّكُمْ
غار ته ډیر پراخه به درکړی تاسو له رب ستاسو

۱۵:۔ دا هم دَ هغوی په بیان کښ داخل دے یعنی څلورم سوال دے چه تاسو دَ خپلو مشرانو نه ولے مخالفت کوئ ؟ دوی جواب اوکړو لَوْلَا يَاْتُوْنَ عَلَيْهِمْ بِسُلْطَانٍۭ بَيِّنٍ، یعنی مشران دے په الوهیت دَ غیرالله دلیل پیش کړی اشاره ده چه په عقیده کښ تقلید دَ مشرانو باطل دے ۔
پینځم سوال ، که دَ مشرانو بے دلیله تابعداری اوکړو نو څه جرم دے ؟
جواب دا دے فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ، یعنی دا ډیر لوئے ظلم دے دَ دینه لوئے ظلم بل څه کیدے شی ۔

مِّنْ رَّحْمَتِهٖ وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِّنْ

دَ رحمت خپل نه او آسانه به کړي تاسو لره دَ

اَمْرِكُمْ مِّرْفَقًا ⑯ وَتَرَى الشَّمْسَ

دے کار ستاسو نه فائدے ډیرے. او وینے ته نمر

اِذَا طَلَعَتْ تَّزٰوَرُ عَنْ كَهْفِهِمْ

کله چه راخیژي نو آوړي دَ غار دَ هغوي نه

ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَاِذَا غَرَبَتْ تَّقْرِضُهُمْ

ښي طرف ته او کله چه ډوبیږي نو پرېږده کوي دَ دوئ نه

ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِيْ فَجْوَةٍ

گس طرف ته او دوي په ارت ځائے کښ دي

ملا:- هر کله چه بادشاه دوي ته مهلت ورکړو نو دوي دَ پلار اتو او دَ خپلو نه جدا شول او پوهه شول چه بادشاه مونږ دَ خپل دین نه اړوي. یا موسنګسارکوی لکه آیت ۲۰ کښ دا ذکر شوے ده نو دَ خپل دین دَ بیچ کولو دَپاره دوي مشوره اوکړه دَ هجرت کولو غار ته.

وَمَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ، ئے ځکه اوئیل چه جدا کیدل دَ قوم نه دَ دنیا په مقصد باندے نه وو بلکه دَ توحید په سبب سره وو. او په دے آیت کښ اشاره ده چه مهاجر دَپاره دَ الله تعالی په رحمت باندے توکل پکار دے، او مراد دَ رحمت نه بیچ ساتل دي دَ قوم نه لکه چه دا سے شوے وو په غار ثور کښ په وخت دَ هجرت دَ نبي صلی الله علیه وسلم.

وَيُهَيِّئْ لَكُمْ مِّنْ اَمْرِكُمْ مِّرْفَقًا، کښ اشاره ده چه روستو دَ تکالیفو نه الله تعالی اسانتیا او آرام راولی.

مِّنْهُ ؕ ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ ؕ مَنْ يَّهْدِ

دَ دے (غار) نه، دا حال دَ دوی دَ دلیلونو دَ قدرت دَ الله تعالیٰ نه دے، هغه څوک چه هدایت

اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ

ورته اوکړی الله تعالیٰ نو هغه هدایت والا دے او هغه څوک چه الله تعالیٰ بے لاره کړی هغه

فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿١٧﴾

نو میچرے به او نه مومے هغه لره دوست لار خودونکے۔

۲۷ ۱۴

ف :- په دے آیت کښ دَ غار حال ذکر شوے دے چه الله تعالیٰ دوی لره په غار کښ دَ غرمو نه څنګه محفوظ اوساتل (یعنی غرمه دَ دوی نه بنی طرف او کس ته اوړیدل)۔

ذٰلِكَ مِنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ، دا دلیل دے چه دا دَ دوی کرامت وو او کرامت دلیل دَ قدرت دَ الله تعالیٰ دے او معلومه شوه چه اصل کرامت حفاظت دَ الله تعالیٰ ولی الله لره وی او معلومه شوه چه کرامت په دعوت دَ حق او په هجرت سره حاصلیږی دا قول دَ دے آیت په تشریح کښ صحیح دے۔ او بعضو مفسرینو وئیلی دی چه دَ غار وضع په داسے طریقه سره وه چه په دوی باندے غرمه نه لګیده یعنی شمال طرف ته دَ هغے دروازه (خله) وه دا صحیح نه ده۔

تَقْرِضُهُمْ، کښ اشاره ده چه دَ غروب په وخت نمر په دوی باندے لږ شان لګیدو څکه چه په لږ نمر لګیدلو سره اصلاح دَ بدن راځی او دا دَ دے وجے نه چه تقرضهم دَ قراضة الذهب نه ماخوذ دے یعنی ټکړے۔

مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ، اشاره ده چه اصحاب کهف ته هدایت اوکړے شو او نور قوم په شرک کښ پاتے وو دا اختیار دَ الله تعالیٰ دے۔ یا په دے واقعے سره چا ته هدایت ملاویږی او چا ته نه ملاویږی دا هم دَ الله تعالیٰ اختیار دے۔

وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا وَّهُمْ رُقُودٌ

او گمان به کوے ته په دوی بانډے بیدار او دوی او ده دی

وَنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِينِ وَذَاتَ الشِّمَالِ

او پیر اړوو موږ دوی لره ښی طرف ته او کس طرف ته

وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ

او سپے دَ دوی خوروونکے دے دوار لیچے خپلے په درشل بانډے ،

لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ

که چرے ته لاسا په وربنکاره شے دوی ته نو او به گرځے دَ دوی نه

فِرَارًا وَّلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ⑱

تیخته کوونکے او ډک به شے دَ دوی نه په رعب سره ۔

۱۸ :۔ په دے آیت کښ دَ اصحاب کهف بل حال ذکر کوی دَ غار دَ اوسیدلو په وخت کښ او په دے کښ هم مقصد حفاظت دَ بدنونو دَ هغوی دے دَ خاورو نه دا رنګ دَ سپی په ذریعه حفاظت دَ خلقو دَ شور وشغب نه چه دَ خوب نه بیدار نشی ۔

وَنُقَلِّبُهُمْ، دا علت دے دَ ایقاظا دَپاره یعنی دوی زر زر بدلیږی لکه دَ بیدار شخص په شان ، دا وجه چه مفسرینو لیکلی ده چه سترګے دَ دوی په وخت دَ خوب کښ پرانستے وے دَ دے قول ضرورت هم نیشته او دلیل هم نشته ۔

وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ ، دا سپے دَ موحدینو خدمتګار وؤ نو الله تعالیٰ په دے سبب دَده مقام اوچت کړو او قرآن کښ ئے ذکر کړو ۔ او په دے کښ اشاره ده چه سپے په داخل دَ کور کښ ساتل نه دی جائز بلکه دَ دروازے سره دِ وی ۔

لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا ، دا هم کرامت دے چه الله تعالیٰ هغوی له داسے رعب ورکړے وؤ چه څوک نزدے نه شو ورتللے ۔

وَكَذٰلِكَ بَعَثْنٰهُمْ لِيَتَسَآءَلُوْا بَيْنَهُمْ ؕ

او دغه شان بیدار کړل موږ دوی د دې د پاره چه تپوسونه اوکړی په کورتی کښ

قَالَ قَآئِلٌ مِّنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ ؕ

اوئیل یو ویونکی د دوی نه څومره حصار شوی یئ تاسو ،

قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا اَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ؕ

دوی اوئیل حصار شوی یو پوره ورځ یا نیمګړے ورځ ،

قَالُوْا رَبُّكُمْ اَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ ؕ

دوی اُوئیل رب ستاسو ښهٔ پوهه دے په هغه موده چه حصار شوی یئ تاسو ،

فَابْعَثُوْٓا اَحَدَكُمْ بِوَرِقِكُمْ هٰذِهٖٓ

نو اولیږئ یو تن ستاسو نه په دے پیسو ستاسو سره

اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَلْيَنْظُرْ اَيُّهَآ اَزْكٰى

ښار ته نو او دے ګوری چه کوم یو د دوی نه پاک (حلال)

طَعَامًا فَلْيَاْتِكُمْ بِرِزْقٍ مِّنْهُ

خوراک والا دے نو راد وړی خوراک د هغه نه

وَلْيَتَلَطَّفْ وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ اَحَدًا ﴿۱۹﴾

او نرمی دِ کوی او نه دِ خبروی په تاسو باندے هیڅ څوک .

سلا:- په دے آیت کښ د اصحاب کهف بیدارول د خوب نه ذکر دی او د هغے حکمت ئے ذکر کړیدے د هغے تفصیل دا دے چه د دوی بیدارولو کښ حکمت دا دے چه دوی په د یو بل نه تپوسونه اوکړی چه موږ څومره وخت تیر کړے دے او فائده په تپوسونو کښ دا ده چه معلومه شی چه دوی د خپل حال نه خبر نه وو نو د دنیا د حال نه څرنګه خبر شی- نو دوی د الله تعالیٰ سره شریک نشی

إِنَّهُمْ إِنْ يَظْهَرُوْا عَلَيْكُمْ

| یقیناً دوی که خبر شی په تاسو پاندې |
|---|

کیدلے۔ نو دے آیت کښں صریح دلیل دے چه اولیاء په غیب باندے نه پوهیږی او په حال دَ خوب دَ ځان نه هم خبر نه وی نو پس دَ مرګ نه دَ دنیا دَحال نه به څه خبر اولری۔

قَالُوْا لَبِثْنَا يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ قَالُوْا رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثْتُمْ، یعنی دوی دَ شمار په باره کښں دوه ډلے شوے یوے ډلے اُوئیل چه یوه ورځ تیره شوے ده او دویمے ډلے اُوئیل چه څه حصّه دَورځے تیره شویده نو دریمے ډلے اُوئیل یا دوی په جمع سره اوئیل چه دَ دے علم موتږ سره نشته الله تعالیٰ ته ئے اوسپارله۔

بِوَرِقِكُمْ، اشاره ده چه دوی ځان سره دَخرچ دَ پاره دَ سپینو زرو روپۍ اخستے وے۔

فَابْعَثُوْا أَحَدَكُمْ، کښں اشاره ده چه په دوی باندے روستو دَ بیدارئ نه لوږه راغله نو دَ خوراک دَ اخستلو دَپاره تدبیرئے اوکړو او یوکس ئے دَ دے دَ پاره مقرر کړو او هغه ته ئے درے آداب اوخودل۔

اول، فَلْيَنْظُرْ أَيُّهَا أَزْكٰى طَعَامًا، یعنی دَ مؤحد شخص نه دے طعام راوړی ځکه دوی ته معلومه ده چه په دغه کلی کښں بعض خلق داسے دی چه دَ هغوی من بوحه او طعام په نوم دَ غیرالله سره دے او هغه حرام دے۔

او دویم ادب، وَلْيَتَلَطَّفْ، چه په اشتراء دَ طعام او په نورو خبرو کښں دَ نرمی کوی چه څوک تر پېنه خبر نه شی۔

او دریم ادب، وَلَا يُشْعِرَنَّ بِكُمْ أَحَدًا، یعنی ښکاره حال دَ هم چا ته نه بیانوی۔

يَرْجُمُوْكُمْ اَوْ يُعِيْدُوْكُمْ فِيْ

سنګسار به کړی تاسو یا به مو واپس اوګرځوی

مِلَّتِهِمْ وَلَنْ تُفْلِحُوْٓا اِذًا اَبَدًا ﴿۲۰﴾

دین خپل ته او هرګز به کامیاب نشئ دغه وخت چرے

وَكَذٰلِكَ اَعْثَرْنَا عَلَيْهِمْ لِيَعْلَمُوْٓا

او دغسے خبر کړل مونږ په دوی باندے خلقو لره دپاره د دوی چه دوی پوهه شی

اَنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاَنَّ السَّاعَةَ

چه وعده د الله تعالیٰ حقه ده او یقیناً قیامت

ن۲:۔ په دے آیت کښ علت د ماقبل دے او په دے کښ اشاره ده چه دوی هجرت هم د دے خوف د وجے نه کړے وو۔ په دے آیتونو کښ اشاره ده چه دوی په غیب باندے علم نه لرلو د دوی خیال دا وو چه اوس هم هغه خلق موجود دی چه د چا نه مونږ هجرت کړے دے۔

او روایت د مفسرینو کښ راغلی دی چه دوی قاصد اولیږلو نو هغه ته هغه خلق او آبادئ نا اشنا ښکاره شوے لیکن مجبوراً په یو دکان باندے داخل شو او د طعام د اخستلو دپاره ئے خپلے (ورق) روپۍ پیش کړے هغه دوکاندار نا اشنا اوګڼړلے چه دا خو اوس په بازار کښ نه لږی۔ ورته ئے اوئیل چه دا د ډیرے مخکښ زمانے روپۍ دے کیدے شی چه تا به خزانه موندلے وی نو خلق د دوی په شور باندے خبر شول او پوهه شول چه دا هغه خلق دی چه تقریباً درے سوه کاله وړاندے د دے ملک نه ئے هجرت کړے وو ځکه چه په هغه خلقو کښ د دوی قصّه مشهوره وه۔

لَا رَيْبَ فِيْهَا ۚ إِذْ يَتَنَازَعُوْنَ

نشته هيڅ شک په هغې کښې، کله چه (د هغه وخت خلقو) جګړه کوله

بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ فَقَالُوا ابْنُوا

يو بل سره په باره د حال د دوی کښې نو دوی اُوئيل جوړ کړئ

عَلَيْهِمْ بُنْيَانًا ۖ رَبُّهُمْ أَعْلَمُ

په دوی باندے يو آبادی، رب د دوی ښه پوهه دے

بِهِمْ ۚ قَالَ الَّذِيْنَ غَلَبُوْا عَلٰى

په دوی باندے، اُوئيل هغه کسانو چه زورآور وُو په

أَمْرِهِمْ لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيْهِمْ مَّسْجِدًا ﴿۲۱﴾

خپل کار کولو باندے خامخا جوړوُو به موږ په دوی باندے سجده ګاه۔

۲۱:- په دے آيت کښې د دوی د حال په ښکاره کولو کښې نور حکمتونه ذکر کوی۔ اول دا چه الله تعالیٰ وعده د نصرت او امداد خپلو صالحينو سره پوره کوی لکه چه د اصحاب کهف حفاظت يے اوکړو۔

وَكَذٰلِكَ، يعنی لکه چه په دوی باندے يے خوب راوستلے وُو او بيا يے په غار کښې د دوی حفاظت اوکړو او بيا يے د خوب نه بيدار کړل نو دا رنګ خلق يے ترينه خبر کړل۔

دوېم دا چه د هغه وخت خلق په باره د دوباره ژوند کښې مختلف وُو نو واقعه د دوی دليل شو په اثبات د بعث بعد الموت باندے او ديکښې اشاره ده چه الله تعالیٰ هميشه د صالحينو مقصد ونه پوره کوی بلکه کله د هغې خلاف کار کوی د خپل حکمت موافق لکه چه اصحاب کهف غوختله چه زموږ حال د ډيټ شي ليکن الله تعالیٰ ښکاره کړو د پاره د حکمتونو۔

وَكَذٰلِكَ، کښې اشاره ده چه مخکښې کارونه الله تعالیٰ کړی وُو نو دا خبرول د خلقو هم الله تعالیٰ اوکړل۔

سَيَقُوْلُوْنَ ثَلٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ ۚ

څوک وائي دوی درے دی څلورم دَ دوی نه سپے دَ دوی دے

وَعْدَ اللّٰهِ، نه مراد بعث بعد الموت دے دَ بدنونو دَ ارواحو نه۔
اِذْ يَتَنَازَعُوْنَ بَيْنَهُمْ اَمْرَهُمْ، مراد دَ اَمْرَهُمْ، نه مسئله دَ حشر ده چه دَ دغه وخت خلقو په هغې کښ تنازع او اختلاف کوو بعضو دَ بعث نه انکار کوو او بعضو بعث دَ ارواحو منلو او دَ بدنونو ئې نه منلو او بعضو صحيح بعث منلو۔
او دويمه معنىٰ دا ده چه ضمير دَ امرهم، اصحاب کهف ته راجع دے او دا روستو دَ مرګ دَ اصحاب کهف نه وو يعنى دَ هغه وخت خلقو اختلاف اوکړو په باره دَ اصحاب کهفو کښ مجوسيانو وئيل چه دا زمونږ دَ مذهب خلق وو او نصاراؤ وئيل چه دوی زمونږ په مذهب وو نو مجوسيانو وئيل چه دَ دوی نه دِ چاپيره يو ديوال اوهلے شي او نصاراؤ وئيل چه دَ دوی په خوا کښ دِ يو عبادتګاه جوړه کړے شي۔
اَلَّذِيْنَ غَلَبُوْا عَلٰٓى اَمْرِهِمْ، دَ دے نه مراد دغه نصارىٰ دی ځکه چه حکومت دَ دوی وو او دوی پرے مسجد جوړ کړو۔
فائده:- مبتدعينو دَ دينه استدلال کړيدے چه په قبرونو دَ نيکانو خلقو باندے مسجد جوړول جائز دی ليکن دا استدلال ئې باطل دے۔
اوله وجه دا ده چه دا نصارىٰ وو او په دے آيت کښ الله تعالىٰ دَ هغوی مدحه نه ده کړے بلکه صرف دَ هغوی غلبه او زور ئې ذکر کړيدے۔
او دويمه وجه دا ده چه احاديث صحيحه صريح دلالت کوی چه په قبرونو دَ انبياؤ او دَ صالحينو چه څوک مساجد جوړوی نو رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغوی باندے دَ خپل طرف نه هم لعنت ذکر کړيدے او دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه ئې هم لعنت او غضب ذکر کړيدے۔ او تفسير ابن کثير او تفسير قرطبى او تفسير روح المعانى

وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ

او څوک وائي دوي پنځه دي شپږم د دوي ته سپے د دوي دے

رَجْمًا بِالْغَيْبِ ۚ وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ

دا په اټکل بے دلیله خبرے دي او څوک وائي دوي اووه دي

وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ ۚ قُل رَّبِّي

او اتم د دوي ته سپے د دوي دے ، ته اووایه رب زما

أَعْلَمُ بِعِدَّتِهِم مَّا يَعْلَمُهُمْ

ښه پوهه دے په شمار د دوي باندے نه پوهیږي په شمار باندے

إِلَّا قَلِيلٌ ۗ فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ

مګر لږ کسان نو بحث مه کوه د دوي په باره کښ

إِلَّا مِرَاءً ظَاهِرًا وَلَا تَسْتَفْتِ

مګر بحث کول سرسري او مه کوه تپوس

فِيهِم مِّنْهُمْ أَحَدًا ﴿٢٢﴾ وَلَا تَقُولَنَّ

د دوي په باره کښ د دے خلقو د هیڅ یو تن نه . او مه وایه د یو کار

ع ۳ ۵ ۱۵

په دے مقام کښ تفصیلي رد کړے دے .

۲۲ :- په دے آیت کښ اولاً زجر دے هغه کسانو ته چه مختلف اقوال کوي په شماره د اصحاب کهفو کښ بغیر د دلیل نه .

وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ ، دا جمله ئے جدا راوړیده د دے وجے نه چه دا عدد صحیح دے ، رَجْمًا بِالْغَيْبِ نه دے .

او بله وجه دا ده چه مَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيلٌ ، ئے فرمائیلي دي او روایت د عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دے چه هغه هم عدد سبعه ذکر کړے وُو او وئیلي ئے وُو چه زه هم د هغه قلیل نه یم چه د دوي په عدد باندے خبر وُو .

لِشَایۡءٍ اِنِّیۡ فَاعِلٌ ذٰلِکَ غَدًا ﴿۲۳﴾

| په باره کښ چه زهٔ به کوونکے یم دا کار صبا - |
|---|

وَ ثَامِنُهُمۡ، دے واو ته واو ثمانیه وائی چه په عدد کښ د اووؤ نه وروسته ذکر کیږی او دا د بعضے نحویانو مسلک دے او بله وجه دا ده چه دا واو د دے تنبیه د پاره دے چه دا عدد حق دے او د مختلفو اعدادو نه خلاف دے۔

قُلۡ رَّبِّیۡۤ اَعۡلَمُ بِعِدَّتِهِمۡ مَّا یَعۡلَمُهُمۡ اِلَّا قَلِیۡلٌ، په دے کښ اشاره ده احسن طریقے ته په داسے مقام کښ هغه دا ده چه الله تعالیٰ ته علم او سپارلے شی څکه د داسے مقام په تفصیل کښ ضرورت نشته کوم چه په صحیح دلیل سره معلوم وی نو د هغے وئیل پکار دی۔

فَلَا تُمَارِ فِیۡهِمۡ اِلَّا مِرَآءً ظَاهِرًا، په دیکښ بیان د ادب اول دے او مراد د مِرَآءً نه بحث کول دی او مراد د ظاهراً نه هغه بحث دے چه قرآن پاک کښ ذکر شو یا په صحیح حدیث سره ثابت وی۔

وَّ لَا تَسۡتَفۡتِ فِیۡهِمۡ مِّنۡهُمۡ اَحَدًا، دا ذکر د دویم ادب دے او دا دلیل دے په دے خبره چه مسلمانانو لره نه دی جائز چه د اهل کتابو نه په باره د علم دین کښ استفاده کوی هاں په قصصو د اهل کتابو کښ چه عبرت وی او قرآن او سنت نه خلاف نه وی نو د هغے ذکر په سبب د حدیث (وَحَدِّثُوۡا عَنۡ بَنِیۡۤ اِسۡرَآئِیۡلَ وَلَا حَرَجَ) سره جائز دی۔

۲۳، ۲۴:- په دے آیتونو کښ درے آداب یې ذکر کړی دی۔ اول ادب انشاء الله وئیل دی د هر خبر مستقبل سره۔

اِلَّاۤ اَنۡ یَّشَآءَ اللّٰهُ، دا یې چه آیت کښ ذکر کړو په دیکښ اشاره ده چه بغیر د انشاء الله نه اخبار د مستقبل منع دے او دا دلیل دے په دے خبره چه نبی علیه السلام عالم الغیب نه دے۔

وَاذۡکُرۡ رَّبَّکَ اِذَا نَسِیۡتَ، دا بیان د دویم ادب دے د دے جملے مفسرینو څلور معنے ذکر کړی دی۔

اوله معنیٰ دا ده، یادکړه رب لره په انشاء الله تعالیٰ وئیلو سره

إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ۚ وَٱذْكُر رَّبَّكَ

| مګر (چه ذکر کړے) مشیت دَ الله تعالیٰ او یاد وه رب خپل |
|---|

إِذَا نَسِيتَ وَقُلْ عَسَىٰٓ أَن يَهْدِيَنِ

| هر کله چه ته هېر کړے او وايه نزدے ده چه اوبه ښائي ما ته |
|---|

رَبِّى لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا ﴿٢٤﴾

| رب زما ډیر نزدے دَ دېنه دَ هدایت په اعتبار سره ۔ |
|---|

کله چه ستا نه دا ذکر هیر شوی وی او بیا درته یاد شی ۔ دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه په داسے وخت کښ که بوتن نه انشاء الله هیر شی او بیا کال پس ورته یاد شی تو او دِ وائی ابن جریر وائی چه دَ دے مطلب دا دے چه سنت دَ انشاء الله په ادا شی اګرچه په دے سره تعلیق او دَ اول کلام لغو کول نه کیږی۔

دویمه معنیٰ دا ده یاد کړه رب خپل په استغفار او تسبیح کولو سره کله چه ستا نه انشاء الله وئیل هیر شوی وی او بیا درته یاد شی ۔

دریمه معنیٰ دا ده ریاد کړه عذاب دَ رب خپل کله چه پریږدے څه حکم دَ رب خپل په قصد سره )۔

څلورمه معنیٰ دا ده دعا غواړه دَ رب خپل نه کله چه هیر شی ستا نه څه شے چه یا الله ما ته ئے یاد کړے دا بل ادب دے ۔

وَقُلْ عَسَىٰٓ أَن يَهْدِيَنِ رَبِّى لِأَقْرَبَ مِنْ هَٰذَا رَشَدًا، مفسرینو دَ دے جملے درے معنے لیکلے دی۔

اوله معنیٰ دا ده چه اُوایه امید دے چه اوبه ښائی ما ته رب زما زیات ښکاره دَ خبر دَ اصحاب نه په هدایت کولو کښ خلقو ته۔

دویمه معنیٰ دا ده امید دے چه اوبه ښائی ما ته رب زما جواب دَ سوال ستاسو نزدے دَ هغے وخت نه چه ما تاسو ته خود نه کړے ده ۔

دریمه معنیٰ چه کله ستا نه څه شے هیر شی نو دَ رب نه دعا وغواړه

وَلَبِثُوْا فِیْ كَهْفِهِمْ ثَلٰثَ مِائَةٍ

او حصار شوی وو په غار خپل کښې دری سوه کاله

سِنِیْنَ وَازْدَادُوْا تِسْعًا ﴿۲۵﴾ قُلِ اللّٰهُ

او زیاتی وو نهه (د سپوږمۍ په حساب). ته اووایه الله تعالیٰ

د هغې په باره کښې او هر کله چه یاد نکړې نو اووایه چه امید دے چه اوبه ښائی ما ته رب زیات نزدے او غوره د دے هیر شوی شی نه په خبر او فائده کښې او بعضے علماؤ وئیلی دی چه دا ذکر تعبدی دے په وخت د هیریدلو د انشاء الله کښې. په دواړو جملو کښې اولے معانے غوره دی چه د واقعے د انشاء الله وئیلو سره تعلق لری.

۲۵:- د دے په باره کښې دوه قوله دی. اول قول دا دے چه دا اخبار دے د الله تعالیٰ د طرف نه د مقدار د هغې مودے چه دوی اوده وو په غار کښې تر بیداریدلو پورے.

دویم قول دا دے چه دا حکایت د قول د اهل کتابو دے چه هغوی داسے وئیلی دی او بیا په دے قول دا معطوف دے په یقولون چه په ۲۲ کښې ذکر دے نو دا د خلقو قول دے. لیکن اول قول غوره دے ځکه چه د اهل کتابو په کتابو کښې دا جمله نشته چه وَازْدَادُوْا تِسْعًا، او دا رنګ په دے معطوف معطوف علیه کښې ډیره فاصله په کلام غیر متعلق سره ده او دا قول اول ابن کثیر او ابن جریر غوره کړیدے.

ثَلٰثَ مِائَةٍ سِنِیْنَ، لفظ د سنین بدل دے یا عطف بیان دے د ثَلٰثَ مِائَةٍ د پاره او تمیز نه دے ځکه چه تمیز د مائة مفرد او مجرور راځی. دویم قول دا دے چه ثلث مِائة چه او وئیلے شو نو سوال اوشو چه د ثلث مِائة نه څه مراد دے نو او وئیلے شو چه سنین یعنی اعنی یکښې پټ دے.

وَازْدَادُوْا تِسْعًا، دا لفظ جدا د دے وجے نه راوړو چه ثلث مِائة په اعتبار د حساب شمسیه دے او تسع زیات دی په حساب

أَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا ۚ لَهُ غَيْبُ

ښهٔ پوهه دے په هغه موده چه دوی پکښ حصار شوی وو خاص الله تعالیٰ لره علم پټو

السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ أَبْصِرْ بِهِ

دَ آسمانونو او دَ زمکے دے ښهٔ لیدونکے

وَأَسْمِعْ ۚ مَا لَهُمْ مِنْ دُونِهِ

او ښه اوریدونکے دے، نشته دوی لره سوا دَ الله تعالیٰ نه

مِنْ وَلِيٍّ وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ

څوک مددګار او نه برخه ورکوی الله تعالیٰ په خپل اختیار اتوکښ

أَحَدًا ﴿٢٦﴾ وَاتْلُ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ

هیچا لره - او لوله هغه چه وحی کړے شویده تا ته

قمریه سره ځکه دَ حسابِ شمسی حساب په سلو کالوکښ دَ قمر حساب درے کاله زیاتیږی نو درنے سوه کاله شمسی حساب کښ نهه کاله قمری زیاتیږی او دواړه حسابونه ئے دَ دے وجے نه ذکر کړه چه اول حساب دَ کتابیانو دے او دویم دامیین عرب دے نو دَ دواړو لحاظ اوکړے شو.

سے۲۶:- په دے آیت کښ اول تفریع ده په واقعه دَ اصحاب کهف باندے او په دے آیت کښ پنځه جملے دَ توحید دی.

بِمَا لَبِثُوا، دَ دیته مراد هغه لبث دے چه روستو دَ بیداریدلو دَ اصحاب کهف نه تر مرګ دَ هغوی پورے دے نو دا اعتراض نشی کیدے چه اول خو الله تعالیٰ عدد دَ لبث ذکر کړو نو بیا دا قول (قل الله اعلم) دَ هغے دَ رد دَ پاره په څه وجے سره ذکر کوی.

أَبْصِرْ بِهِ وَأَسْمِعْ، اوله معنیٰ دا ده چه بِهٖ ضمیر وحی ته راجع دے یعنی پوهه شه په وحی دَ الله تعالیٰ بیا واوروه نورو خلقو ته. دویمه معنیٰ دا ده چه دا صیغے دَ تعجب دی یعنی الله تعالیٰ ښهٔ اوریدونکے او ښه لیدونکے دے.

مِنۡ كِتَابِ رَبِّكَ لَا مُبَدِّلَ

دَ كتاب دَ رب ستا نه نشته بدلوونكے

لِكَلِمٰتِهٖ وَلَنۡ تَجِدَ مِنۡ دُوۡنِهٖ

دَ كلماتو دَ هغه او هرگز به او نه مومے سوا دَ الله تعالىٰ نه

مُلۡتَحَدًا ﴿٢٧﴾ وَاصۡبِرۡ نَفۡسَكَ

ځائے دَ پناه ئى. او ټينگ كړه ځان خپل

مَعَ الَّذِيۡنَ يَدۡعُوۡنَ رَبَّهُمۡ

دَ هغه كسانو سره چه حاجتونه پيش كوى رب خپل ته

وَلَا يُشۡرِكُ فِىۡ حُكۡمِهٖۤ اَحَدًا ، حُكۡمِهٖ نه مراد حكم تكوينى (انتظام چلول دَ عالم) او حكم تشريعى دواړه دى او په دے جمله كښ رد دے په شرك عطائى باندے يعنى څوك چه دا وائى چه الله تعالىٰ فلان بزرگ له په خپل اختيار او تصرف كښ برخه وركړيده لكه عام مشركان داسے وائى نو په دے آيت كښ رد دے په هغوى باندے او داسے په سورة زخرف ۴۵ كښ هم ذكر دى۔

۲۷:- په دے آيت كښ دويمه تفريع ده او بل ادب دے يعنى تيزى وركول په تبليغ دَ قرآن باندے۔

لِكَلِمٰتِهٖ ، دَ دينه مراد ټول قرآن دے او دا رنگ اشاره ده هغه كلماتو ته چه تير شوى آيت كښ ذكر شويدى او داسے په سورة انعام ۱۱۵ كښ دى۔

وَلَنۡ تَجِدَ مِنۡ دُوۡنِهٖ مُلۡتَحَدًا ، پدے كښ رد دے په شرك فى التصرف باندے او پدے كښ تخويف دے هغه چا ته چه قرآن كريم پريږدى نو هغه دَ عذاب الٰهى نه نشى بچ كيدے۔

بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهٗ

صباڼۍ او بیګاڼۍ غواړي دوی مخ دَ هغه

وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ عَنْهُمْ ۚ تُرِيْدُ

او واړه نوړي سترګې ستا دَ دوی نه چه غواړې ته

زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَلَا تُطِعْ

ډول دَ ژوند دنیوي او خبره مه منه

مَنْ اَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا

دَ هغه چاچه غافل کړي دے موږ زړه دَ هغه دَ ذکر زموږ نه

وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ وَكَانَ اَمْرُهٗ فُرُطًا ﴿٢٨﴾

او روان دے په خواهش خپل پسے او دے کار دَ هغه دَحد نه تیریدل۔

الثلثة

س ۲۸:۔ په دے کښې دریمه تفریع او ادب دے لکه څنګه چه اصحاب کهف دَمالدارو دنیا پرستو نه جدا شول نو دارنګ هر موحد له ضروري دي چه دَموحدینو سره ملګرتیا وکړي اګرچه فقراء وي۔

لفظ دَ وَاصْبِرْ، کښې اشاره ده چه دَ دوی په ملګرتیا کښې به مصائب راځي لیکن صبر کول لازم دي۔

مَعَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ، ذکر دَ دعا دے مراد ترینه ذکر دَ الله تعالی دے په توحید سره۔ او دعا اصل العبادات دے نو داخل دي په دے کښې ټول عبادات په طریقه دَ توحید سره۔

بِالْغَدٰوةِ وَالْعَشِيِّ، مراد هر وخت دے لیکن دَ دے وختونو ئے دَ ډیر فضیلت دَ وجے نه تخصیص کړے دے۔

وَجْهَهٗ، په اعتبار دَ معنی سره محکم دے او په اعتبار دَ کیف سره متشابه دے۔

وَلَا تَعْدُ عَيْنٰكَ، په دے کښې منع ده دَ پریښودلو دَ ملګرتیا

وَقُلِ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكُمْ قف

او اووایه حق چه ستا د رب د طرف نه دے

فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّمَنْ شَآءَ

نو څوک چه غواړی نو ایمان دِ راوړی او څوک چه غواړی

فَلْيَكْفُرْ ۚ إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلظّٰلِمِيْنَ

نو کفر دِ کوی یقیناً تیار کړیدے مونږ ظالمانو د پاره

نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا ط

اور او راګیر به کړی دوی لره دیوالونه د هغې،

وَإِنْ يَّسْتَغِيْثُوْا يُغَاثُوْا بِمَآءٍ

او که دوی د اوبو فریاد کوی نو فریاد به یې قبول شی په داسے اوبو سره

كَالْمُهْلِ يَشْوِى الْوُجُوْهَ ط

چه پشان د ویلے کړے شوے تانبے به وی چه روتوی به مخونه د دوی،

د مؤحدینو نه د وجے د طلب د دنیا نه په دے کښ عیناً لاک فاعل د تعد دے۔

تُرِيْدُ زِيْنَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، یعنی منع کرځول د مؤحدینو نه د دنیا پرستئ په وجه سره ناجائز دی او که د یل ضرورت شرعی یا عادتی په وجه سره وی نو جائز دے۔

وَلَا تُطِعْ، کښ نصریح ده په اعراض کولو سره د هغه چانه چه دا درے صفات وی په هغه کښ۔

اول صفت أَغْفَلْنَا قَلْبَهٗ عَنْ ذِكْرِنَا، مراد تربینه ختم قلب دے په شرک باندے۔

دویم صفت وَاتَّبَعَ هَوٰىهُ، مراد تربینه شرک او بدعت دے۔

دریم صفت وَكَانَ أَمْرُهٗ فُرُطًا، یعنی د هغه په طریقه کا افراط سره دے یعنی تعدی کوی د حدود شرعیو نه په عقیده او په عمل کښ۔

بِئْسَ الشَّرَابُ ؕ وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا ﴿۲۹﴾

ناکاره خښتکل دی ، او بد دے ځائے د فائدے اخستلو۔

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

یقیناً هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی د سنت برابر

اِنَّا لَا نُضِيْعُ اَجْرَ مَنْ اَحْسَنَ عَمَلًا ﴿۳۰﴾

یقیناً مونږ نه بربادو ثواب د هغه چاچه خائسته عمل ئے کړے وی۔

س۲۹ :۔ په دے کښ څلورمه تفریع ده او ادب دے لکه څنګه چه اصحاب کهف حق بیان کړیدے۔ دا رنګ حق بیانول لازم دی سره د تخویف او بشارت نه۔

اَلْحَقُّ ، خبر د مبتدا محذوف دے یعنی دا بیان چه مخکښ ذکر شو حق دے یا الحق مبتداء دے او من ربکم خبر دے او په دے کښ تعریف د حق دے۔

فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ ، دا دلیل دے چه انسان د پاره اراده او اختیار من وجه ورکړے شویدے رد دے په جبریه باندے۔

اِنَّآ اَعْتَدْنَا ، دلیل دے چه دا مخکښ قول چه (فلیکفر) دے په طریقه د زورنے سره دے۔

سُرَادِقُهَا ، حدیث ترمذی کښ وارد دی چه سرادق څلور دیوالونه دی د جهنم غټ والے د هر دیوال په مزل د څلویښتو کالو دے۔

کَالْمُهْلِ ، ویخ د تیلو نه وټلے کیږی یعنی خیرے د تیلو۔

دویمه معنی ویلے کړے شوے تانبه او اوسپنه۔ دریمه معنی توؤله زوے د زخمونو د جهنمیانو۔ نور بد حالات د هغه اور په سورة محمد س۱۵ او سورة ابراهیم س۱۶ کښ ذکر دی۔

س۳۰ :۔ په دے آیت کښ بشارت دے ایمان والو ته۔ اَحْسَنَ عَمَلًا ، په دے آیت کښ د دے تفسیر ته اشاره ده چه ایمان او عمل صالح دے څکه چه د هُمْ ضمیر په ځائے من احسن عملا راوړیدے۔ او احسن عملا د دے سورت په س۷ آیت کښ ذکر دے۔

أُولَٰٓئِكَ لَهُمْ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِى

دغه کسان دوی لره جنتونه دَ همیشه اوسیدلو دی چه بهیږی په

مِن تَحْتِهِمُ ٱلْأَنْهَٰرُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا

لاندے دَ دوی نه ویالے اچولے کیږی په دوی ته په هغے کښ

مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ

بنګړی دَ سرو زرو نه او اغوندی به

ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ

جامے شنے دَ نرو ریښمو نه

وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى

او غټو ریښمو نه تکیه په ئے وهلی وی په هغے کښ په

ٱلْأَرَآئِكِ ۚ نِعْمَ ٱلثَّوَابُ ۚ وَحَسُنَتْ

پالنګونو باندے ، ښه بدله ده ، او ښائسته

مُرْتَفَقًا ﴿٣١﴾ وَٱضْرِبْ لَهُم مَّثَلًا

دَ فائدو ځائے دے. او بیان کړه دوی ته مثال

۳۱:- په دے آیت کښ بشارت دے تفصیلی ځکه چه په دے کښ لس انعامات خاصه ذکر دی او په دے بشارت کښ نعمتونه دَ مالدارئ ذکر کړه دا په بدله دَ اختیار کولو دَ ملګرتیا دَ فقراؤ کښ.

الْأَرَآئِكِ، جمع دَ اریکه ده هغه پالنګ چه ناوے په هغے باندے آرام کوی.

مُتَّكِـِٔينَ، تکیه شا او ډډه لګولو ته ویلے شی او دارنګ تربع (پلتۍ وهلو) ته هم ویلے شی.

نِعْمَ الثَّوَابُ، په مقابله دَ بئس الشراب کښ دے.

وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا، په مقابله دَ ساءت مرتفقًا دے.

رَّجُلَيْنِ جَعَلْنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيْنِ

دَ دوؤ سړو چه ورکړے وؤ موږ یو تن دَ دوی نه دوه باغونه

مِنْ أَعْنَابٍ وَّحَفَفْنٰهُمَا بِنَخْلٍ

دَ انګورو نه او چاپیره کړے وؤ دَ هغے دواړو نه موږه کجورے

وَّجَعَلْنَا بَيْنَهُمَا زَرْعًا ﴿٣٢﴾ كِلْتَا

او پیدا کړے وؤ موږ دَ هغے په مینځ کښ فصل۔ دواړو

الْجَنَّتَيْنِ اٰتَتْ أُكُلَهَا وَلَمْ تَظْلِمْ

باغونو ورکولے میوے خپلے او نه ئے کمولو

مِّنْهُ شَيْئًا وَّفَجَّرْنَا خِلٰلَهُمَا

دَ هغے نه څه شے او بهبولے وے موږ په مینځ دَ هغے دواړو کښ

۳۲۔ دَ دے آیت نه حال دَ مالدار مشرک ذکر شوے دے اشاره ده چه جنت په مالدارئ سره نه حاصلیږی او دا رنګ دا متعلق دے دَ واصبر نفسك آه، سره یعنی دَ مالدارئ لحاظ مه کوئ ځکه چه هغه سبب دَ کفر او دَ عذاب دے۔ او دَ دے ځائے نه تزهید فی الدنیا ذکر دے په دریو طریقو سره۔

اوله طریقه دا ده چه محبت دَ دنیا سبب دَ شرک او دَ انکار دَ بعث بعد الموت دے او سبب دَ عذاب دنیوی دے او دَ دے دَ پاره دا واقعه ذکر کړے شوے ده۔

رَجُلَيْنِ، غوره قول دا دے چه دا په طریقه دَ مثال سره دے تعیین دَ دے رجلینو دَ مثال دَ پاره ضروری نه دے۔ او بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا قصه دَ ملک شام دَ شهر رمل ده او نومونه دَ دے سړو یهوذا او فطروس وؤ۔

نَهَرًا ﴿٣٣﴾ وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ فَقَالَ

نهر - او وے ده لره نورے امدنئ نو اوئیل

لِصَاحِبِهِ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَنَا أَكْثَرُ

ملګری خپل ته او د هغه سره یې خبرے اړولے چه زهٔ زیات

مِنْكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا ﴿٣٤﴾

ستا نه مالدار یم او زورآور یم په ډله کښ -

وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ

او ورننوتلو یو باغ ته او حال داچه هغه ظلم کوونکے وؤ

لِنَفْسِهِ قَالَ مَا أَظُنُّ أَنْ تَبِيدَ

په خپل ځان باندے نو اوئیل نه کوم ګمان چه دا به چرته

٣٣، ٣٤، ٣٥، ٣٦:- په دے آیاتو کښ ذکر د حالاتو د مالدار سړی دے چه مشرک او منکر د بعث وو.

وَلَمْ تَظْلِمْ، ظلم په لغت کښ نقصان ته وئیلے شی دلته دا معنیٰ مراد ده.

وَكَانَ لَهُ ثَمَرٌ، نه مراد نور مالونه دی چه سبب د ډیرے امدنئ دے امام بخاری وئیلی دی چه سره زر او سپین زر یا نور قسما قسم میوے او امدنئ وے.

أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا، په دیکښ تکبر کول ذکر دی په مالدارئ باندے او په خپل جماعت باندے. نفرًا نه مراد ملګری د مجلس او خادمان او اولاد دی.

وَهُوَ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ، دا دلیل دے چه هغه مشرک وؤ. لِنَفْسِهِ کښ لام د پاره دلزوم دے.

مَا أَظُنُّ أَنْ تَبِيدَ هَٰذِهِ أَبَدًا، په دیکښ ذکر د انکار دے د فنا د دنیا نه او دا ډیره بے عقلی ده.

وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً، کښ اشاره ده چه دے منکر دے د

هٰذِهٖٓ اَبَدًا ﴿۳۵﴾ وَّمَآ اَظُنُّ السَّاعَةَ

هلاک شي. او گمان نه کوم په قیامت باندے

قَآئِمَةً ۙ وَّلَئِنْ رُّدِدْتُّ اِلٰى رَبِّيْ

قائمیدونکے او که (بالفرض) اوگرځولے شم رب ته (په قیامت کښ)

لَاَجِدَنَّ خَيْرًا مِّنْهَا مُنْقَلَبًا ﴿۳۶﴾

نو او به مومم غوره د دینه ځائے د ورتللو.

قَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ وَهُوَ يُحَاوِرُهٗٓ

اُوئیل ده ته ملګری د ده او حال دا چه ده ورله جواب ورکوو

اَكَفَرْتَ بِالَّذِيْ خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ

آیا ته کفر (شرک) کوے د هغه ذات سره چه پیدا کړے یئے ته د خاورو نه

ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوّٰىكَ

بیا د نطفے نه بیا یئے برابر کړے ته

رَجُلًا ﴿۳۷﴾ لٰكِنَّا۟ هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ

سړے. لیکن زهٔ (روایم) چه الله تعالیٰ زما رب دے

بعث بعد الموت ته.

وَلَئِنْ رُّدِدْتُّ اِلٰى رَبِّيْ، پدے کښ خپل کرامت او عزت ثابتوی چه د دنیا ډیروالے سبب د کرامت دے نو دا رنګ عزت به په قیامت کښ راکوی د دے ذکر سورۃ مریم ۷۷ آیت او سورۃ حم سجده ۵۰ آیت کښ هم دے.

۳۷، ۳۸:- په دے آیتونو کښ کلام د مؤحد دے او اول زجر دے هغه مشرک ته په شرک د هغه باندے په دلیل عقلی سره چه اول پیدائش د انسان دے او دا دلیل په ډیرو سورتونو کښ ذکر دے.

وَلَآ اُشْرِكُ بِرَبِّيٓ اَحَدًا ﴿۳۸﴾

او نه شریکوم د رب سره هیڅوک -

وَلَوْلَآ اِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ

او ولے چه کله داخل شوے باغ خپل ته

قُلْتَ مَا شَآءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ

او دے نه وئیل (چه هغه کیږي) چه الله تعالیٰ اوغواړي او نشته قوت

اِلَّا بِاللّٰهِ اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ

مگر په امداد د الله تعالیٰ سره دے که ته وینے ما لره کم

يُحَاوِرُهٗ، کښ اشاره ده چه مباحثه او مناظره د پاره د اظهار حق ضروري ده - او دا رنگ جواب ورکول باطل پرست ته ضروري دي -

صَاحِبُهٗ، د دے وجے نه ئے ورته صاحبه اُوئیلو چه د هغه سره هم مجلس وو د پاره د دعوت کولو یا صاحب په معنیٰ د ناصح دے یا د هغه د خاندان او د قوم نه وو -

او دویم آیت کښ اظهار د عقیدے د توحید دے -

لٰكِنَّا هُوَ اللّٰهُ، تقدیر د کلام دا دے لکن انا لا اقول بمقالتك بل اقول هو الله -
په اوله کلمه کښ توحید دے - او په دویمه کلمه کښ رد د شرک دے -

او لفظ اَحَدًا، مستعملیږي د پاره د روح او عقل والو نه د پاره د بتانو، نو بتان په هغے کښ تبعًا داخل دي -

لٰكِنَّا، په اصل کښ لکن انا دے نو الف د مینځ نه او غورځولے شو او نون په نون کښ مدغم شو (بخاري کتاب التفسیر) -

مِنْكَ مَالًا وَّوَلَدًا ﴿٣٩﴾ فَعَسٰى
ستا نه په مال او په اولاد کښ ـ نو امید دے
رَبِّيْٓ اَنْ يُّؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّنْ جَنَّتِكَ
چه رب زما په ما کړی ما ته غوره د باغ ستا نه
وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَآءِ
او را اوبه لیږی ستا په باغونو باندے عذاب د بره طرف نه
فَتُصْبِحَ صَعِيْدًا زَلَقًا ﴿٤٠﴾ اَوْ يُصْبِحَ
نو شي به میدان خویه او یا به شي
مَآؤُهَا غَوْرًا فَلَنْ تَسْتَطِيْعَ
او به د هغے اوچے (په زمکه کښ) نو هرگز به طاقت او نه لرے

۳۹، ۴۰، ۴۱: په دے کښ اولګ تعلیم د مؤمن دے کافر ته د کلماتو د توحید په وخت د داخلیدلو د باغ کښ او د هر نعمت په وخت کښ. او رد دے په هغه باندے د هغه کلماتو چه هغه وئیلی وو په وخت د داخلے د باغ کښ.

مَا شَآءَ اللّٰهُ لَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ، د دے معنیٰ دا ده چه هغه څه چه الله تعالیٰ اوغواړی نو هغه کیږی که مالدار وی او که فقیر وی. او څه مال وغیره چه راجع کړے شوے دے نو دا په قدرت او په قوت د الله تعالیٰ سره دے. او دا کلمات د هر نعمت په وخت کښ لوستل پکار دی دا قول د بعضے سلفو نه نقل دے او هغه حدیث مرفوع چه په دے باب کښ مسند د ابویعلیٰ نه نقل دے نو د هغے سند کښ ضعیف راوی دے چه هغه عیسیٰ بن عون دے.

او د اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنْكَ مَالًا وَّوَلَدًا، جزاء محذوف ده یعنی (لا یضرنی ذلک) ما ته دا هیڅ نقصان نشی راکولے.

حُسْبَانًا، هغه کانړے یا عذاب دے چه د اسمان نه نازل شی او واحد د دے حسبانة دے او حسبان حساب ته هم وائی

لَهٗ طَلَبًا ﴿۴۱﴾ وَ اُحِيْطَ بِثَمَرِهٖ

دَ هغې دَ راښکاره کولو - او راګیر کړے شو مالونه دَ هغه (په عذاب کښې)

فَاَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلٰى مَآ

نو شروع شو چه مخل ئې ورغوی خپل په هغه خرچه پیسے

اَنْفَقَ فِيْهَا وَ هِيَ خَاوِيَةٌ

چه کړې وه په هغې کښې او هغه (باغونه) راغورځیدلے وُو

عَلٰى عُرُوْشِهَا وَ يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ

په چتونو خپلو باندے او وئیل دهٔ هائے افسوس دے

لَمْ اُشْرِكْ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ﴿۴۲﴾

چه شریک م نه وے کړے دَ رب خپل سره هیڅوک -

بیا په دیکښې مضاف مقدر شی (عذاب الحساب) او ابن کثیر وئیلی دی حسبا طوفان باران ته هم وئیلے شی او دا قول دَ رجل مؤمن دَ وجے دَ اعتماد دَ توکل علی الله نه دَ هغه خلے نه صادر شوے وُو - او الله تعالیٰ دَ هغې موافق اجابت اوکړو. او دا دَ قبیلے دَ کرامت نه دے لکه چه صحیح حدیث کښې ذکر دی (رُبَّ اشعث اغبر لو اقسم علی الله لا بره) ډیر کړنے ببر سرے دوړو والا سړے چه دَ الله تعالیٰ په څه کار باندے قسم اوکړی نو الله تعالیٰ هغه پوره کوی - او یا دا جملے په معنی دَ دعا کښې دی او الله تعالیٰ دَ هغه دعا قبوله کړه -

۴۲ :- په دے آیت کښې ذکر دَ عذاب دنیوی او حسرت کول دَ هغه کافر دی او په وخت دَ ډیر افسوس کولو کښې انسان دواړه ورغوی دَ یو بل سره مکی او سبب دَ عذاب ته ئې اشاره اوکړه په دے قول سره.

يٰلَيْتَنِيْ لَمْ اُشْرِكْ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ، دا ښکاره دلیل دے چه دغه شخص مشرک وو او دَ پښیمانئ په شرک کولو باندے

وَلَمْ تَكُنْ لَّهُ فِئَةٌ يَّنْصُرُوْنَهُ

او نه وه ده لره هيڅ ډله چه د ده سره ئې امداد كړيوے

مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَمَا كَانَ مُنْتَصِرًا ﴿۴۳﴾

سوا د الله تعالیٰ نه او نه وو دے بدله اخستونکے .

هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلّٰهِ الْحَقِّ

په داسے وخت کښ واک اختيار د يو الله تعالیٰ دے يقيناً ،

هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ

هغه غوره دے بدلے والا او غوره

عُقْبًا ﴿۴۴﴾ وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ

نتيجه وركوونكے دے. او بيان كړه دوى ته مثال

نه ده بلکه په عذاب او هلاکت د مال ده په سبب د شرک سره او د بِشَمَرِهٖ ، لفظ د هغه ټولو باغونو او مالونو ته شامل دے .

۴۳ :- دا رد د شرک فی التصرف دے چه معبودان باطله او ستور قوتونو والا عذاب د الله تعالیٰ او مصيبت نشي دفع کولے .

فِئَةٌ ، هغه ډلے او جماعت ته وئيلے شي چه په وخت د مصيبت کښ هغه ته رجوع او پناه حاصليږي مراد د دينه د هغه شخص معبودان باطله او ملګرى او تابعداران دى .

۴۴ :- په دے کښ اثبات د اختيار او د تصرف دے خاص الله تعالیٰ لره .

اَلْوَلَايَةُ ، د واو په زير او زبر سره د الله تعالیٰ په صفت کښ يو شان وى يعنى په معنى د قدرت او د سلطنت دے . او د مخلوق په صفت کښ ولايت قدرت ته وائى . او ولايت دوستانے ته هم وائى .

هُنَالِكَ ، نه مراد وخت د عذاب دے که په دنيا کښ وى او که آخرت کښ وى .

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ

دَ ژوند دنیوی پشان دَ هغه اوبو چه رااوروُومونږ هغه

مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ

دَ بره طرف نه نوګډ شو رااوخیژی په هغې سره

نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا

بوټي دَ زمکې نه نو شي به (اوچ) ذرے ذرے

تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

وایه لوځوی هغې لره هواګانے ، او دے الله تعالیٰ

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ﴿۴۵﴾

په هر څیز باندے ډیر قدرت لرونکے ۔

هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَخَيْرٌ عُقْبًا ، یعنی کوم اعمال چه دَ الله تعالیٰ دَپاره دی په اخلاص سره نو دَ هغې ثواب او عاقبت خائسته او غوره وی۔

او لفظ دَ خَيْرٌ ، دلته تفضیلی نه دے بلکه صفتی دے ۔ یعنی نسبت یکبس بل چاته مقصد نه دے ۔

او ثَوَابًا او عُقْبًا ، دلته په معنی دَ اثابةً او عاقبةً سره دی یعنی ثواب ورکول او ښه عاقبت ورکول ۔

۴۵ :۔ دا تزهید فی الدنیا دے په دویم طریقے سره هغه دا چه دنیا حقیر او فانی ده په دے باندے غرور کول نه دی پکار ۔ او دا فنا او حقارت ئے بیان کړیدے په طریقه دَ مثال سره ۔ او دا رنګ مثال په سورة یونس ۲۴ آیت کښ تیر شوے دے ۔ حاصل دَ مثال دا دے لکه باران سره چه ګډ شو او مختلف بوټی رااوخیژی او بیا څه وخت روستو اوچ شی او ذرے ذرے شی او په هواګانو سره والوځی نو نښ میدان پاتے شی ۔ نو

دا رنګ دا دنيا دَ ابو پشان ده لکه او به چه په يو ځائے نه تمينکيږي او په يو حالت هميشه نه پاتے کيږي او څوک چه او بوکښ داخل شي نو دَ لوند يدلو نه بغير نشي پاتے کيدلے او چه او به برابروي نو فائده ورکوي او چه دَ حد نه تيرے شي نو تباهي کوي نو دا ټول حالتونه صفتونه دَ دنيا هم دي دنيا هم په يو ځائے نه حصاريږي دا رنګ دنيا دَ انسان سره په يو حال نه وي حالات بدليږي . دا رنګ څوک چه دنيا کښ ورداخل شي نو دَ هغے دَ فتنے نه نه شي بچ کيدلے . دا رنګ دنيا داري چه دَ حد نه زياته شي نو سبب دَ تباهئ اوګرځي .

او مختلف بوټي اشاره ده دَ دنيا مختلف قسم مالونو ته او ځنګه چه هغه بوټي اوچ شي او والوځي نو دا رنګ دَ دنيا مالونه ختميږي او فنا کيږي .

مُّقْتَدِرًا ، په سبب دَ زيادت دَ تاء سره مبالغه ده په قدرت کښ .

سلا :- په دے کښ دَ دنيا دوه اجزائے ذکر کړي دي چه هغه سبب دَ غرور ګرځي .

اَلْمَالُ ، مال سبب دَ جمال او دَ فائدو دے او تکبر پيدا کوي .

وَالْبَنُوْنَ، اولاد سبب دَ قوت او دَ زور دے او سبب دَ ظلم اوکرځي او دِ دواړو ته زينت وئيلے شي۔
وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ، په دے سره ترغيب الى الاخره ذکر کوي، قتاده وئيلي دي دَ دينه مراد هر عمل صالح دے که قول وي اوکه فعل وي چه په هغے کښ اخلاص او اتباع دَ سنت وي نو آخرت دَ پاره باقي پاتے کيږي نو په دے کښ پنځه مونځونه او ټول اعمال صالحه داخل دي او په ډيرو روايتونو دَ مسند احمد کښ راغلي دي چه دغه پنځه کلمات دي سبحان الله، الحمد لله، لا اله الا الله، الله اکبر لاحول ولا قوة الا بالله۔
وَخَيْرٌ اَمَلًا، يعني دَ صاحب دَ مال او دَ ځامنو اميدونه به برباد شي او دَ صاحب دَ باقيات صالحات اميدونه به بار اور وي۔
۴۷، ۴۸، ۴۹:۔ په دے آيتونو کښ تخويف اخروي دے۔ او دا دَ تزهيد في الدنيا دريمه طريقه ده چه دَ دنيا غرور او محبت سبب دَ عذاب اخروي او دَ افسوس اوکرځي او په دے آياتونو کښ احوال دَ قيامت يوولس ذکر دي۔ په اول آيت

بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَكُمْ

بلکه گمان دے ستاسو چه چرے به مقرر نه کړو موږ تاسو لره

مَّوْعِدًا ﴿۴۸﴾ وَوُضِعَ الْكِتٰبُ فَتَرَى

نیټه ۔ او کیخودلے به شي کتاب (عملنامه) نو وینے ته

الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا فِيْهِ

مجرمانو لره پربېدي به ډېرېدونکي د هغه نه چه په دے کښ دي

وَيَقُوْلُوْنَ يٰوَيْلَتَنَا مَالِ هٰذَا

او وائي به دوي هائے افسوس زموږ څه وجه ده د دے

الْكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيْرَةً وَّلَا

کتاب چه نه دے پريخودلے واړه شے او نه

كَبِيْرَةً اِلَّآ اَحْصٰىهَا ۚ وَوَجَدُوْا مَا

لوے شے مګر راګير کړيدي هغه او او به موندلي دوي هغه

عَمِلُوْا حَاضِرًا ۗ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ

عملونه چه دوي کړيدي حاضر ، او ظلم نه کوي رب ستا

اَحَدًا ﴿۴۹﴾ وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ

په هيچا باندے او کله چه اوئيل موږ ملائيکو ته

ع ۵ ۱۸ ۶

کښ د قيامت څلور احوال ذکر دي او دويم آيت کښ د قيامت دوه احوال ذکر دي - يعني رب ته پيش کيدل په صفونو او دوباره ژوند په شان د حال د پيدائش اول ، يعني بے ماله ، ناسته ، بے پيزاره ، بے جامو داسے په حديث کښ راغلي دي - او دريم آيت کښ د قيامت پنځه حالات ذکر دي -

صَفًّا ، په معنی د ډيرو صفونو سره دے يا ټول به يو صف وی -

اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ

سجده اوکړئ آدم ته نو سجده اوکړه ټولو سوا

اِبْلِيْسَ ط كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ

دَ ابلیس نه، دے وو دَ پیریانو نه نو نافرمانی ئے اوکړه

عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ط اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ

دَ حکم دَ رب خپل نه، آیا پس نیسئ تاسو دے

وَذُرِّيَّتَهٗٓ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ

او اولاد دَ دهٔ لره دوستان (په طاعت کولو سره) زما نه سوا

وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ط بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ

او دوی ستاسو دشمنان دی، بد دے ظالمانو لره

بَدَلًا ۝٥٠ مَآ اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ

په بدله (دَ الله تعالیٰ کښ) ـ نه دی حاضر کړی ما دوی لره پیدائش

الْكِتٰبُ ، اسم جنس دے په معنی دَ ډیرو کتابونو یعنی عملنامے۔
وضع نه مراد تقسیم کیدل دی په لاسونو کښ۔
مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ ، دا قول په طریقه دَ ډیر تعجب سره دے۔
صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً ، موصوف دَ دے خصلت پټ دے هغه هر
قول او فعل ته شامل دے۔
ف۵۰ ـ خلاصه :- دَ دے آیت نه دویمه حصه ده تر آیت ۵۹ پورے
په دے کښ جواب دَ شبهے دَ مشرکانو دے چه دلیل نیسی په شیطانی
خوبونو سره یا نور شیطانی احوالو سره دَ پاره دَ اثبات دَ تصرف دَ
غیرالله ، یعنی وائی چه فلان ولی ماته خوب کښ راغے چه زما
نذر مه قضا کوه ، زما دَ قبر نه حاجت غواړه ، زما قبر باندے
گنبد جوړ کړه ، کله وائی چه ما نذرانه دَ ولی پریخودله او پئ دَ
یو ولسے ے ورنکړه نو زما غوا ، میخه یئ بند کړل په دے سره

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَا خَلْقَ

دَ آسمانونو او دَ زمکے ته او نه پیدائش

تصرف دَ ولی ثابتوی۔
جواب په بیان دَ واقعے دَ آدم علیه السلام او دَ ابلیس سره دے
حاصل ئے دا دے چه دا ابلیس ستاسو زوړ دشمن دے نو دے
په دا سے خوبونو او احوالو سره په تاسو کښ دَ شرک عقیدے پیدا
کوی دا په ۵۰، ۵۱ کښ۔ بیا تخویف اخروی دے مشرکینو ته
په ۵۲، ۵۳ کښ۔ بیا څلور زجرونه دی۔ زجر اول په جدال فی
القرآن په ۵۴ کښ۔ دویم زجر په انتظار دَ عذاب په ۵۵ کښ۔
دریم زجر په جدال په شبهاتو باطلو سره په ۵۶ کښ۔ او څلورم
زجر په اعراض عن القرآن سره په ۵۷ کښ۔ بیا تخویف دنیوی
دے په ۵۸، ۵۹ کښ۔
۵۰ تفسیر:۔ په دے آیت کښ واقعه دَ آدم علیه السلام دَ ابلیس سره
ده دَ پاره دَ جواب دَ شبهے دَ مشرکینو او دَ دے وجه نه ئے په
دے آیت کښ متصل زجر ذکر کړے دے په دے قول سره
چه اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ، یعنی ابلیس او دَ
هغه اولاد ستاسو زاړه دشمنان دی او تاسو هغوی له دَ الوهیت
مرتبه ورکوئ؟
ربط:۔ او ربط دَ ماقبل سره دا دے چه مخکښ دَ مجرمانو لوے
واړه ګناهونو ته اشاره اوکړه او س دَ دغه ګناهونو سبب ذکر کوی
چه تابعداری دَ ابلیس او دَ هغه دَ اولاد ده۔
كَانَ مِنَ الْجِنِّ، دَ بعضو سلفو نه نقل دے چه ابلیس دَ ملائکو نه وو
او دَ مِنَ الْجِنِّ، په تاویل کښ اولا وائی چه جن یو قبیله ده دَ ملائکو
نه۔ دویم تاویل دا کوی چه (صار من الجن بسبب عمله) په
سبب دَ انکار سره دَ جناتو نه اوګرځیدلو۔ لیکن صحیح دا ده
(او دا اکثر سلفو نه نقل دے) چه ابلیس دَ جن نه دے او جن
غیر دے دَ ملائکو نه او دا په ډیرو دلیلونو سره ثابت ده

## اَنْفُسِهِمْ وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ

| دَ هم جنسو دَ دوی ته او نه یم زهٔ نیوونکے |
|---|

اول دلیل اختلاف دَ دوی په ماده دَ خلقت کښ چه ملائک دَ نور نه پیدا دی او جن دَ مارج من نار نه پیدا شوی دے او دا په حدیث دَ مسلم (عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُلِقَتِ الْمَلَائِكَةُ مِنْ نُوْرٍ وَخُلِقَ الْجَانُّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ وَخُلِقَ اٰدَمُ مِمَّا وُصِفَ لَكُمْ) کښ ذکر دی۔
دویم دلیل په ملائکو کښ نسل پیدا کیدل نه دی ثابت شوی او په جن کښ نسل او اولاد شته دے۔ لکه لفظ دَ ذریة په دے باندے شاهد دے۔
او دریم دلیل په سورة سبا ۴۱ کښ دے چه (بل کانوا یعبدون الجن)، دا دلالت کوی چه جن دَ ملائکو نه غیر دے۔
او نسبت دَ اول قول سلف ته په صحیح سند سره نه دے ثابت شوے او ابن کثیر رحمه الله په دے باندے تفصیلی رد کړے دے۔
فَفَسَقَ، فسق په اصل لغت کښ وتلو ته وئیلے کیږی یعنی دے اُووتلو دَ حکم دَ رب نه په نا فرمانئ سره۔
اَوْلِيَآءَ، مراد دَ دینه دوستان دی په طاعت کولو سره یا مددګاران او معبودان لکه چه بعضے خلق دی چه هغوی ته عباد الشیطان وئیلے شی بلکه دنیا کښ داسے خلق په انسانانو او جناتو کښ شته دے چه دَ ابلیس عبادت کوی او هغه دَ الله تعالیٰ سره ملګری ګنړی۔

الْمُضِلِّينَ عَضُدًا ﴿٥١﴾ وَيَوْمَ يَقُولُ

گمراه کوونکو خلقو لره امدادي . او په کومه ورځ چه او به وايي

نَادُوا شُرَكَاءِيَ الَّذِينَ زَعَمْتُمْ

اواز او کړئ شریکانو زما ته هغه کسان چه تاسو دعوی کوله رچه دا شریکان دي)

فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ

نو دوی به ورته اواز او کړي نو مغوي به هيڅ جواب ور نکړي دوی ته

ل ۵ . په دے کښ رد دے په هغه چا باندے چه شياطين د الله تعالیٰ سره شريک جوړوي حاصل د رد دا دے چه دوی د آسمانونو او د زمکے د پیدائش په وخت کښ موجود هم نه وو او نه د خپل جنس والو په وخت د پیدائش کښ موجود وو - او نه الله تعالیٰ د چا مدد ته محتاج دے نو هيڅ دليل نشته د دوی د شرکت د پاره -

وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا ، لفظ د مضلين قيد اتفاقي دے احترازی نه دے ځکه چه الله تعالیٰ د هيچا مدد ته محتاج نه دے او شیطان خو د مضلين نه دے نو دا قيد ئے په دے وجه کیخودو یا قید احترازي دے په دے سره ضالین او فاسقین او باسی چه الله تعالیٰ کله کله د دين تائيد په فاجر سړي کوي .

لکه چه په حديث صحيح کښ راغلی دی . (عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَإِنَّ اللّٰهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ)

ليکن مضلين چه خلقو لره گمراه کوی نو په هغوی سره د دين امداد نشي کیدلے .

وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ مَّوْبِقًا ﴿٥٢﴾ وَرَاَ

او اوبه ګرځوو په مینځ د دوی کښ ځائے د تباهۍ - او اوبه وینی

الْمُجْرِمُوْنَ النَّارَ فَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ

مجرمان خلق اور لره نو دوی به ګمان اوکړی چه یقیناً

مُّوَاقِعُوْهَا وَلَمْ يَجِدُوْا

پریوتونکی دی په هغے کښ نو او به نه مومی

سـ۵۲ :- په دے آیت کښ تخویف اخروی دے په براءت د الهو د مشرکینو د خپلو عابدینو نه - او په دے کښ ذکر د صالحینو کسانو دے چه مشرکانو ترینه معبودان جوړ کړی دی - په ورځ د قیامت به هغوی د عابدانو نه براءت اوکړی او امداد هم ورسره نشی کولے نو د شرکاء نه مراد هغه نیکان کسان دی چه شیطانانو د هغوی عبادت طرف ته دعوت ورکړے وؤ یا مراد د دے نه معبودان نیکان او بدان دواړه دی-

فَدَعَوْهُمْ ، مراد د دے نه رابللـه ده د امداد کولو د پاره نو معتوی استجابت او نه کړی یعنی امداد په نشی کولے هسے په نور جوابونه کوی لکه په سورة یونس سـ۲۸ او سورة نحل سـ۸۶ کښ -

مَّوْبِقًا ، ځائے د هلاکت نه وائی او هغه بتول جهنم دے. او دویم قول دا دے چه دا یو کنده ده په جهنم کښ د وینو زوو نه ډکه - اول قول غوره دے -

او بَيْنَهُمْ ، ضمیر راجع دے معبودانو او عابدانو ته یا راجع دے مؤمنانو او کافرانو ته -

عَنۡهَا مَصۡرِفًا ﴿۵۳﴾ وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا

دَ هغې نه ځائے دَ اوړیدلو (ربل خوا ته) - او یقینًا قِسم قِسم بیان کړي دي مونږ

فِيۡ هٰذَا الۡقُرۡاٰنِ لِلنَّاسِ مِنۡ

په دے قرآن کښ خلقو ته دَ

كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَكَانَ الۡاِنۡسَانُ اَكۡثَرَ

هر قِسم بیان نه، او دے انسان زیات

شَيۡءٍ جَدَلًا ﴿۵۴﴾ وَمَا مَنَعَ النَّاسَ

دَ هر څیز نه په جګړه کولو کښ- او نه دے منع کړے خلقو لره

اَنۡ يُّؤۡمِنُوۡۤا اِذۡ جَآءَهُمُ الۡهُدٰى

دَ ایمان راوړلو نه هر کله چه راغے دوی ته هدایت

وَيَسۡتَغۡفِرُوۡا رَبَّهُمۡ اِلَّاۤ اَنۡ تَاۡتِيَهُمۡ

او دَ بخنے طلب کولو دَ رب خپل نه مګر (انتظار کولو) دَ دے خبرے چه راشي دوی ته

۵۳:- په دے کښ تخویف اخروی په بیان دَ حال دَ عابدانو دَ شریکانو دے - او مطلب دا دے چه دَ جهنم دَ دخول نه وړاندے اوړ په اوبني نو په خوف او حزن کښ به واقع شي-

فَظَنُّوۡا ، مراد دَ ظن نه یقین دے او دا سے په ډیرو آیاتونو کښ شته دے -

۵۴:- په دے آیت کښ زجر دے په اعراض او په جدال کولو سره-

مِنۡ كُلِّ مَثَلٍ ، نه مراد دلیلونه او زواجر او تخویفات وغیره دي او لفظ دَ صَرَّفۡنَا ، کښ اشاره ده چه دا مضامین په مختلفو طریقو سره ذکر کړے شوے دي- او جدال او جدال په دے سورت کښ دَ دے وجے نه ډیر ذکر شوے دے چه په دے کښ دَ مجادلینو دَ شبهاتو جوابات دي-

سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ
طريقه دَ پخوانو يا راشي دوی ته عذاب

قُبُلًا ﴿۵۵﴾ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ
مخامخ . او نه ليږو موږ رسولان

اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ وَيُجَادِلُ
مګر زيری ورکوونکي او يره ورکوونکي او جګړے کوي

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا
کافران په باطلو (شبهاتو) دپاره دَ دے چه او نړوي

ف۵۵ :- په دیکښې زجر او تخویف دے په ایمان نه راوړلو سره په سبب دَ انتظار کولو دَ عذاب سره.
اَنْ يُّؤْمِنُوْا ، کښې توحید منلو ته اشاره ده.
او په وَيَسْتَغْفِرُوْا رَبَّهُمْ ، کښې دَ شرک نه توبه ویستلو ته اشاره ده.
اَنْ تَاْتِيَهُمْ ، دَ دے نه مخکښې لفظ دَ انتظار یا حکمی پټ دے.
سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ ، نه مراد عذاب استیصالی دے چه ټول هلاک شي پشان دَ تیر شوو قومونو مکذبینو.
اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا ، دَ دے نه مراد عذاب دے په بعضے کسانو باندے چه یو بل ته ګوري.
فائده :- په سورة اسراء ف۹۴ کښې مانع دَ ایمان بالرسول نه ذکر کړے شوے وو او هغه شبه دَ بشریت وه او په دے سورت کښې ئے مانع دَ توحید دَ منلو نه ذکر کړے دے چه هغه انتظار دَ عذاب دے.

بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَمَآ
په هغې سره حق لره او نیولې دي دوی آیاتونه زما او هغه چه
اُنْذِرُوْا هُزُوًا ﴿۵۶﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ
دوی له پرې بېره ورکړی شوې ده ټوقې. او څوک لوې ظالم دے
مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ فَاَعْرَضَ
د هغه چا نه چه ورته یاد کړی شي آیاتونه د رب د ده نو مخ واړوي د هغې نه

۵۶ :- په دے آیت کښ اولګ حکمت د ارسال رسل ذکر شوے دے - یعنی رسولان رالیږلے شوی دی د پاره د دفع کولو د عذاب او په دے سره د ماقبل سره ربط پیدا کیږی - بیا زجر دے په جدال کولو سره په باطلو شبهاتو سره او په نړولو د حق سره او په استهزاء کولو سره -

بِالْبَاطِلِ ، نه مراد بے دلیله شبهات او اعتراضونه کول دی لکه په سورة غافر ۵ ، ۳۵ ، ۵۶ کښ چه دی -

لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ ، کښ اشاره ده چه د دوی شبهات د طلب حق د پاره نه دی بلکه د حق په ضد او په عناد کښ دی -

وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَمَآ اُنْذِرُوْا هُزُوًا ، دا جواب د یو وهم دے یعنی که چرے اوئیلے شی چه د حق د پاره خو آیاتونه او احادیث د رسول الله نو موجود دی نو دوی ولے جدال کوی په شبهاتو سره ؟
جواب :- حاصل ئے دا دے چه هغه د دوی په نیز باندے عبث دی او سپک ئے ګنړی یعنی نه ئے اوری - دلته ما انذروا ذکر کړے دے ځکه چه مخکښ آیت کښ ذکر د عذابونو د مخکنو خلقو وو -

عَنۡهَا وَنَسِیَ مَا قَدَّمَتۡ یَدٰهُ ؕ

دَ هغې نه او هېر کړی هغه عملونه چه مخکښې لیږلے دی لاسونو دَ ده ،

اِنَّا جَعَلۡنَا عَلٰی قُلُوۡبِهِمۡ اَکِنَّةً

بقیناً کړځولے دی مونږ په (زړونو دَ دوی باندے پردے (منع کوونکی)

اَنۡ یَّفۡقَهُوۡهُ وَفِیۡۤ اٰذَانِهِمۡ وَقۡرًا ؕ

دَ پوهے دَ قرآن نه او په غوږونو دَ دوی کښې درونډوالے دے ،

وَاِنۡ تَدۡعُهُمۡ اِلَی الۡهُدٰی فَلَنۡ

او که ته بلنه کوے دَ دوی سمے (برابرې) لارے ته نو

یَّهۡتَدُوۡۤا اِذًا اَبَدًا ﴿۵۷﴾ وَرَبُّكَ

لاره په اوږه موندې دغه وخت کښې هیچرے ۔ او ستا رب

الۡغَفُوۡرُ ذُو الرَّحۡمَةِ ؕ لَوۡ یُؤَاخِذُهُمۡ

بخښه کوونکے دے رحمت والا دے ، که چرے نیولے یئے دوی لره

بِمَا کَسَبُوۡا لَعَجَّلَ لَهُمُ الۡعَذَابَ ؕ

په سبب دَ عملونو دَ دوی نو ژر به ئے ورکړی وے دوی لره عذاب ،

۵۷ :- په دے کښې زجر دے په اعراض کولو سره دَ تذکیر دَ قرآن نه۔

وَنَسِیَ مَا قَدَّمَتۡ یَدٰهُ ، په دے کښې مراد ترک دَ توبے دے دَ تیر شوی گناهونو نه۔

اِنَّا جَعَلۡنَا عَلٰی قُلُوۡبِهِمۡ اَکِنَّةً ، هر کله چه اعراض دَ دوی ئے ذکر کړو نو اوس فرمائی دَ هغه اعراض په وجے سره دَ دوی په زړونو پردے پیدا شوے نو همیشه دَپاره دَ تذکیر دَ قرآن نه محرومه شول۔

فَلَنۡ یَّهۡتَدُوۡۤا اِذًا اَبَدًا ، کښې اشاره ده افت دَ سترګو نه چه غشاوه ده۔

بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا
بلکه دوی لره وخت مقرر دے هیچرے به او نه موئی
مِنْ دُوْنِهٖ مَوْئِلًا ﴿۵۸﴾ وَتِلْكَ
مخکښ دَ مخے نه ځائے دَ پناه ځئ - او دغه
الْقُرٰٓى اَهْلَكْنٰهُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا
کلی دی چه هلاک کړل موږ دوی هرکله چه ظلم ئے کړے وو
وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ مَّوْعِدًا ﴿۵۹﴾
او مقرر کړے وو موږ دَ دوی دَ هلاکت دَپاره وخت مقرر -

۵۸ :- په آیت کښ اول ترغیب ذکر دے توبے کولو ته چه دَ شرک او کفر نه توبه اوباسئ نو الله تعالیٰ به تاسو ته مغفرت اوکړی او رحمت به اوکړی - بیا تخویف دنیوی دے منکرینو ته او په دے آیت کښ صفت دَ رحمت او صفت دَ غضب دَ الله تعالیٰ دواړه جمع کړی دی لکه په سورة انعام ۱۳۳ کښ دی -
مَّوْعِدٌ ، مراد دَ ینه نیټه مقرره ده دَپاره دَ عذاب -
۵۹ :- په دے کښ تخویف دنیوی دے په ذکر دَ تیرو شوو قومونو سره -
وَتِلْكَ الْقُرٰٓى ، کښ اشاره ده هغه کلو ته چه مخکښ هلاک کړے شوی دی او هغه اگرچه موجود او محسوس نه وُو لیکن په تلك سره اشاره دَ دے وجے نه اوشوه چه هغه دَ ډیر شهرت دَ وجے نه په شان د محسوس دی -
لَمَّا ظَلَمُوْا ، په دے کښ سبب دَ عذاب ته اشاره ده او هغه ظلم په ۵۸ کښ دے -
بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا مِنْ دُوْنِهٖ مَوْئِلًا ، دَ موجوده خلقو په باره کښ دے -

۸ ع ۲۰

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِفَتٰىهُ لَآ اَبْرَحُ

اوکوم وخت چه اُوئیل موسیٰ علیه السلام خادم خپل ته زهٔ به همیشه گرځم

حَتّٰٓى اَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ

تردے چه اورسم ځاے دَ جمع کیدلو دَ دوو دریابونو ته

اَوْ اَمْضِيَ حُقُبًا ﴿۶۰﴾ فَلَمَّا بَلَغَا

او یا به ځم ډیره زمانه ۔ نو هرکله چه اورسیدل دواړه

سلا :- خلاصه :- دَ دے آیت نه دریمه حصه ده تر آیت سلا پورے په دیکښ جواب دَ شبهے دَ هغه چا دے چه استدلال کوی په امور خارقه للعادة دَ خضر علیه السلام سره په قدرت او تصرف او علم غیب دَ هغه پاندے ۔ او په خپلو حاجاتو کښ دَ هغه دَ رابللو دَپاره دا دلیل پیش کوی او وائی چه "یا خضر امداد شه" وئیل جائز دی ۔

حاصل دَ جواب دا دے چه خضر علیه السلام عبد محتاج وو په رحمت کښ الله تعالیٰ ته او هغه سره علم دَ بعضے اشیاؤ وو ۔ اوکوم امور خارقه چه دی هغے جواب دا دے وَمَا فَعَلْتُهٗ عَنْ اَمْرِیْ ، چه په دے کارونو کښ زما هیڅ اختیار نه وو ۔

بیا په دے واقعه کښ داسے امور دی دَپاره دَ بچ کیدلو دَ عذاب نه هغه به په ضمن دَ واقعه کښ ذکر کیدے شی او په دے سره دَماقبل سره مربوط دے ۔ او دا هجرت دَ موسیٰ علیه السلام دے دَپاره دَ طلب دَ علم او دا په حکم دَ الله تعالیٰ سره دے چه الله تعالیٰ ورته دَ خضر ځاے اوخودو او دَ هغه نه دَ استفادے امرئے ورته کړیوو ۔ او دا په حدیث صحیح کښ تفصیلاً ذکر شوی دی ۔

تفسیر :- په دے آیت کښ اشاره ده چه هیچا لره دَ علم او زیادت حاصلول په علم کښ دَ دینه بے پرواه کیدل نه دی پکار او په دے قصه کښ دَ طلب علم دَپاره ډیر آداب ذکر دی ۔

لِفَتٰىهُ ، نوم دَ هغه یوشع بن نون دے او اشاره ده چه په سفر کښ ځوان ملګرے پکار دے ۔

مَجۡمَعَ بَيۡنِهِمَا نَسِيَا حُوۡتَهُمَا

ځاے دَیو ځاے کیں لوَدَدے دواړو نه هیرکړو دواړو مهے خپل

فَاتَّخَذَ سَبِيۡلَهٗ فِى الۡبَحۡرِ سَرَبًا ﴿۶۱﴾

نواوتبوله لار خپله په دریاب کښ دَ سورنګ په شکل سره -

لَآ اَبۡرَحُ حَتّٰٓى اَبۡلُغَ مَجۡمَعَ الۡبَحۡرَيۡنِ اَوۡ اَمۡضِىَ حُقُبًا ، په یکښ اشاره ده چه انسان له په طلب دَ علم کښ ډیر کوشش صرف کول پکار دی که یو ځاے کښ حاصل نشی نو بل ځاے ته دِ لاړ شی -

مَجۡمَعَ الۡبَحۡرَيۡنِ ، دیکښ اقوال ډیر دی یو قول دا چه دا مقام طنجه دے او طنجه مقام دَ اسپانیا او دَ مغرب په مینځ کښ دے او بحرین نه مراد بحر الابیض المتوسط او بحر محیط اطلسی دے او دغه ځاے ته مضیق هم وائی او دَ جبل طارق سره دے - دویم دا چه دا مجتمع دَ بحیره روم او بحیره فارس دے اول قول ډیر مناسب دے -

اَوۡ اَمۡضِىَ حُقُبًا ، حقب ډیرے زمانے ته وئیلے شی او صحیح دا ده چه دَ هغے معین مقدار نشته او اشاره ده چه دَ علم دَپاره سفر کول عبادت دے -

ملا :- نَسِيَا حُوۡتَهُمَا ، دا مهے تے توشه دان کښ راخستلے وۓ چه دَ دوی توښه به وی په وخت دَ ضرورت کښ - اشاره ده چه په سفر کښ دپارهِ دَ طلب علم ځان سره خپله مناسب توښه راخستل بهتر دی - او موسیٰ علیه السلام ته دَ الله تعالیٰ دَ طرف ته په وحی سره خودلے شوے وه چه دا مهے په کوم ځاے کښ ستاسو نه ورک شی هغه ځاۓ کښ به خضر علیه السلام ملا ویږی - تو چه موسیٰ علیه السلام اوده شو او یوشع ویخ ناست وۓ ناګاه مهی دَ توښه دان نه ټوپ کړو او په دریاب کښ ورته او په اوچه شوے - دَ سرنګ په شان او په هغے کښ ورک شو -

نَسِيَا ، کښ نسبت دواړو ته په دے وجه سره شوے دے چه

فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتٰهُ اٰتِنَا

نو هر کله چه پورې وتل دواړه اُوتیل ده خدمتګار ځپل ته راوړه

غَدَآءَنَا ز لَقَدْ لَقِيْنَا مِنْ سَفَرِنَا

ناشته زمونږ یقیناً اورسیدلو مونږ دې سفر نه

هٰذَا نَصَبًا ﴿۶۲﴾ قَالَ اَرَءَيْتَ اِذْ اَوَيْنَآ

ستړې والي ته۔ اُوتیل ده خبر شه هر کله چه ځاے اونیوو مونږ

اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ

کلک ته نو یقیناً ما هیر کړو مهے

یوشع نه هیر شول چه موسیٰ علیه السلام ته یې حال وئیلے وے او موسیٰ علیه السلام نه هیر شو چه دَ یوشع نه یې دَ مهی باره کښې تپوس کړے وے۔ دا دلیل دے چه نسیان دَ نبوت سره منافات نه لري او دا دلیل دے په دے کښې دَ الله تعالیٰ په قدرت سره په بعث بعد الموت باندے او لطیفه اشاره ده چه کوم ځاے مړ مهے ژوندے کیږي نو هلته به علم (چه ژوند دے) حاصلیږي۔

۶۲:۔ دا دلیل دے په نفی دَ علم غیب دَ موسیٰ علیه السلام نه او بیان دَ عجز دَ هغه دے۔ که دَ مهی دَ حال نه خبر وے نو دَ هغه ځاے نه به نه تلو او نه به یې دَ غداء دَ پاره مهے طلب کوو۔ او غداء ته محتاج کیدل او ستړے کیدل دلیل دَ عجز او دَ عبدیت دَ موسیٰ علیه السلام دے او عبد اله نشي کیدلے.

هٰذَا، کښې اشاره ده هغه سفر ته چه دَ مجمع البحرین نه یې روستو کړے وُو۔ په دے کښې لطیفه نکته دا ده چه انسان کوم ځاے ته دَ زړه په شوق او محبت سره مزل کوي نو دَ هغې ستړے والے نه محسوس کوي او کوم مزل چه دَ مقصد نه غیر شي نو په هغې انسان ستړے والے محسوس کوي۔

وَمَآ أَنۡسٰنِيۡهُ إِلَّا الشَّيۡطٰنُ أَنۡ
او نه وڅو هیر کړے زما نه هغه مګر شیطان چه
أَذۡكُرَهٗ ۚ وَاتَّخَذَ سَبِيۡلَهٗ فِي
یادداشت ے کړے وے دَ هغے (زما ته) او اونیوله ده لاره خپله په
الۡبَحۡرِ ۖ عَجَبًا ﴿٦٣﴾ قَالَ ذٰلِكَ
دریاب کښ (تعجب کووم) تعجب کول۔ او ئیل موسیٰ علیه السلام دا هغه څلے دَ

س۶۳ :- یوشع علیه السلام دَ ادب په طریقه دَ نسیان نسبت صرف ځان ته اوکړو موسیٰ علیه السلام ئے ځان سره په نسبت کښ شریک نه کړو۔ بیا ئے خپل عذر پیش کړو او نسبت دَ نسیان ئے شیطان ته اوکړو اګرچه نسیان څه ګناه نه ده لیکن دا قاعده ده چه بعضے افعال اګرچه معصیت نه وی لیکن دَ هغے په کیدلو شیطان خوشحاله شی دَ دے وجے نه چه په هغے سره مؤحد ته تکلیف جوړشی او شیطان خو دَ مؤمن په تکلیف خوشحالیږی لکه موسیٰ علیه السلام چه دَ قتل دَ قطبی نسبت شیطان ته کړے دے په سورة القصص س۱۵ کښ هغه هم دَ دے قاعدے دَ لاندے دے او نسبت دَ حیض او دَ نفاس دَ زنانه رکض دَ شیطان ته په دے بنا سره دے چه هغه په حدیث صحیح کښ دے۔

دویمه وجه دا ده چه کله اسباب دَ نسیان کښ شیطان لره دخل وی نو دَ نسیان نسبت شیطان ته په اعتبار دَ سبب سره اوشی لکه دَ تثاؤب (اړګی کول) نسبت شیطان ته شوے دے ځکه دَ هغے سبب چه غفلت دے هغه دَ شیطان په وجه سره دے۔

عَجَبًا ، مفعول مطلق دے دَ پټ فعل دَ پاره یعنی عجبت عجبًا یا صفت دے دَ پټ موصوف سبیلًا عجیبًا۔

مَا كُنَّا نَبْغِ ۖ فَارْتَدَّا عَلٰٓى اٰثَارِهِمَا

چه موږ طلب کوؤ ، نو واپس اوګرځیدل دواړه په نخو د قدم مونو

قَصَصًا ﴿٦٤﴾ فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ

واپس تلونکي . نو اوموندو دواړو یو بنده د

عِبَادِنَآ اٰتَيْنٰهُ رَحْمَةً مِّنْ

بندګانو زموږ نه ورکړیوه موږ هغه ته پیغمبري د

عِنْدِنَا وَعَلَّمْنٰهُ مِنْ لَّدُنَّا عِلْمًا ﴿٦٥﴾

خپل طرف نه او خودلے وو موږ هغه ته د خپل طرف نه خاص علم .

ت ۶۴ :- موسٰی علیه السلام دغه عذر قبول کړو او واپس په خپل نقش قدم (رمتنهٔ) باندے راروان شول د پاره د دے چه هغه ځائے تر بنه خطا نه شي .

قَصَصًا ، مفعول مطلق دے د پټ فعل د پاره يقصان قصصًا .

ت ۶۵ :- دوی چه واپس مجمع البحرين ته راورسیدل نو یو سړے په جامه کښ پټ وؤ او ده ته ئے لګولے وه نو موسٰی علیه السلام پرے سلام واچولو هغه د جواب نه بعد اُوئیل چه دا نا اشنا کار دے ځکه چه په دے ملک کښ اکثر خلق د دے طریقے د سلام نه غافل دی او دا رنګ اکثر خلق د هغه نه مخالف وؤ نو په هغه باندے ئے سلام نه کوؤ - هغه ورته اُوئیل زه موسٰی یم. هغه اُوئیل کوم موسٰی ، هغه اُوئیل موسٰی د بنی اسرائیلو -

عَبْدًا ، په دے وصف کښ اشارة ده چه خضر محتاج بنده وؤ. حقدار د الوهیت نه دے - د خضر نوم بلیا بن ملکان وؤ د سام بن نوح په اولاد کښ وؤ او خضر ئے لقب وؤ ځکه چه په زمکه باندے کوم ځائے به ناست وؤ او بیا به د هغه ځائے نه پاسیدلو نو هغه ځائے به شین زلیدلو خضرة شینوالی ته وائي - او دے د بادشاهانو په اولاد کښ وؤ د ده په باره کښ دوه اختلافونه دي.

اول دا دے چه خضر مَلَك وؤ يا رسول وؤ يا ولی ؟ صحيح دا ده چه نبی وؤ او مفسر قرطبی دليلونه ذکر کړی دی دَ هغه په نبوت باندے۔
اول دا چه رَحۡمَةً ، په معنیٰ دَ نبوت او دَ وحے دے۔ دويم دا چه موسیٰ عليه السلام نبی وؤ او نبی په علم کښ ولی ته نه محتاج کيږی ځکه چه نبی افضل دے من کل الوجه دَ ولی نه۔ دريم دا چه غير نبی دَ نبی نه اوچت په مرتبه کښ نشی کيدے۔
او بعضو خلقو وئيلی دی چه ملك وؤ ليکن دليل ئے نشته دا رنګ څوک وائی ولی وؤ دا هم شاذ او بے دليله قول دے۔۔
دويم اختلاف دَ دهٔ په بقاء کښ دے يعنی دے تر اوسه پورے ژوندے دے او که وفات شوے دے۔ دَ محدثينو او علماؤ محققينو مسلك دا دے چه هغه وفات شوے دے او دَ صوفياتو قول دا دے چه هغه ژوندے دے او اول قول صحيح دے دَ هغے دليلونه تفسير ابن کثير کښ او البدايه والنهايه لابن کثير کښ، او تفسير روح المعانی وکتاب الرد علی المنطقيين دَ شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله وغيرهم کښ په تفصيل سره ذکر کړے شوی دی۔
او ابن کثير وئيلی دی دَ حياة خضر عليه السلام چه څوک قائل دی دَ هغوی سره هيڅ دليل صحيح نشته سوا دَ يو حديث دَ تعزيت نه ليکن هغه ضعيف دے او په دے مسئله کښ امام قرطبی خطا شوے دے چه دَ حيات خضر قائل دے او تفسير ابن کثير کښ دا حديث (لَوۡ كَانَ مُوۡسٰى وَعِيۡسٰى حَيَّيۡنِ) دائے په تفسير دَ سورة آلعمران کښ راوړے دے بغير دَ سند نه دا حديث غلط دے صحيح حديث کښ صرف دَ موسیٰ عليه السلام ذکر کړے شوے دے۔
وَ عَلَّمۡنٰهُ مِنۡ لَّدُنَّا عِلۡمًا ، دَ دينه مراد يو قسم علم دے ځکه دا نکره په اثبات کښ راغلے ده نو خصوص غواړی او هغه علم دَ بعضے امورو باطنيه دے په سبب دَ وحی سره دليل دا دے چه دَ قصے په آخر کښ فرمائيلے دی وما فعلته عن امری او دا سے

علم دَ بعضے امورو مستقبلہ یا علم دَ بعضے مغیبا تو دَ تمام انبیاء علیهم السلام دَپارہ پہ طور دَ معجزہ سرہ ثابت دے پہ دے طریقہ دَ تفاوت سرہ -

فائدہ :- فرقہ دَ زنادقہ باطنیہ پہ نیز بانندے اولیاء او بزرگانو لرہ علوم باطنیہ حاصل دی پہ سبب دَ صفائی دَ زړونو دَ دوی پہ سبب دَ دغہ علم سرہ اسرار دَ کائناتو لہ دوی خبریږی او احکام دَ جزئیاتو هم معلومولے شی او حاجت ئے نصوص شرعیہ تہ نہ وی - او قیاس کوی دوی پہ علومو دَ خضر علیہ السلام باندے او کلہ دا قول کوی چہ حقیقت غیر وی دَ شریعت نہ ، کلہ وائی چہ علم دَ صوفیاؤ شریعت تہ حاجت نہ لری او دَ دے وجے نہ دغہ متصوقہ عبادات پریږدی پہ دے بهانے سرہ او دَ حلال او حرام تمیز هم نہ کوی -

جواب دا دے چہ قرآن او سنت او اجماع دَ سلف او خلف شاهد دہ چہ معرفت دَ احکام شرعیہ تہ بلہ لار نشتہ سِوا دَ علم دَ شریعت نہ او څوک چہ دا دعوی کوی چہ پہ معرفت دَ احکامو شرعیہ کښ قرآن او سنت تہ حاجت نشتہ نو دا زندیق او کافر دے او قیاس دَ دوی پہ خضر علیہ السلام صحیح نہ دے ځکہ چہ دَ هغہ علم پہ ذریعہ دَ وحی دَ اللہ تعالیٰ سرہ وو او صوفیاؤ سرہ څہ وحی نشتہ - او موسیٰ علیہ السلام کہ پہ خضر علیہ السلام اعتراضونہ کړی دی دا دَ دے وجے نہ چہ دَ موسیٰ علیہ السلام دَ شریعت نہ دغہ کارونہ مخالف وو او دَ غیب نہ خبر نہ وو - او پہ دیکښ دلیل دے چہ کوم عمل چہ دَ شرعے نہ خلاف وی پہ هغے باندے ضرور اعتراض پکار دے چپ کیدل نہ دی پکار او دا معاملہ دَ موسیٰ علیہ السلام دہ دَ یو پیغمبر سرہ او چہ معاملہ راشی پہ دے طریقہ دَ غیر نبی سرہ نو فرض دی چہ پہ هغہ باندے اعتراض اوکړے شی -

قَالَ لَهُ مُوسٰى هَلْ أَتَّبِعُكَ
اُوئیل دہ تہ موسیٰ علیہ السلام آیا تابع شم ستا
عَلٰى أَنْ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ
پہ دے شرط چہ تعلیم بہ راکوی ما تہ دَ هغہ نہ چہ تا تہ خودلے شوے دی
رُشْدًا ﴿۶۶﴾ قَالَ إِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيعَ
دَ هدایت خبرے۔ اُوئیل دہ یقیناً تہ وس نہ لرے
مَعِيَ صَبْرًا ﴿۶۷﴾ وَكَيْفَ تَصْبِرُ عَلٰى
زما سرہ دَ صبر کولو۔ او څہ رنګ بہ صبر اوکرے تہ پہ
مَا لَمْ تُحِطْ بِهِ خُبْرًا ﴿۶۸﴾ قَالَ
هغہ څیز بانبدے چہ تہ نہ لرے پہ هغے بانبدے خبر۔ اُوئیل دہ

۶۶:۔ پہ دے کښں تعلیم دَ ادب دے دَ استاد او دَ عالم سرہ چہ دَ هغہ نہ دے ضرور اجازت طلب کوی او دَ هغہ دے تابعداری کوی ترحد دَ شرعے پورے۔
مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا ، پہ دے کښں اشارہ دہ چہ استاد لہ پکار دی چہ شاګرد تہ صرف دَ هدایت او دَ خیر علم اوښائی بے فائدے دِ دَ هغہ وخت نہ برباد وی۔
۶۷:۔ دا تجربہ دہ او دلیل ئے پہ روستو ۶۸ کښں ذکر کرے دے۔ دَ خضر علیہ السلام علم غیب نہ دے یعنی هغہ تہ دا معلومہ دہ چہ کوم کارونہ زما نہ صادریږی پہ وحی دَ اللہ تعالیٰ لیکن پہ ظاهر کښں اولا دَ شرعے نہ مخالف معلومیږی نو موسیٰ علیہ السلام بہ ضرور اعتراض کوی۔ او پہ دے کښں اشارہ دہ چہ کوم استاد چہ دَ هغہ اعمال دَ شرعے نہ پہ ظاهر کښں مخالف وی نو دَ هغہ نہ ضرور تپوس پکار دے صبر کول نہ دی پکار۔
۶۸:۔ پہ دے آیت کښں دَ تیر شوی آیت علت او دلیل ذکر شوید ے۔ یعنی څوک چہ دَ یو څیز علم نہ لری نو پہ هغے باندے صبر هم نشی کولے۔

سَتَجِدُنِیْٓ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ صَابِرًا

زر دے او به مومے ما لره که الله تعالیٰ او غواړی صبر ناک

وَّلَآ اَعْصِیْ لَكَ اَمْرًا ﴿۶۹﴾ قَالَ

او نافرمانی به نه کوم ستا د هیڅ حکم ۔ اُوئیل خضر علیه السلام

فَاِنِ اتَّبَعْتَنِیْ فَلَا تَسْـَٔلْنِیْ

نو که ته زما تابعداری کوے نو تپوس مه کوه زما نه

عَنْ شَیْءٍ حَتّٰٓى اُحْدِثَ لَكَ مِنْهُ

د هیڅ څیز باره کښ ترد ے پورے چه بیان به کړم تاته د هغے نه

ذِكْرًا ﴿۷۰﴾ فَانْطَلَقَا حَتّٰٓى اِذَا رَكِبَا

جواب . نو روان شو دواړه ترد ے چه سواره شول

فِی السَّفِیْنَةِ خَرَقَهَا ط قَالَ اَخَرَقْتَهَا

په کشتۍ کښ نو سوری ئے کړه ، اُوئیل موسیٰ علیه السلام آیا سوری دِ کړله

ع ۹ ۱۱ ۲۱

ف۶۹ :- موسیٰ علیه السلام د ظاهر په لحاظ سره د صبر وعده اوکړه او معلق ئے کړه په انشاء الله سره ځکه چه علم غیب ئے نه لرلو۔ او اشاره ده چه شاګرد له د استاد د حکم نافرمانی کول جائز نه دی۔

ف۷۰ :- اشاره ده چه استاد په شاګرد باندے مناسب شرطونه لازم کولے شی او دا د متعلمینو د پاره عام شرط دے چه د استاد د خبرے پوره کولو انتظار پکار دے د خبرے په مینځ کښ را دانګل او دخل کول مناسب نه دے۔

لِتُغۡرِقَ اَهۡلَهَا ۚ لَقَدۡ جِئۡتَ

دا د دے دپارہ چہ غرق کړے سوارہ د دے یقیناً راتلل دے اوکړل

شَيۡـًٔا اِمۡرًا ﴿۷۱﴾ قَالَ اَلَمۡ اَقُلۡ

کار ډیر عجیبہ ته - اُوئیل هغه آیا نه وؤ وئیلی ما

ملک :- د دے ځایے نه سفرعلمی د دے دواړو شروع شو - او د یوشع علیه السلام ذکر په کښ د دے وجے نه نشته چه هغه تابع وؤ او د تابع ذکر ته ضرورت نه وی - او څوک وائی چه بغیر د اجازت د خضر نه ئے د آب حیات او به اوڅکلے او هغه دریاب ته اوغورځوو او هغه د هغے په چپو کښ ژوندے دے تر قیامته پورے دا موضوعی او اسرائیلی روایات دی۔

اوظاهر دا ده چه خضر علیه السلام د دعوت د توحید د پاره ګرځیدلو او دا واقعات به په لار کښ راتلل نو خضر علیه السلام او موسیٰ علیه السلام د دریاب غاړے ته راغلل او اراده ئے اوکړه چه د دریاب پورے طرف ته ورځو نو کشتئ کښ سواره شول چونکه کشتئ د موحدینو مساکینو وه هغوی خضر علیه السلام او پیژندو چه دے خو د دعوت د دین د پاره ګرځی نو هغوی تربنه کرایه وانخستله او داسے اخلاق پکار دے عام مسلمانانو لره چه د عالم حق پرست او د داعی د دین داسے رعایت اوکړی هرکله چه دوی کشتئ کښ د دریاب مینځ ته شول نو خضر علیه السلام په (رقدوم) تبر سره د هغے نه یو تخته ماته کړه او سورئ ئے کړله - نو موسیٰ علیه السلام د شرعی جذبے په بناء باندے په هغه باندے اعتراض اوکړو او وعده د صبر کولو تربنه هیره شوه او وجه د اعتراض کولو مخکښ بیان کړے شوه۔

لِتُغۡرِقَ اَهۡلَهَا ، دا په اعتبار د ظاهر سره غایه د تخته ویستلو ده او لام دغایه د پاره دے علت د پاره نه دے او په اعتبار د

إِنَّكَ لَن تَسْتَطِيعَ مَعِىَ صَبْرًا ﴿٧٢﴾

چه ته چرې طاقت نه لرې ما سره دَ صبر کولو۔

قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِي بِمَا نَسِيتُ

اُوئیل موسیٰ علیه السلام مه نیسه ما لره په هغه کار چه ما په هیره اوکړه

وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا ﴿٧٣﴾

او مه اچوه په ما باندې دَ کار زما نه تنګسیا۔

فَانطَلَقَا حَتَّىٰ إِذَا لَقِيَا غُلَامًا

نو روان شول دواړه ترڅو چه کله مخامخ شول یو ځوان سره

فَقَتَلَهُ ۙ قَالَ أَقَتَلْتَ نَفْسًا

نو قتل یې کړو هغه لره اُوئیل موسیٰ علیه السلام آیا او وژلو تا یو نفس

خرق عادت (معجزه) سره کشتۍ غرقه نه شوه۔ او حدیث کښ راغلی دی چه یو چنچړه راغله او دَ کشتۍ په غاړه کیناسته او په مخوکه سره یې او په دَ سمندر نه را واخستلے نو خضر علیه السلام اُوئیل موسیٰ علیه السلام ته چه زما او ستا علمونه چه راجمع شی نو دَ هغې نسبت علم دَ الله تعالیٰ ته داسې دے لکه دَ دې مرغۍ په مخوکه پورې چه کوم او به لګیدلے دی او نسبت یې ټول سمندر ته واخلے۔ په دیکښ اشاره ده چه انبیاء علیهم السلام په علم کښ دَ الله تعالیٰ سره برابر نه شی کیدلے۔

۷۳ ۔ په دیکښ یادول دَ خضر علیه السلام دی موسیٰ علیه السلام ته وعده دَ هغه او دَ هغه دَ طرف نه عذر دَ نسیان پیش کړے شو۔ په دے کښ اشاره ده چه په نسیان باندے مواخذه او ګناه نشته۔

وَلَا تُرْهِقْنِي مِنْ أَمْرِي عُسْرًا، سره اشاره ده چه څوک مواخذه کوی په نسیان سره نو هغه تنګسیا کوی۔

زَكِيَّةًۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ ؕ لَقَدْ جِئْتَ

پاک بے دَ بدلے دَ نفس نه ، يقيناً راتلل دِ اوکړه

شَيْـًٔا نُّكْرًا ﴿۷۴﴾

کار ډير بد ته ۔

سلک :۔ هرکله چه دوی روغ اوسالم دَ دریاب نه پورے لاړل نو نوجوانان ئې اولیدل چه هغوی لوبے کولے نو خضر علیه السلام دَ دوی طرف ته لاړو او یو نوجوان ئې اونیولو او دَ هغه سرئې په کلکه سره مات کړو او بیا په زمکه پاندے ئې واچوو او ذبح ئې کړو او سرئې ترینه په لاس سره جدا کړو۔ ( پدے توجیه سره دَ مختلفو روایتونو تطبیق اوشو ) موسیٰ علیه السلام ته دا هم خلاف دَ حکم شرعی نه ښکاره شو ځکه چه پدے غلام پاندے دَ ارتداد یا دَ قصاص یا بل حق شرعی اثبات په دلیل اوګواهانو سره نه وو کړے شوے دَ دے وجے نه ئې زَكِيَّةً اوفرمائیل او هرکله چه دَ شرعے نه خلاف ښکاره شوه نو بیا ئې اعتراض اوکړو۔

فائده :۔ ۱ دا غلام دَ بعضو مفسرینو په نیز نابالغ وړوکے وُو او دلیل ئې دا دے چه ( زکیه ) وئیلے شوی دی او اکثر اهل علم وائي چه دے بالغ وُو ځکه چه روستو راځي چه په دے غلام کښې طغیان او کفر وُو ۔ او دا دَ بالغ صفت وی او دا رنګ قتل کول دَ نبی ده لره دلیل وُو چه دے مستحق دَ قتل وو۔ او نابالغ خو مکلف نه وی ۔ او په دے مقام کښې امام سرخسی په مبسوط جلد ۱ صـ۳ کښې دَ امام طحاوی نه یو محاکمه دَ قولونو ذکر کړے ده هغه دا ده چه دا غلام دَ عمر په لحاظ سره نابالغ وُو او دَ عقل په لحاظ سره بالغ وُو او په هغه زمانه کښې بلوغ په عقل سره معتبر وُو نه په عمر سره ، او دا قول غوره دے۔

فائده ۲ :۔ په اول کرت کښې ئې اُوئیل اِمرًا او په دویم ځل کښې نکرًا ذکر کړے دے پدے کښې فرق دا دے چه اِمرًا

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ
اُوئیل هغه آیا ما نه وؤ وئیلی تا ته یقینًا ته
لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿٧٥﴾
چرے طاقت نه لرے ما سره دَ صبر کولو -
قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍۢ
اُوئیل موسیٰ علیه السلام که ما تپوس اوکړو ستا نه دَ یو کار په باره کښں
بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ ۚ قَدْ
روستو دَ دینه تو ما لره مه ملګرے کوه دَ ځان سره ، یقینًا
بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا ﴿٧٦﴾
او یه رسے ته دَ طرف زما نه عذر ته -

هغه کار ته وائی چه لږ ناکاره او بد وی او نکرًا دے ته وائی چه بدی او ناکاره والے ډیر وی نو په اول کرت څه نقصان اونه شو نو امرًا ئے اُوئیل او په دویم ځل کښں نقصان اوشو ځکه چه غلام قتل کړے شو نو لفظ دَ نکرًا مناسب وؤ - او دا رنګ امرًا هغه ځائے مستعملیږی چه هیبت ئے ډیر وی اګر چه واقع نه وی - نو کشتئ چه سورئ شی نو په ټولو سورلو باندے هیبت راځی - او نکرًا هغه ځائے استعمالیږی چه فساد ئے ښکاره شی -

٧٥ :- پدے ځل ئے لَكَ ، لفظ زیات کړو دَ وجے دَ ترقی په غصه کښں -

٧٦ :- فَلَا تُصٰحِبْنِيْ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا ، کښں اشاره ده چه دوه کرته پورے دَ انسان عذر قبلولے شی لیکن په دریم ځل بیا عذر ختم شی - او حدیث کښں راغلی دی چه رحم دَ الله تعالیٰ دے وی په موسیٰ علیه السلام باندے چه صبر ئے کړیدے

فَانْطَلَقَا حَتّٰىٓ اِذَآ اَتَيَآ

نو روان شول دواړه تر دې چه کله چه راغلل (را اورسيدل)

اَهْلَ قَرْيَةِ ۨاسْتَطْعَمَآ اَهْلَهَا

بو کلی والو ته نو خوراک ئې اوغوختلو د اوسيدونکو د هغې نه

فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا

نو هغوی انکار اوکړو چه ميلمستيا وکړی دې دواړو ته نو اوموندلو دوی

فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ

په هغې کښې ديوال نزدې وو چه پريوتلې وې

فَاَقَامَهٗ ط قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ

نو نيغ ئې کړو، اوئيل موسیٰ عليه السلام که تا غوختې وې نو اخستلې به دې وې

عَلَيْهِ اَجْرًا ﴿۷۷﴾ قَالَ هٰذَا فِرَاقُ

پدې باندې مزدوری، اوئيل هغه دا وخت د جدائۍ دې

رچه دا شرط ئې نه وې لګولې) نو موږ به نور عجائبات اوريدلې وې۔

۷۷:- اِسْتَطْعَمَا، مراد د دينه طلب د ضيافت دې ليکن اطلاق د طعام ئې پرې کړې دې او روستو ئې پرې اطلاق د ضيافت کړې دې په دې کښې اشاره ده چه يو قسم خوراک مسمیٰ کيږی په طعام سره چه نسبت ئې اوکړې خوراک کوونکو ته او مسمیٰ کيږی په ضيافت سره چه نسبت ئې اوکړې شی کور والا ته۔

فائده:- دا رنګ په فقه کښې په باره د طعام الميت کښې رچه بدعت قبيحه دې) د اتخاذ الضيافة لفظ دې او د اطعام الطعام لفظ هم مستعمل دې او مراد تری نه خيرات د مړی ذکوره دې که په هر تعبير سره ذکر کړې شی او بالاتفاق

# بَيْنِيْ وَ بَيْنِكَ ج سَأُنَبِّئُكَ

| په مینځ زما او مینځ ستا کښې زر دے خبر به درکووم تا ته |
|---|

هغه بدعت او کار دَ جاهلیت دے په فقه حنفي فتح القدیر وغیره کښې هغې ته ئې بدعت سیئه ویلے دے۔
پدے آیت کښې دلیل دے چه په وخت دَ لوږے کښې طلب دَ طعام جائز دے او دا منافي نه دے دَ حال دَ نبوت سره۔
فائده :۔ موسیٰ علیه السلام چه هر کله مدین ته اورسیدو او دَ شعیب علیه السلام لونړو له ئې څاروی اوبه کړل نو دَ هغوی نه ئې طعام نه طلب کوو او دلته ئې طلب کړو۔ په دیکښې اشاره ده چه انسان یواځې چه وی نو په عزیمت باندے دے عمل کوی۔ لیکن چه ملګرو سره وی نو دَ هغوی دَ لحاظ په وجه باندے په رخصت طریقه ذِعمل کوی۔ او دا هم کیدیشي چه هلته کښې لوږه ډیره نه وه نو طلب نه وو او دلته لوږه زیاته وه نو دَ دے وجے نه ئې طلب کړو او په دے کښې حکمت دا دے چه هغه سفر دَ هجرت وو بنا وو صرف په نصرت او مدد دَ الله تعالیٰ باندے او دلته سفر دَ تادیب دے نو ډیر مشقت ئې پرے راوستلو۔
او دے کلی والو کښې بخل او لؤم وو لیکن لوے مانع دَ دوی شرک او کفر وو چه خضر علیه السلام ئې پیژندلو چه دا داعي دَ توحید دے نو دَ هغه نه ئې نفرت کوو۔
لَوْ شِئْتَ لَاتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا ، دلته دَ اعتراض دَ موسیٰ علیه السلام مراد دا وو چه دا مشرک او لئیم قوم دے (او خیال ئې دا وو چه دا دیوال دَ دوی دے) دَ دوی سره ولے احسان کوے بلکه دَ ضرورت په بناء باندے دَ دوی نه به دِ اجرت اخستلے وے۔
دویم مراد دا دے چه هر کله ته دَ دیوالو نو جوړولو طریقه باندے پوهیدے نو په دے جوړولو سره به دِ اجرت

بِتَاْوِيْلِ مَا لَمْ تَسْتَطِعْ عَّلَيْهِ
په حقیقت د هغه چه وس نه لرلو تا په هغے باندے
صَبْرًا ﴿٧٨﴾ اَمَّا السَّفِيْنَةُ فَكَانَتْ
د صبر کولو - هرچه کشتۍ وه نو وه
لِمَسٰكِيْنَ يَعْمَلُوْنَ فِي الْبَحْرِ
د مسکینانو د پاره چه مزدوری ئے کوله په هغے باندے په دریاب کښ
فَاَرَدْتُّ اَنْ اَعِيْبَهَا وَكَانَ
نو اوغوختل ما چه نقصانی کړم هغے لره څکه چه وو

اخستلے وے - او په هغے باندے به موطعام اخستلے وے طلب
کولو ته ضرورت نه وو -
س٧٨ :- دا کلام د خضر علیه السلام دے په موافق د هغه شرط چه
موسیٰ علیه السلام ویلے وو - او خضر علیه السلام جوابات د
دے وجے ورکوی چه دا گمان او نکړیشی چه خضر علیه السلام
واقعی د شرعے خلاف کار و نه کړیدی - په یکښ اشاره ده چه
خپله صفائی اوکړی -
لطیفه :- بعض مفسرینو اشاره کړیده چه موسیٰ علیه السلام
پخپلو تیر شوو حالاتو باندے غور اونکړو یعنی هیر ئے وو
کنی نو دا اعتراضونه به ئے نه کولے - هغه دا چه د کشتۍ بیچ
کیدل سره د سورۍ کیدلو نه پدے نمونه بچ کیدل د موسیٰ
علیه السلام هم وو د غرق نه کله چه مور په صندوق کښ
اچولے وو او په دریاب کښ ئے لاهو کړے وو - او معامله د
قتل د غلام داسے وه لکه چه موسیٰ علیه السلام قبطی لره
قتل کړے وو - او معامله د جوړولو د دیوال بلا اجرت داسے
وه لکه چه موسیٰ د شعیب علیه السلام لونړو له څاروی اوبه کړی
وو بغیر د طلب د اجرت نه -

وَرَآءَهُمْ مَّلِكٌ يَّأْخُذُ كُلَّ

دَ دوی مخے ته بادشاه چه نیوله یې هره

سَفِيْنَةٍ غَصْبًا ﴿٧٩﴾ وَاَمَّا الْغُلٰمُ

روغه کشتۍ په زور سره - او هر چه ځوان ووُ

فَكَانَ اَبَوٰهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِيْنَآ

نو ووُ مور او پلار دَ هغه مؤمنان نو او یریدلو موږ

اَنْ يُّرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ﴿٨٠﴾

چه او به غور ځوی دے دوا پو لره په زور سره په سرکشۍ او کفر کښ -

۷۹ :- حاصل دا دے چه په کشتۍ کښ عیب جوړول دَ ډیرو فائدو دَ پاره ووُ ځکه که دا جوړه وے نو ظالم بادشاه به په کار بیکار سره نیولے وے او دَ دے مسکینانو دَ روزۍ سبب به برباد شوے ووُ او دا مسکینان مؤحدین هم ووُ - په دے کښ اشاره ده چه دَ مسکینانو دَ مال دَ ظالمانو نه حفاظت پکار دے، او دا سنت دَ انبیاؤ علیهم السلام دے - دویم اشاره ده چه دَ ډیرے فائدے دَ پاره لږ نقصان برداشت کول پکار دی - دا رنګ دا دلیل دے چه مسکین هغه چا ته ویلے شی چه څه مال ورسره وی خو دَ نصاب نه کم وی دا رنګ دَ آمدن ذریعه وی لیکن صرف ګذاره ورباندے کیږی - لکه چه په دے کشتۍ کښ ډیر کسان شریک ووُ او صرف دَ روزۍ ګذاره یې ورباندے کیدله نو دوی په هغے سره مالدار نه شمارلے کیدل -

كُلَّ سَفِيْنَةٍ، مراد دَ دے نه هر روغه کشتۍ ده -

۸۰ :- دَ دے حاصل دا دے چه دا ځوان سرکش کافر ووُ او مور او پلار دَ دهٔ مؤمنان ووُ نو یره دا وه چه دے به په زور سره مور او پلار کافران او مشرکان کړی او دَ دهٔ نه خوا میں دَ ایمان راوړلو ختم شوے دے په دلیل دَ حدیث سره چه

فَأَرَدْنَا أَنْ يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا

نو اوغوختل مونږ چه بدل په ورکړي دوی لره رب دَ دوی

خَيْرًا مِّنْهُ زَكٰوةً وَّ أَقْرَبَ

غوره دَ ده نه په پاکئ (دَ عقیدے او دَ عمل کښ) او ډیر نزدے

رُحْمًا ﴿٨١﴾ وَ أَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ

په رحم کولو کښ (په مور او پلار باندے) او هر چه دیوال وو نو وو

(الغلام الذی قتله صاحب موسیٰ طبع کافرًا) مفهوم دا دے چه مهر زده کافر وو۔ بعضے شارحین دَ دے حدیث په معنیٰ کښ خطا شوی دی هغوی وائی چه دا غلام کافر پیدا شوے وو او دا ځکه خطا معنی ده چه دَ قرآن آیت فِطْرَةَ اللّٰهِ الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا، او دَ حدیث (كُلُّ مَوْلُوْدٍ يُوْلَدُ عَلَى الْفِطْرَةِ) سره تعارض راځی۔

او په دے کښ اشاره شوه چه هر موذی په مناسب طریقه سره ختمول پکار دی دَ پاره دَ دے چه مخلوق ئے دَ شر نه بچ شی۔ طُغْيَانًا وَّ كُفْرًا، دا دواړه صفتونه دَ هغه غلام وو نو مفعول له دے یا طغیان او کفر دَ والدینو مراد دے او په معنی دَ علی الطغیان والکفر دے۔

سـ۸۱ :- اشاره ده چه الله تعالیٰ کله دَ شر په ځائے خیر پیدا کوی یعنی دَ شر دَ لرے کولو نتیجه خیر وی او مفسرینو ذکر کړے دی چه دغه مور او پلار له دَ ده په بدل کښ الله تعالیٰ لور ورکړه او دَ هغے نکاح دَ یو پیغمبر سره اوشوه او ځوے دَ هغے نه پیدا شو او هغه هم نبی وو او بعضو وئیلی دی چه دَ هغے په نسل کښ دولس پیغمبران پیدا شول۔

لِغُلٰمَيْنِ يَتِيْمَيْنِ فِى الْمَدِيْنَةِ

دَ دوؤ هلکانو يتيمانو په ښار کښې

وَكَانَ تَحْتَهٗ كَنْزٌ لَّهُمَا وَكَانَ

او وه لاندې دَ هغې ته خزانه دَ دوی دواړو او وؤ

اَبُوْهُمَا صَالِحًا ۚ فَاَرَادَ رَبُّكَ

پلار دَ دوی نيک سړے نو اوغوختل ستا رب

اَنْ يَّبْلُغَآ اَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا

چه اورسی دوی ځوانئ خپلې ته او را اوباسی په

كَنْزَهُمَا ۖ رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ ۚ

خزانه خپله دَ وجې دَ رحمت دَ رب ستا نه

وَمَا فَعَلْتُهٗ عَنْ اَمْرِىْ ؕ ذٰلِكَ

او نه دے کړے ما دا کار په خپل علم او دَ اختيار سره، دا

تَاْوِيْلُ مَا لَمْ تَسْطِعْ عَّلَيْهِ

حقيقت دَ هغې وؤ چه وس نه لرلو تا په هغې باندې

صَبْرًا ﴿٨٢﴾ وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنْ ذِى الْقَرْنَيْنِ

دَ صبر کولو ۔ او تپوس کوی دوی ستا نه په باره دَ ذوالقرنين کښې،

ع ١٢

سلا ۸۲ :۔ حاصل دَ دے دا دے چه دَ دے کلی عام خلق اگر چه مشرکان وؤ ليکن دا ديوال دَ مؤحدينو وؤ او هغه يتيمان دی او دَ دے لاندے خزانه وه که دا ديوال غورځيدلے وے نو هغه خزانه به ښکاره شوی وے او ظالمانو دَ دے کلی به تالا کړے وے ۔ نو دَ يتيمانو دَ مال حفاظت دَ ظالمانو نه دا دَ انبياؤ کار دے ۔ اوس هم ډير ظالمان شته چه دَ مسکينانو او دَ يتيمانو مالونه په ظلم سره خوری ۔ اهل حق علماؤ باندے

لازم دی چه دا مسکینان او یتیمان ده دغه ظالمانو د لاس نه بچ کړی۔
وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا ، دا علت دے د حفاظت د خزانے د دغه یتیمانو یعنی جواب د سوال دے سوال دا دے چه دنیا کښ ډیر یتیمان شته او حال دا چه د هغوی د مال حفاظت شرعًا لازم نه دے۔
حاصل د جواب دا دے چه مسئله دا ده چه اولاد نابالغ په حکم د والدینو کښ وی په احکام دنیویه کښ۔ یعنی چه والدین ئې کافر وی نو دا اولاد به هم تبعًا په احکامو دنیویه کښ کافر وی۔ او د هغوی د مال حفاظت لازم نه دے لیکن دا یتیمان چه وو د دوی پلار موحد مؤمن وؤ نو دوی هم تبعًا مؤمنان وؤ۔ د دے وجے نه د دوی د مال حفاظت شرعًا لازم دے۔ بعضے مبتدعین د دینه نه استدلال کوی چه د دے آیت نه وسیله ثابت شوه۔
جواب دا دے چه په دے کښ وسیله شرکیه او بدعیه نه ثابتیږی بلکه د مسئلے شرعی په وجه سره د دوی د مال حفاظت اوکړے شو۔ او دینه وسیله وئیل جهالت دے۔ هاں الله تعالی کله د پلو صالح په وجے سره د هغه په اولاد باندے او د هغه په تابعدارئ کونکو رحم او برکت کوی۔
وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ، په دے کښ د شبهے اصل جواب دے لکه چه ابتدا د دے حصه کښ بیان شول یعنی که څوک شک یا استدلال کوی چه خضر علیه السلام د کشتئ او د غلام او د خزانے یعنی د راتلونکے حالاتو نه څنګه خبر وؤ۔ نو جواب اوشو چه دا هغه په خپل اختیار او علم سره نه دی کړی۔
فائده ۱ :- آیت ۷۸ کښ تستطع په تا سره ذکر دے او په دے آیت کښ تسطع دے بغیر د تا نه ، د دے حکمت دا دے چه هر کله جوابو نه نه وو شوی نو په موسیٰ علیه السلام

قُلْ سَأَتْلُوا عَلَيْكُم مِّنْهُ ذِكْرًا ﴿٨٣﴾

ته اُووایه خامخا بیا نوم په تاسو باندے دَهغه نه څه خبرے دَ نصیحت۔

بانـدے ثقل وؤ ، زیادت دَ حرفونو دلالت کوی په ثقل معنوی باندے ۔او هر کله چه جوابونه اوشول نو په موسیٰ علیه السلام باندے تخفیف اوشو نو په حروفو کښ تخفیف پدے باندے دلالت کوی۔

فائده :۔ علا دَ کشتۍ په باره کښ اردتُ ذکر دے او دَ غلام په بدل کښ خیر ورکولو دَ باره اردنا ذکر دے او دَ جدار دَ اصلاح په باره کښ ارادربك ذکر دے ؟ دَ دے حکمت دا دے چه په کشتۍ کښ صرف دَ عیب پیدا کولو ذکر دے نو خضر علیه السلام دَ هغے نسبت کول الله تعالیٰ ته مناسب او نه گنړل نو صرف ځان ته یې نسبت اوکړو او دَ جدار جوړول صرف خیر دے نو دَ هغے نسبت دَ الله تعالیٰ سره مناسب دے ۔او هرچه دَ غلام قتل او دَ هغے بدل کښ دَ خیر اولاد ورکول په دے کښ په یو جهت سره خیر دے او بل جهت سره شر دے نو دَ هغے نسبت یې په طریقه دَ اشتراك سره اوکړو)۔

سـ۸۳ :۔ خلاصه :۔ دَ دے آیت نه تر سـ۱۰۱ آیت پورے شلورمه حصّه ده پدیکښ جواب دَ شبهے دَ هغه چا دے چه دلیل نیسی په احوالو دَ ذوالقرنین سره په قدرت او تصرفاتو دَ هغه دا سوال هم مشرکانو او یهودیانو پدے وجے سره کړے وؤ چه په هغوی کښ دَ ذوالقرنین کرامات مشهور وؤ او دا دوی دَ هغه په باره قدرت گنړلو۔

حاصل دَ جواب دا دے چه ذوالقرنین پدے ټولو امورو کښ الله تعالیٰ ته محتاج وؤ دَ دے وجے نه قاصر وؤ دَ بعض لغاتو نه په هغے نه پوهیدو لکه په سـ۹۳ کښ راځی او محتاج وؤ امداد دَ خلقو ته لکه په سـ۹۵ کښ۔ بیا تخویف اخروی دے دَ سـ۹۸ نه تر سـ۱۰۱ پورے۔

تفسیر :۔ په دے آیت کښ سوال او جواب دے په باره دَ ذوالقرنین

إِنَّا مَكَّنَّا لَهُۥ فِى ٱلْأَرْضِ وَءَاتَيْنَٰهُ

بیقینًا طاقت ورکړے وو موږ هغه لره په زمکه کښې او ورکړے وو موږ هغه ته

مِن كُلِّ شَىْءٍ سَبَبًا ﴿٨٤﴾ فَأَتْبَعَ

دَ هر قسم نه سامان دَ ضرورت - نو روان شو

کښې - ذِكْرًا ، بیان دَ واقعے دَ ذوالقرنین ئې مسمی کړو په ذکر سره ځکه چه په دیکښې تذکیر او نصیحت دے - او ذوالقرنین په نوم کښې دوه قولونه دی مشهور قول دَ مؤرخینو دا دے چه دَده نوم اسکندر وو او فارسی وو او دَ ابراهیم علیه السلام سره ئې یو ځائے طواف دَ بیت الله کړے وو او خضر علیه السلام دَ هغه وزیر وو او په دے وجه سره دَ خضر علیه السلام دَ واقعے نه روستو دَ ده واقعه ذکر کوی او دویم قول دا دے چه دَده نوم سائرس اعظم وو او دَ عیسیٰ علیه السلام نه ۵۵۹ کاله مخکښې تیر شوے دے - او دا ئے ابوالکلام آزاد په تفسیر ترجمان القرآن کښې دَ تاریخ په واسطے سره ثابت کړے دے (او دا رنګه اطلس القرآن کښې) هاں کوم اسکندر چه ابن فیلبس المقدونی یونانی او رومی دے نو دَ هغه وزیر ارسطو کافر وو هغه دلته مراد نه دے - دا ئے شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله په کتاب الرد علی المنطقیین کښې لیکلے دی - او دَ ذوی القرنین په لقب کښې تورلس اقوال دی چه قرطبی ذکر کړی دی - غوره قول دا دے چه دَ دنیا دوه بادشاهئ لوے دَ ده دَ تسلط لاندے راغلے وے یو روم او بل فارس -

۸۴ :- په دیکښې اشاره ده چه دَ هغه تمکین او دَ هغه هر قسم اسباب دا دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه وو -

تمکین فی الارض ، نه مراد په زمکه کښې طاقت او بادشاهی ورکول دی چه په دشمنانو باندے غالب وی -

وَءَاتَيْنَٰهُ مِن كُلِّ شَىْءٍ سَبَبًا ، نه مراد اسباب او ذریعے دی دَ ضروریاتو دَ فتح او دَ غلبے او هر طرف ته دَ رسیدلو دَ پاره او په

سَبَبًا ﴿٨٥﴾ حَتّٰىٓ اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ

په لار (دَ مغرب طرفته)۔ تر دے چه اورسیدلو ځائے دَ پریوتو دَ

الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِيْ

نمر ته او موندلو ئے هغه چه پټیدلو په دریاب

عَيْنٍ حَمِئَةٍ وَّ وَجَدَ عِنْدَهَا

دریاب تور کښ او اوموندلو دَ هغے په خوا کښ

قَوْمًا ؕ قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِمَّآ

یو قوم لره، اُوئیل مونږ اے ذوالقرنینه یا

اَنْ تُعَذِّبَ وَ اِمَّآ اَنْ تَتَّخِذَ

عذاب ورکړه دوی له او یا دا چه اونیسه

فِيْهِمْ حُسْنًا ﴿٨٦﴾ قَالَ اَمَّا مَنْ ظَلَمَ

دَ دوی په باره کښ ښه لار۔ دهٔ اُوئیل هرڅوک چه په ظلم (شرک) کښ پاتے شو

حرف دَ من سره اشاره اوکړه چه بعضے اسباب وو۔

۸۵:۔ دَ دے یو معنیٰ دا ده چه روان شو په یو لار باندے یعنی مغربي طرف ته او دا کرځیدل دَ ده هجرت دے دَ پاره دَ غالب کولو دَ دین حق۔ نو روان وو مغرب طرف ته او هر کلی کښ دعوت دَ حق ئے ورکوو۔ او چا چه به مخالفت کوؤ نو دَ هغه سره به ئے جنګ کوو۔ دویمه معنی دا ده چه استعمال ئے شروع کړو دَ بعضے اسبابو او ذرائعو طرف دَ مغرب ته۔

۸۶:۔ مراد دَ مغرب الشمس نه اخری مقام دَ غروب الشمس نه دے او نه دا مکان لري او ذلیل پرے دا دے۔

تَغْرُبُ فِيْ عَيْنٍ حَمِئَةٍ، یعنی نمر خو دَ زمکے نه په څو چنده سره غټ دے وئیلے شوے دی چه نمر دَ زمکے نه یو سل پنځوس چنده زیات دے نو په یو سمندر کښ هغه څنګه غائب

فَسَوۡفَ نُعَذِّبُهٗ ثُمَّ يُرَدُّ

نو زر به عذاب ورکړو هغه لره (به دنیا کښ) بیا به پیش کړې شي

اِلٰى رَبِّهٖ فَيُعَذِّبُهٗ عَذَابًا نُّكۡرًا ﴿۸۷﴾

خپل رب ته (پس د مرګه) نو عذاب به ورکړي هغه ته عذاب ډیر سخت.

کیدے شي - بلکه مراد دا دے چه د بحر اسود کنارے ته اورسیدو هلته چه انسان نمر ته ګوري نو ظاهر کښ معلومیږي چه دا نمر په سمندر کښ غا ئبیږي.

عَیۡنٍ حَمِئَةٍ ، د دے نه مراد بحر اسود دے او دا قوم او ملک د یونان مراد دے او دیته لیبیا (ترکي) وئیلے کیدلو د فارس نه تر دغه ملک پورے تقریبًا څوارلس سوه میله فاصله وه او دا د یونان مرکز وو د هغې بادشاه په هغه وخت کښ کردسیس وو.

د ذوالقرنین په نبوت کښ اختلاف دے څوک چه وائي چه نبي وو.

نو قُلۡنَا ، په طریقه د وحي سره دے او څوک چه وائي ولي وو نو قلنا په طریقه د الهام سره دے.

اِمَّآ اَنۡ تُعَذِّبَ وَاِمَّآ اَنۡ تَتَّخِذَ فِيۡهِمۡ حُسۡنًا ، مراد دا دے چه هغه له ئے پوره تمکین او اختیار ورکړو په باره د هغه قوم کښ ، او عذاب نه مراد قتل کول او قید کول دي او د حسنًا نه مراد احسان پریخودل یا په فدیه سره معاف کول دي لکه پدے قول کښ - ( اِمَّا مَنًّا وَّ اِمَّا فِدَآءً )

ف۸۷ :- یعني ذوالقرنین د عدل نه کار واخست او وئیل ئے چه څوک پس د دعوت د توحید نه په کفر او شرک باندے باقي وي نو هغوی له به د قتل او قید کولو سزا په دنیا کښ ورکووم او آخرت کښ به الله تعالی سخته سزا ورکوي.

وَاَمَّا مَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا

او هر چا چه ایمان راوړو او عمل ئې اوکړو د سنت برابر

فَلَهٗ جَزَآءَ ࣙالْحُسْنٰى ۚ وَسَنَقُوْلُ

نو هغه لره جنت دے د جزا په لحاظ ، او ضرور وایو به

لَهٗ مِنْ اَمْرِنَا يُسْرًا ﴿۸۸﴾ ثُمَّ

ده ته د کار د دین زموږ نه آسان ۔ بیا

اَتْبَعَ سَبَبًا ﴿۸۹﴾ حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ

روان شو په بله لار باندے ۔ تر هغے چه کله اورسیدو

مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ

ځائے د ختلو د نمر ته نو اوئې لیدلو چه راختلو

عَلٰى قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَلْ لَّهُمْ

په داسے قوم باندے چه ته وه ورکړے موږ هغوی ته

س۸۸ :۔ او چا چه توحید او منو او په عمل کښې اخلاص او اتباع د سنت اوکړه نو هغه لره جزاء د حسنیٰ ده ۔
او الحُسْنٰى ، نه مراد جنت دے په آخرت کښې ۔
جَزَآء ، تمیز دے یا حال دے او الحسنیٰ مبتدا مؤخر ده او فله خبر مقدم دے ۔
یُسْرًا ، یعنی دنیا کښې په ده باندے تکلیف بالایطاق نشی کیخودلے ځکه چه لا یکلف الله نفسا الا وسعها ، او الدین یسر
س۸۹ :۔ بیا روان شو په بله لار ۔ یعنی د مشرق طرف باندے او هر کلی کښې دعوت د دین ئې کولو ۔

مِّنْ دُوْنِهَا سِتْرًا ﴿۹۰﴾ كَذٰلِكَ

د نمر څخه ته هیڅ پرده. دغسې ( کار یې اوکړو ) د دوی سره په شان د مخکښې قوم ) ،

وَقَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ﴿۹۱﴾

او یقیناً راګیر کړی وو موږ هغه سامانونه ، چه د ده سره وو په علم خپل کښې .

ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا ﴿۹۲﴾ حَتّٰٓى اِذَا

بیا روان شو په بله لار باندې . تر دې چه

سنه :- دلته هم مراد د مطلع شمس نه عین مشرق نه دے ځکه چه هغې ته رسیدل امکان نه لری بلکه داسې ځائے ته او رسیدو چه آبادی ختمه وه او مطلع شمس ته نزدے علاقه وه او داخلق وحشي قبائل وو او مکران او د یاختریا اوسیدونکی وو .

لَمْ نَجْعَلْ لَّهُمْ مِّنْ دُوْنِهَا سِتْرًا ، یعنی آبادی نه وه او نه وے چه دوی پرے پټ شوے وے اکثر به دوی په غارونو کښې اوسیدل . بعضو وئیلی دی چه دوی به جامے هم نه اغوستلے د وحشي ځناورو په شان وو .

سلهٔ كَذٰلِكَ ، مراد دا دے چه دلته یې داسې حکم اوکړو لکه څنګه چه په مغرب الشمس کښې کړے وو .

وَقَدْ اَحَطْنَا ، اشاره ده چه د ده اسباب او مواد دومره ډیر وو چه یو الله تعالیٰ د هغې په حال علم لرلو .

بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا ، د دے نه مراد لښکرے او سامان جنګ وغیره وو .

سلهٔ ۹۳ :- السَّدَّيْنِ ، دا تثنیه د سد ده په اصل کښې دیوال ته وئیلے دلته د دے نه مراد دوه غرونه دی او په دے نوم سره د دے وجے نه مسمی شوی دی چه هغه هم د یاجوج ماجوج د بندش د پاره قدرتی دیوالونه دی صرف مینځ یې خالی وو . دا قوم د ذوالقرنین په ژبه نه پوهیدل ، دا دلیل دے چه ذوالقرنین په هر څه

بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ

اورسیدو مینځ دَ دوه غرونو ته او یې موندلو

مِنْ دُوْنِهِمَا قَوْمًا لَّا يَكَادُوْنَ

دَ هغې نزدے یو داسے قوم چه نه وو نزدے

يَفْقَهُوْنَ قَوْلًا ﴿٩٢﴾ قَالُوْا

چه پوهه شوے وے په خبرو باندے - دوی اُوئیل رَدَ ترجمان په واسطه)

يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِنَّ يَاْجُوْجَ

اے ذوالقرنین یقیناً یا جوج

وَمَاْجُوْجَ مُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ

او ماجوج ورانے کوونکے دی پهٔ دے ملک کښی

فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلٰٓى

نو آیا راجمع کړو تا لره خرچه چه

علم نه لرلو تو څه رنګه دَ الله تعالیٰ سره شریک جوړیدا سے شي۔

قَوْمًا، دا قوم دوه قسمونه وو یو په مشرق دَ بحر خذار باندے چه هغوی ته کا سپین وئیلے کیدل او بل قسم ته کولشي وئیلے کیدل چه دَ کاکیشا سره نزدے وو۔ نو معلومه شوه چه ټوله بادشاهي دَ ذوالقرنین دَعرب نه تر بحر اسود پورے او دَ ایشیا کوچک نه تر بلخ پورے وه دَ ایشیا اکثره علاقه دَ هغه دَ بادشاهۍ دَلاندے داخل وه او دارالخلافت دَ ده همدان وو په هغه وخت کښ هغے ته هګ متانه وئیلے کیدلو۔ اوس ورته اکبتانه وئیلے شي۔

أَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿۹۴﴾

جوړ کړې ته په مينځ زموږ او د دوی کښې ديوال -

قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ

هغه ووئيل هغه چه طاقت راکړی دے ماله په هغې رب زما غوره دے

فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ

نو مدد او کړئ زما سره په قوت (د سړو سره) جوړ به کړم ستاسو

وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿۹۵﴾ آتُونِي زُبَرَ

او د دوی تر مينځ ديوال - راوړئ ماته ټکړے

۹۴:- يَاجُوجَ وَمَاجُوجَ ، دوه قومونه د اولاد د يافث بن نوح عليه السلام نه دی او د يافث په اولاد کښې ترک ، صقلاب ، چين وغيره هم داخل دی، او دا ټول مبادی د فساد دی ليکن د ياجوج ماجوج فساد د دوی نه زيات دے او د يورپ په اصطلاح کښې دوی ته ګاګ ميګاګ وئيلے کيږی - او د دوی په باره کښې احاديث صحيحه راغلی دی - او د دوی راتلل د قيامت د قريبی علاماتو نه دی او کله چه دوی د ديوال نه راوځی نو کيدے شی چه چين ، روس وغيره ټول مفسدان په د دوی په ملګرتيا کښې وی ځکه دا ټول په نسبت کښې شريک دی او په ټول عالم کښې په سوا د حجاز مقدس نه فساد خور کړی.

فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَىٰ أَنْ تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ، په دے کښې اشاره ده چه رعيت له پکار دی چه د اجتماعی فائدے د پاره د بادشاه نه مدد او غواړی.

۹۵:- په دے آيت کښې اشاره ده چه صالح بادشاه د رعيت نه بلا ضرورت مالونه نه اخلی - ځکه چه په دے کښې د رعيت تخريب دے هاں د هغوی نه بدنی مقوونت طلب کول جائز دی د ضرورت مطابق -

الْحَدِيْدِ ؕ حَتّٰۤى اِذَا سَاوٰى بَيْنَ

رجوړے شوي ټوټې د اوسپنې ، تر دے چه برابرے کړے يې په مينځ د

الصَّدَفَيْنِ قَالَ انْفُخُوْا ؕ حَتّٰۤى

سرونو د غرونو کښ دوه اوچتو، (بيا ئې) اوويل پوکئ (په دې باندې) ، تر دے پورے

اِذَا جَعَلَهٗ نَارًا ۙ قَالَ اٰتُوْنِیْۤ

چه هغه ديوال يې د اور په شان کړو دوه اوچتو (بيا ئې) اوويل راوړئ ما ته

اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ؕ ﴿۹۶﴾ فَمَا اسْطَاعُوْۤا

چه وا چوم په دے باندے ټانبه (ويلے کړيشوے) . نو دوی وس نه لرې

فَاَعِيْنُوْنِیْ بِقُوَّةٍ ، مراد د قوت نه دنيوي دی رمز دوران) او دا طلب د امداد د لاندے د اسبابو نه دليل دے په عجز د ذوالقرنين باندے .

سَدًّا ، مطلق ديوال ته ويلے کيږي او رَدْمًا ، ردم هغه ديوال ته وائي چه اجزاء يې د يو بل سره متصل کړے شي چه ښه مضبوط شي او په دے ديوال جوړولو کښ اشاره ده چه په بادشاه لازم دی چه د خپل رعيت حفاظت اوکړي او د ملک نه د مفسدانو سدباب اوکړي او په خپل ملک کښ امن راولي .

۹۶ ـ د اوسپنې بلاکونه يې جوړ کړل هغه يې د يو بل د پاسه په اسے طريقه سره سواره کړل چه د غرونو د سرونو سره ديوال برابر شو ـ نو ټانبه يې ويلے کړے وه او دا اوسپنې يې په اور سره ښه سرے کړے نو ويلے کړے ټانبه يې په درزونو د هغے کښ واچوله نو هر کله چه ديوال سوړ شو نو ټوله ټانبه ئې هغې په مينځ کښ منجمده شوه او کلک ديوال جوړ شو ـ تاريخ والو ليکلي دی چه د کاکيشيا نزدے په دره داريال کښ يو زوړ ديوال دے او هغے ته سد حديدي ويلے کيږي ابن جرير د بعضو بادشاهانو واقعات ذکر کړي دی چه هغوی د دے په تفتيش کښ کسان ليږلی وو

أَنْ يَّظْهَرُوْهُ وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ

چه را اوخیژی په هغې (دیوال) او نه طاقت لری دَ هغې

نَقْبًا ﴿٩٧﴾ قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ مِّنْ

دَ سوری کولو۔ اُوئیل هغه دا خاص رحمت دے دَ طرف

رَّبِّيْ ۚ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّيْ

دَ رب زما نه پس هر کله چه راشی وعده دَ رب زما

جَعَلَهٗ دَكَّآءَ ۚ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّيْ

اوگرځوی به دا هموار ه دَ زمکے سره او دا وعده دَ رب زما

حَقًّا ﴿٩٨﴾ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ

یقینی دہ ۔ او پریے به ږدو بعضے دَ دوی

او هغوی لیدلے دے ۔ الصَّدَفَيْنِ، صدف سر دَ غرته وئیلے شی ۔

انفخُوْا، یعنی اور ورته بل کړئ او ورته دَ پوکو کولو اسباب ئے جوړ کړے وو چه هغے ته بټئ وئیلے شی ۔

نَارًا، مراد تری نه گالښتار دے پشان دَ اور ۔

س٩٧ :- یاجوج ماجوج په هغے باندے نشو ختلے دَ ډیر اوچتوالی دَ وجے نه او سوراخ هم پکښ نشی کولے چه بیهر تری نه راوځی دَ ډیر مضبوطوالی دَ وجے نه ۔

س٩٨ :- دا دَ صالح انسان قول وی چه هغه دَ دنیا په څیزونو باندے تکبر نه بلکه دَ الله تعالیٰ احسان ئے گنړی او دَ هغے دَ فنا کیدلو عقیده لری او په قیامت باندے ایمان لری ۔ په خلاف دَ هغه کافر چه په دے سورت کښ دَ رجلینو قصه کښ ذکر وو چه دَ ذوالقرنین په نسبت سره لږ مالدار وو لیکن په خپلے مالدارئ ئے تکبر کوو او دَ فنا او دَ قیامت نه ئے انکار کوو ۔

يَوْمَئِذٍ يَّمُوْجُ فِيْ بَعْضٍ

پدغه ورځ چه پرېږدو به دوی (ورننوځي به) په بعضو کښې

وَّنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَجَمَعْنٰهُمْ

او پوکے به اوکړېشي په شپیلۍ کښې نو راجمع به کړو دوی

جَمْعًا ﴿۹۹﴾ وَّعَرَضْنَا جَهَنَّمَ

په جمع کولو سره - او ښکاره به کړو جهنم

يَوْمَئِذٍ لِّلْكٰفِرِيْنَ عَرْضًا ﴿۱۰۰﴾

پدغه ورځ کافرانو ته ښدنه ښکاره -

سوال :- د حدیث صحیح مضمون دا دے چه د یاجوج ماجوج په هغه دیوال کښې د دوو ګوتو د مینځ په مقدار سورے کړے شوے دے - او په قرآن کریم کښې ذکر دی چه (وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ نَقْبًا) ؟
نو جواب دا دے چه په هغه حدیث د بخاری کښې لفظ د فتح (په مجهول صیغه سره دے) نو هغه الله تعالیٰ کولاؤ کړے دے یاجوج ماجوج نه دے سورے کړے - او کله چه قیامت نزدے شی نو الله تعالیٰ به دیوال باندے دوی له قدرت ورکړی او هغه به د زمکے سره هموار کړی او دوی به دا فساد د عالم د پاره بهر راووځي لکه چه ورپسے آیت کښې دیته اشاره ده -
سـ۹۹ :- بَعْضَهُمْ ، نه مراد یاجوج ماجوج دی هرکله چه دوی د دیوال نه آزاد کړے شی او دا رنګ په سورة انبیاء سـ۹۶ کښې هم دی - او دویم قول دا دے چه مراد ترینه عام انسانان دی چه حیران او پریشان به وی او شر او فساد به کوی بیا به قیامت قائم شی -
سـ۱۰۰ :- د دخول د جهنم نه وړاندے ښکاره کول سبب د سخت والی د عذاب دے -

الَّذِيْنَ كَانَتْ اَعْيُنُهُمْ فِيْ غِطَاۤءٍ

دا هغه کسان دي چه وه ستر‌ګې د دوی په پرده کښې

عَنْ ذِكْرِيْ وَكَانُوْا لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ

د ذکر زمانه او وؤ دوی چه وس یې نه لرلو

سَمْعًا ﴿١٠١﴾ اَفَحَسِبَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا

د اوریدلو د حق - آیا ګمان کوی کافران

اَنْ يَّتَّخِذُوْا عِبَادِيْ مِنْ دُوْنِيْۤ

چه اونیسي بندګان زما سوا زمانه

اَوْلِيَاۤءَ ؕ اِنَّاۤ اَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ

مددګاران ، یقینًا تیار کړیدے مونږ جهنم

لِلْكٰفِرِيْنَ نُزُلًا ﴿١٠٢﴾ قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ

کافرانو لره تیاره میلمستیا - اُووایه آیا خبر درکړم تاسو ته

ف۱۰۱ - په دے آیت کښې سبب د عذاب ذکر دے چه هغه دا دے چه د ضد او د تعصب د وجے نه د دوی ستر‌ګے د حق د دلیلونو نه ړندے وے او غوږونه د دوی د حق د اوریدلو نه کاڼه وؤ - لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَمْعًا ، یې ځکه اوفرمائیلو چه په دوی باندے حق خیره اوریدل داسے بوج وؤ چه د هغے د پورته کولو طاقت یې نه لرلو -

ف۱۰۲ - خلاصه :- د دے ځائے نه تر آخره د سورت پورے خاتمه ده - په دیکښې زجر او تخویف شدید دے مشرکین بالعباد لره چه په سبب د تیر شوے شبهاتو دوی د الله تعالی سره شریکان جوړوی هغه حیاد فقیران (اصحاب کهف) دی او پیغمبران (موسی او خضر علیهما السلام) دی او بادشاهان دی (لکه ذوالقرنین) د ف۱۰۳ نه تر ف۱۰۶ پورے - او بشارت دے توحید

بِالْاَخْسَرِيْنَ اَعْمَالًا ﴿۱۰۳﴾ اَلَّذِيْنَ

په باره د تاوانی عمل والا - دا هغه کسان دی

ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

چه برباد دے عمل د دوی په ژوند د دنیا کښ

وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ

او دوی گمان کوی چه یقیناً دوی خائسته

والو ته په ۱۰۸ او ۱۰۸ کښ - بیا رد دے په شرک فی العلم بانده په ۱۰۹ کښ بیا اختتام د سورت دے په ذکر د ارسال الرسول او د توحید سره ۱۱۰ کښ ربط- هر کله چه شبهات د مشرکینو تفصیلاً دفع کړے شول چه بندګان او جنات قدرت او تصرف د الوهیت نه لری او علم د غیب نه لری نو اوس پدے آیتونو کښ تفریع ده په رد د شرک فی التصرف اولاً او بیا رد د شرک فی العلم سره -

تفسیر:- او په دے آیت کښ لفظ د عبادی صریح دے چه ډیر مشرکانو د الله تعالیٰ سره بندګان شریک جوړ کړی دی او پدے آیت کښ پداسے خلقو د کفر حکم دوه کرته کړے شوے دے -

اَوْلِيَآءَ ، نه مراد واکدار او اختیارمند د نفع او ضرر دی یا مراد د دینه معبودان دی -

نُزُلًا ، دا ئے په طریقه د تهکم سره وئیلی دی -

۱۰۳ ، ۱۰۴ :- په دے آیتونو کښ رد دے په هغه خلقو چه اعمال د شرک او د بدعاتو کوی او دعوی داکوی چه دا نیک اعمال دی او په هغے کښ ډیر محنت کوی لیکن دغه اعمال د دوی د الله تعالیٰ په نیز برباد دی نو دوی ته تاوان والا وئیلے شوی دی - او پدے آیتونو کښ ټول اهل شرک او ټول مبتدعین داخل دی چه عملونه د شرک او د بدعت سبب د

صُنْعًا ﴿۱۰۴﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا

عمل کوی۔ دا هغه خلق دی چه کفر ئے کړیدے

بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ

په آیاتونو دَ رب خپل او په ملاقات دَهغه نو برباد دی

أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ

عملونه دَدوی نو او به نه دروو دَ دوی دَپاره

يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا ﴿۱۰۵﴾ ذَٰلِكَ

دَ قیامت په ورځ هیڅ تول۔ دا (چه ذکر شوه)

ثواب او دَ اجر کنړی۔

ضَلَّ، مراد دَدے ضلال نه بربادی دی ده او سبب دَ بربادئ په مخکښ آیت کښ ذکر شوے دے چه بزرګان ئے معبودان ګڼړلی دی۔

يُحْسِنُونَ صُنْعًا، دوی وائی داخو دَ اولیاؤ احترام او عزت دے او دا وسیلے او شفعاء دی او دا محبت دے وغیره نورے بهانے کوی۔

۱۰۵۔ په دے کښ په دریم کرت سره حکم دے په کفر دَ دغه کسانو، او اشاره ده چه دا کفر سبب دَ حبط دَ عملونو دَ دوی دے۔

بِآيَاتِ رَبِّهِمْ، مراد ترینه آیاتونه دَ توحید دی یعنی دَ توحید او دَ قیامت نه انکار کوی۔ دا چه دَ دوی به څه قدر او عزت نه وی او اجر و ثواب ئے نشته او حدیث صحیح دَ بخاری کښ دا مضمون ذکر شوے دے چه دَ قیامت په ورځ یو غټ سوړب سړے راوستلے شی او دَ الله تعالیٰ په نیز به دَ ماشی دَ وزرو سره هم برابر نه وی۔ دویم قول دا دے چه دَ دے کافرانو حسنات به نه وزن کیږی دَ دے وجے نه چه حسنات ئے برباد دی او په دے کښ اشاره شوه چه دَ بعضے کسانو دَپاره میزان به نه وی او بغیر

جَزَآؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوْا

سزا دَ دوی ده جهنم په وجه دَدے چه دوی کفر کړے

وَاتَّخَذُوْٓا اٰيَاتِيْ وَرُسُلِيْ هُزُوًا ﴿۱۰۶﴾

او نیسی دوی آیاتونه او رسولان زما ټوقے۔

إِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ

یقینًا هغه کسان چه ایمان ئے راوړے دے او عملونه ئے کړی دی دَ سنت برابر

كَانَتْ لَهُمْ جَنّٰتُ الْفِرْدَوْسِ

شته دوی لره جنتونه دَ فردوس

نُزُلًا ﴿۱۰۷﴾ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا لَا يَبْغُوْنَ

میلمستیا تیاره۔ همیشه به وی دوی په هغے کښ نه به غواړی دوی

دَ وزن دَ اعمالو نه جهنم ته به داخلیږی۔ لکه دَ مومنانو بعضے کسان به بغیر دَ حساب نه جنت ته داخلیږی۔

۱۰۶ :- په دے کښ ئے دوه اسباب دَ ماقبل دَپاره ذکر کړل اول کفر او شرک دَ دوی او دویم دَ الله تعالیٰ آیاتونه او دَ رسول ﷺ نو سنت بے فائدے او عبث گنړل۔ او همیشه دَ شرک او دَ بدعاتو سبب هم دا دوه دی چه قرآن او سنت نه استدلال نه کوی۔

۱۰۷ ، ۱۰۸ :- په دے آیتونو کښ بشارت دے ایمان والو لره۔

لَا يَبْغُوْنَ عَنْهَا حِوَلًا ، کښ اشاره ده چه په جنت کښ هیڅ تکلیف نشته او نه پکښ هیڅ کمے شته۔ نو دَ دے وجے نه بل ځائے ته تلل نه غواړی او فردوس اعلیٰ او افضل جنت دے او بعضے روایاتو کښ دی چه په دے کښ به دعوت کوونکی دَ حق وی لکه اصحاب کهف او موسیٰ علیه السلام

عَنْهَا حِوَلًا ﴿۱۰۸﴾ قُلْ لَّوْ كَانَ
دَ هغے نه بدلیدل بل طرف ته. او وایه که چرے شی
الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمٰتِ رَبِّيْ
دریابونه سیاهی دَپاره دَ لیکلو دَ کلمو دَ رب زما
لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ اَنْ تَنْفَدَ
نو خامخا ختم به شی دریابونه مخکښ دَ ختمیدلو
كَلِمٰتُ رَبِّيْ وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهٖ
دَ کلماتو دَ رب زما اګرچه راوړو مونږ دَ هغے پشان
مَدَدًا ﴿۱۰۹﴾ قُلْ اِنَّمَآ اَنَا بَشَرٌ
نوره زیاتی سیاهی. او وایه یقینًا زهٔ بنده یم

وخضر علیه السلام او ذوالقرنین دے قولو په جدا جدا طریقے
سره دعوت کړیدے.

۱۰۹:- په دے کښ رد دے په شرک فی العلم باندے او جواب
دَ شبهے دَ مشرکینو دے چه دوئ وائ چه دَ رسول سره علم
دَ تورات او دَ انجیل او قرآن وی او په هغے کښ علم دَ الله تعالیٰ
دے نو معلومه شوه چه رسول سره کلی علم دے او دا اسے دعوی یهودیانو د ځان دپاره کړیوه
نو جواب او شو حاصل دَ جواب دا دے چه دَ الله تعالیٰ دَ علم هیڅ
انتها نشته او دَ بندګانو علم منتهی وی؟

کَلِمٰتُ رَبِّیْ : نه مراد جزئیات دَ علم دَ الله تعالیٰ دی او دَ هغه
تفصیلی صفتونه دَ الوهیت او حکمتونه دَ کلام دَ هغه دی او دَ
هغے هیڅ حد نشته او دا رنګ په سورة لقمان ۲۷ کښ هم دی.
او ربط یئے دَ مخکښ سره دا دے لکه چه دَ جنت دَ نعمتونو انتها
نشته دا رنګ دَ کلمات الٰهیه انتها هم نشته دے. او هر کله
په سورة لقمان کښ دَ لقمان علم او حکمت ذکر وو نو وهم
دا وو چه دَ هغه علم دَ الله تعالیٰ دَ علم سره برابر کیدیشی نو په

مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ

ستاسو پشان (محتاج) او وحی کیږي ماته چه یقیناً حقدار د بندګۍ ستاسو

إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۚ فَمَن كَانَ يَرْجُو

الله یو دے نو څوک چه امید لري

لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا

د پیش کیدلو رب خپل ته نو عمل دے کوي عمل

صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ

د سنت برابر او شریک دے نه جوړوي په بندګۍ

رَبِّهِ أَحَدًا ﴿١١٠﴾

د رب خپل کښې هیڅوک لره.

هغه سورت کښې ئے د نفی د تاکید د پاره اوګوه دریا بونه ذکر کړی دی.

۱۱۰ :- په دے آیت کښې اولًا نفی د علم غیب ده د نبی صلی الله علیه وسلم نه چه هغه بشر دے په علم غیب باندے علم نه لري. او اثبات د صدق رسول دے او اختتام دے په مسئله د توحید او رد د شرک فی العبادة سره او دا تفریع ده په کل سورت باندے.

أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ، معلومه شوه چه خلاصه د وحی صرف توحید دے.

وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ، هرکله چه په شرک کښې مراتب مختلفه وی یعنی شرک دون شرک وکفر دون کفر، د دے وجے نه دا آیت د مفسرینو په نیز باندے شرک حقیقی او شرک خفی یعنی ریا او سمعه ته شامل دے بلکه عدم اخلاص او طلب د اجرت په عبادت باندے ټولو ته شامل

دے ، لکه مفسر آلوسی تصریح کړے ده چه ځوک ختم د قرآن د دنیا مقصد دپاره کوی او اجرت پرے اخلی نو ورکوونکے او اخستونکے دواړه گنهگار دی او دا رنگ د یرو فقهاؤ پدے باندے تصریح کړے ده۔
او هرکله چه په دے سورة کښں مقصد ردکول په شرک بالعبادة باندے دے د دے وجے نه لفظ د احداً ذکر کړے دے چه د روح او عقل والو دپاره استعمالیږی۔

(تمت تفسیر سورة الکهف)

سورۃ مریم مکیہ | بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | ایاتھا ٩٨ ورکوعھا ٦

خاص پہ نوم دَ اللہ تعالیٰ امداد غواړو پہ شروع کولو کښې چہ رحمٰن او رحیم دے

کٓہٰیٰعٓصٓ ① ذِكۡرُ رَحۡمَتِ رَبِّكَ

اللہ تعالیٰ دَ دے پہ مراد باندے ښہ پوهيږي۔ دا یادداشت دَ رحمت دَ رب ستا دے

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## سورۃ مریم

سورۃ مریم او بل نوم ئے سورۃ کٓہٰیٰعٓصٓ دے

ربط :- دَ دے سورت ربط دَ سورۃ کهف سره دا دے چہ سورۃ کهف کښې جوابونہ وو دَ شبهاتو دَ مشرکانو پہ اثبات دَ عجز دَ صالحینو نو پہ دے سورت کښې جوابونہ دَ شبهاتو باقیو دی پہ اثبات دَعبدیت دَ صالحینو دَ اللہ تعالیٰ دَ پاره ، دا رنگ کهف کښې اثبات دَ توحید دَ پاره یو قسم نقلی دلیلونہ وو نو پہ دے سورت کښې بل قسم نقلی دلیلونہ دی۔

دعوی دَ دے سورت :- دَ انبیاؤ او ملائکو پہ باره کښې دَ شبهاتو جوابونہ دی پہ اثبات دَعبدیت دَ هغوی۔ او ماخذ دَ دعوی پہ ٥٨ او ٩٣ آیتونو کښې دے۔ او اثبات دَ توحید دے پہ پنځو طریقو سره۔

اوله طریقه اثبات دَ عبدیت دَ انبیاؤ او دَ ملائکو۔ دویمه طریقه رد دَ اقسامو دَ شرک یعنی شرک فی العبادت او شرک فی الدعاء او شرک فی التصرف۔ دریمه طریقه رد پہ شفاعت قهریہ باندے۔ څلورمه طریقه رد پہ اتخاذ الولد دَ باندے۔ پنځمه طریقه ذکر دَ اسماء حسنیٰ چہ درے دی پہ حذف دَ تکرار سره۔

خلاصه دَ سورت :- پہ دے سورت کښې درے بابونہ دی اول باب تر ٦٣ پورے دے ، پہ دیکښې ذکر دَ عبدیت دَ انبیاء علیهم السلام دے ، شپږ انبیاء ئے تفصیلاً ذکر

عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ﴿٢﴾ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ

پہ بندہ خپل باندے چہ نوم ئے زکریا علیہ السلام وو - کلہ چہ اواز ئے اوکړو رب خپل تہ

کړے دی۔ زکریا علیہ السلام عیسیٰ علیہ السلام او مریم علیہا السلام او ابراهیم علیہ السلام ، بیا ذکر دَ عبدیت دَ ټولو انبیاؤ اجمالاً دے پہ ۵۸ کښ او تخویف اخروی روستو دَ واقعے دَ عیسیٰ علیہ السلام نہ دَ ۳۴ نہ تر ۴۰ پورے او پہ ۵۹ کښ۔ بیا بشارت اخرویہ دَ ۶۰ نہ تر ۶۳ پورے۔

تفسیر ۱ :- دا حروف مقطعات دی او دَ دے پہ مقصد باندے اللہ تعالیٰ ښۂ پوهیږی او لوے حکمت پدیکښ اثبات دَ اعجاز دَ قرآن دے۔ او دَ ابن عباس رضی اللہ عنہما روایت دے چہ کاف اشارہ دہ چہ اللہ تعالیٰ کافی دے او هاء اشارہ دہ چہ اللہ تعالیٰ هادی دے او یا اشارہ دہ چہ ید دَ اللہ تعالیٰ غالب دے پہ ټولو او عین اشارہ دہ چہ اللہ تعالیٰ عالم دے پہ هر څه او صاد اشارہ دہ چہ اللہ تعالیٰ صادق دے پہ وعدو خپلو کښ۔

۲ :- دا جواب دے دَ شبہے پہ بارہ دَ زکریا علیہ السلام کښ شبہ دا دہ چہ دَ هغہ پہ ذمہ باندے دَ مریم علیہا السلام کفالت کیخودلے وو او مریم حوالہ دہ نو معلومہ شوہ چہ پہ زکریا علیہ السلام کښ بہ هم آثار دَ الوهیت وی او دا رنګ پیر اشرَ خوی چہ څوڅ دلالت کوی دَ هغہ پہ قدرت او تصرف باندے نو معلومہ شوہ چہ هغہ دَ بندګئ حق لری۔ حاصل دَ جواب دا دے چہ دے عبد وو او دلیلونہ دَ عبدیت دهغہ دا دی چہ رحمت دَ رب تہ محتاج وو۔ نداء او دعاء ئے کړیدہ او هډوکو او سر باندے دَ بوډا والی ښکارہ اثر وو او دَ تربورانو نہ ئے خوف کوو وارث تہ محتاج وو بیا ځوئے تہ محتاج وو۔ بوډاوالے بوډا والے پرے راغلے وو مخلوق وو ځکہ ئے بندہ شولے وہ نو دے الہ نشی کیدلے او پدے آیت کښ اشارہ دہ چہ واقعہ دَ زکریا

نِدَآءً خَفِيًّا ③ قَالَ رَبِّ إِنِّي

(په عاجزۍ) اواز پټ . اُوئیل اے ربه زما یقینًا

وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّي وَاشْتَعَلَ

کمزورے شوی دی هډوکی زما او تک سپین دے

الرَّأْسُ شَيْبًا وَلَمْ أَكُنْ

سر زما دَ بوډاوالی په وجه او نه یم زهٔ

بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ④ وَإِنِّي

په وجه دَ دعا ستا نه اے رب زما محرومه (بدبخته) او یقینًا زهٔ

خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِنْ وَّرَآءِي

یریږم دَ ترِبورانو روستو زما نه (په دین باندے)

وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا فَهَبْ لِي

او ده ښځه زما شنډه نو راوبخښه ما لره

علیه السلام ذکر او نصیحت دے دَ پاره دَ اثبات دَ توحید او په یکښ تصریح ده دَ هغه په عبدیت باندے او دلته لفظ رحمت کښ اشاره ده استجابت دَ دعا ته چه دا دَ الله تعالی رحمت دے الله تعالی مجبور نه دے .

ف ۳ :- په دے آیت کښ عجز او دعاء دَ زکریا علیه السلام ذکر شوے ده او خَفِيًّا ، اشاره ده چه ادب په دعا کښ دا دے چه په جهر سره یه ئے نه کوے لکه په سورة اعراف آیت ۵۵ کښ تیر شوی دی۔

ف ۴ :- په دے آیت کښ دلیل دے په دے خبره چه په دعا کښ توسل کول په ذکر دَ خپل عجز او احتیاج دا رنګ په ذکر دَ نعمتونو الله تعالی سره سنت دَ انبیاؤ دے۔

اَلْعَظْمُ ، ئے ځکه ذکر کړو چه دَ هډوکو په کمزور کیدلو

مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ۝۵ يَّرِثُنِيْ

دَ خپل طرف نه وارث دَ دين - چه وارث شي دَ دين زما

وَيَرِثُ مِنْ اٰلِ يَعْقُوْبَ ۖ وَاجْعَلْهُ

او وارث دَ دين دَ اولاد دَ يعقوب عليه السلام ، او او گرځوې دے

رَبِّ رَضِيًّا ۝۶ يٰزَكَرِيَّآ اِنَّا

اے ربه غوره شوے - اے زکریا یقیناً مونږ

سره تهول بدن کمزورے شي -

وَلَمْ اَكُنْ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ، مراد ئے دا دے چه تا زۀ عادت کړے یم په اجابت باندے ځکه چه ما کله دعاء غوختے ده نو تا زۀ نا امیده نه یم واپس کړے او دا هم بهتره وسیله ده -

شَقِيًّا ، دَ شقاوت نه دے په معنی دَ بدبخته او محروم -

وَاشْتَعَلَ ، کښ اشاره ده چه تهول وېخته دَ سر ئے سپین شوے وو -

ت۵ :- په دے کښ هم توسل دے په ذکر دَ احتیاج خپل او په اوله جمله کښ ذکر دَ سبب دے دَ پاره دَ طلب دَ ځوے یعنی خپلوان او تربوران دَ دے قابل نه وو چه پس دَ مرګ دَ دۀ نه دین سنبال کړی نو ځکه ولد پکار دے -

وَكَانَتِ امْرَاَتِيْ عَاقِرًا ، په دے کښ اشاره ده چه اسباب ظاهر دَ ولد نشته - او من لدنك هم په دے باندے دلالت کوی چه ظاهری سبب نشته -

ت۶ :- دلته مراد دَ میراث نه وراثت دَ دین دے او آل یعقوب کښ هم دیته اشاره ده چه دا دین میراث دے دَ تهولو انبیاؤ دَ بنی اسرائیلو او مراد دَ میراث نه میراث مالی نه دے ځکه چه انبیاء علیهم السلام نه مال میراث کښ نه پاتے کیږی بلکه دَ هغوی نه علم دَ دین پاتے کیږی لکه چه په حدیث صحیح کښ دی -

نُبَشِّرُكَ بِغُلٰمِ ۨاسۡمُهٗ يَحۡيٰى ۙ

زیرے درکوؤ تاتہ پہ هلک سرہ چہ نوم دَ هغہ یحییٰ دے

لَمۡ نَجۡعَلۡ لَّهٗ مِنۡ قَبۡلُ

نہ دے گرځولے موږ دهٔ لرہ دَ دے نہ مخکښ

سَمِيًّا ﴿٧﴾ قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوۡنُ

همنائے ۔ دہ اُوئیل اے ربہ پہ څہ طریقہ سرہ بہ

لِىۡ غُلٰمٌ وَّكَانَتِ امۡرَاَتِىۡ عَاقِرًا

زما هلک وی او دهٔ ښځہ زما شنډہ شوے

وَّقَدۡ بَلَغۡتُ مِنَ الۡكِبَرِ عِتِيًّا ﴿٨﴾

او یقیناً رسیدلے یم زهٔ دَ بوډاوالی نہ آخری حد تہ ۔

رَضِیًّا، غورہ کړے شوے دَ دین دَپارہ چہ دعوت او تبلیغ دَ دین بہ کوی ۔

س۷:۔ یعنی دُعاء دَ زکریا علیہ السلام قبولہ شوہ او پہ بشارت کښ درے امور ذکر دی اول بشارت دَ ولد دویم تسمیہ دَ اللہ تعالیٰ دَ طرف نہ پہ یحییٰ علیہ السلام سرہ او دریم پدے قول کښ چہ لَمۡ نَجۡعَلۡ لَّهٗ مِنۡ قَبۡلُ سَمِيًّا، دَ دے دوہ معنے دی۔ اولہ معنیٰ دا دہ چہ نوم دَ یحییٰ علیہ السلام دَ دهٔ نہ مخکښ دَ بل چا نہ وؤ او دویمہ معنیٰ دا دہ چہ دَ اللہ تعالیٰ دَ طرف نہ دا سے نوم بل چا لہ نہ وؤ کیخودلے شوے۔

سَمِیًّا، هغہ څوک چہ پہ نوم یا صفت کښ دَ بل سرہ شریک وی دلتہ اولہ معنیٰ مراد دہ ۔

س۸:۔ پہ یکښ مقصد دَ زکریا علیہ السلام انکار کول نہ دی بلکہ طلب کول دی دَ طریقے دَ ولادت لکہ چہ تیر

قَالَ كَذٰلِكَ ج قَالَ رَبُّكَ هُوَ
اُوئیل دغه شان وئیلی دی ستا رب چه دا کار
عَلَىَّ هَيِّنٌ وَّ قَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ
په ما باندے آسان دے او یقیناً ما پیدا کړے وے ته
قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْـًٔا ⑨ قَالَ
پخوا او نه وے ته هیڅ څیز۔ اُوئیل ده
رَبِّ اجْعَلْ لِّيْٓ اٰيَةً ط قَالَ
اے ربه زما اوګرځوه ما لره نخښه ، اُوئیل الله تعالیٰ
اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَ
نخښه ستا دا ده چه خبرے به نه شے کولے خلقو سره درے
لَيَالٍ سَوِيًّا ⑩ فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ
شپے او حال دا چه روغ یه یئے۔ نو را اُوتلو ښکاره شو) قوم ته

شوے دے په تفسیر دَ سورة آل عمران کښ په دے سورت کښ پوره تفصیل مقصد دے دَ دے وجے نه اول مانع دَ ولادت ئے ذکر کړو چه شنړ والے دَ ښځے دے او په سورة آل عمران کښ برعکس ذکر کړے دے یعنی اول ئے دَ خپل ځان ذکر کړے دے۔

ﻫ۹:۔ كَذٰلِكَ ، کښ اشاره ده چه ته او ستا بی بی په حالت دَ بوډا والی کښ به یئے لیکن الله تعالیٰ به اولاد درته پیدا کړی۔
وَقَدْ خَلَقْتُكَ ، په دے کښ اشاره ده چه پیدا کول دَ یحییٰ علیه السلام قیاس دے۔ په پیدا کولو دَ زکریا علیه السلام روستو دَ نیشتوالی نه ۔ شَيْـًٔا ، یعنی دا سے څیز چه یادشی په خاص توم سره۔ او دا سے دَ ټولو انسانانو پاره کښ په سورة دهر ۱ کښ دی۔
ﻫ۱۰:۔ په دے کښ طلب کول دَ زکریا علیه السلام دے خاص نخښے لره

مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰۤی اِلَیْهِمْ

| دَ عبادت خانې نه نو په اشارے سره ئې اُوئیل دوی ته |
|---|

اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ⑪

| چه تسبیح وایئ صبائی او بیگائی |
|---|

یٰیَحْيٰى خُذِ الْكِتٰبَ بِقُوَّةٍ ؕ

| (او ئیل موئږ) اے یحییٰ اونیسه کتاب په کلکه سره ، |
|---|

دَپاره دَ ولادت دَ اولاد، او دا دَ دے دَپاره چه دَ ولادت نه مخکښې شکر ډیر ادا کړی۔
اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ، په دے کښې دوه توجیه دی اول دا چه ستا ژبه به بنده شی نو په اشاره به خبرے کوے دویم دا چه ته به منع کړے شے دَ خبرو نه او دا هم روژه وه په دین دَ هغوی کښې که دَ شپے وی یا دَ ورځے۔ په سورة آل عمران سلا آیت کښې ایام لفظ ذکر وؤ۔ اشاره وه چه شپه او ورځ دواړه دی او سورة مریم مخکښې نازل شوے دے دَ سورة آلعمران نه نو دلته ئې اول وخت ذکر کړو چه شپه ده ځکه شپه په ورځ باندے مخکښې ده او دَ ورځے اشاره ښکاره کیږی او دَ شپے نه ښکاری دَ دے وجے ئې هلته دَ ورځو سره (اِلَّا رَمْزًا)، ذکر کړے دے۔
سلا :۔ مراد دا دے چه زکریا علیه السلام دَ کلام کولو نه ژبه بنده کړه نو بیا دعوت دَ دین ئې په اشارو سره کولو۔
اَلْمِحْرَابِ ، مراد دَ دینه هغه اوچت مکان دے چه مختص وؤ په امام پورے په دین دَ بنی اسرائیلو کښې او دیته محراب ځکه وائی چه په دے کښې محاربه کیږی دَ شیطان او دَ شهواتو سره۔ دا محراب زموږ دَ زمانے مراد نه دے۔
بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ، کښې هر وخت مراد دے لیکن دا دوه وختونه ډیر افضل دی دَ دے وجے نه تخصیص ئې اوکړو۔

وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا ﴿۱۲﴾

او ورکړے وه مونږ دهٔ ته پوهه دَ دین په وړوکوالی کښې.

وَّحَنَانًا مِّنْ لَّدُنَّا وَزَكٰوةً ط

او ترس کول (په خلقو باندے) زمونږ دَ طرف نه او پاکوالے،

وَكَانَ تَقِيًّا ﴿۱۳﴾ وَّبَرًّا بِوَالِدَيْهِ

او دے وُو تقوی دار. او احسان کوونکی دَ مور او پلار

وَلَمْ يَكُنْ جَبَّارًا عَصِيًّا ﴿۱۴﴾

او دے نه وُو زیاتے کوونکے (په خلقو) او نافرمان (دَ الله تعالیٰ).

وَسَلٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ

او سلامتیا ده دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه په ده باندے په کومه ورځ چه پیدا شو او په کومه ورځ

۱۲:- په کلام کښې حذف دے دَ پاره دَ اختصار یعنی یحییٰ علیه السلام پیدا شو او لوے شو نو دا خطاب ورته اوشو.

الْكِتٰبَ، نه مراد تورات دے او مراد ئے دا دے چه کوشش اوکړه دَ تورات په رسولو کښې او بیا دَ یحییٰ علیه السلام لس صفات ذکر کړے شوی دی.

اول دا وَاٰتَيْنٰهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا، الحکم نه مراد دَ دین پوهه ده او دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چا چه قرآن اولوسته مخکښې دَ بلوغ نه نو هغه په دے صفت کښې داخل شو او یو روایت کښې راغلی دی چه یحییٰ علیه السلام ته یو څلے هلکانو اُوئیل راځه چه لوبے کوُو نو هغه جواب ورکړو چه مونږ دَ لوبو دَ پاره نه یو پیدا کړے شوی.

۱۳، ۱۴، ۱۵:- په دے آیتونو کښې باقی نهه صفات ذکر کړے شوی دی.

وَسَلٰمٌ عَلَيْهِ، مراد دَ سلام نه سلام دے دَ الله تعالیٰ او سلامتیا ورکول دی او دَ دے دریو حالاتو ذکر ئې ځکه اوکړو

يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ﴿۱۵﴾

چه مړ کیږي او په کومه ورځ چه دوباره به ژوندی کیږي ۔

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مَرْيَمَ إِذِ

او بیان کړه (د نصیحت په طور) په کتاب الله کښې واقعات د مریم کله چه

انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا

په ډډه شوه د کورنۍ خپلې نه یو مکان

شَرْقِيًّا ﴿۱۶﴾ فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُونِهِمْ

د نمر خاته طرف ته ۔ نو جوړه یې کړه د دوی نه د بیځ کیدلو د پاره

چه انسان په دے دریو حالاتو کښې ډیر ضعیف او محتاج وی الله تعالیٰ ته او دا صفتونه ټول دلالت کوی په عبدیت د یحیٰی علیه السلام باندے ۔

سلا ۔ دا واقعه د مریم او د عیسیٰ علیهما السلام ده د پاره د جواب د شبهے د مشرکینو او نصاراؤ شبه دا ده چه د مریم او د عیسیٰ علیهم السلام نه ډیره عجیبه او نا آشنا امور ښکاره شوی دی معلومیږی چه دوی متصرف او حاجت روا دی او د دے وجے نه نصاراؤ مریم او عیسیٰ علیهما السلام ته اله وئیلے دی او مشرکین مکه هم په خپلو بعضو معبودانو کښې د مریم شکل جوړ کړے وؤ ۔

حاصل د جواب دا دے چه مریم کښې عجز او عبدیت وؤ، پناه هم په رحمان سره طلب کوی، جبرائیل نه پیژنی، مخاض پرے راغلے دے، تمنا د موت ئے کړے ده، نذر ئے د رحمان د پاره کړے دے دا ټول دلیلونه دی د عجز د هغې، او عیسیٰ علیه السلام وئیلی دی انی عبد الله، او نبی یم، مبارک یم، او عبادتو سره مامور یم او سلامتیا کښې الله تعالیٰ ته محتاج یم او وئیلے دی ۔

حِجَابًا ۚ فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا

پرده نو او لیږلو موږ هغې ته روح دَخپل طرف نه (جبرائیل)

فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ﴿١٧﴾

جوړ يې کړو هغې ته شکل دَ بنده برابر ۔

قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَٰنِ مِنكَ

هغې اُوئيل يقيناً زۀ پناه غواړم په رحمٰن سره ستا نه

وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ، دا اتهول دليلونه دي دَعبديت او دَ عجز دَ عيسىٰ عليه السلام نو هغوى متصرف اوحاجت روا نشي کيدے ،

وَاذْكُرْ ، نه مراد بيان دَ واقعے دَ مريم عليها السلام دے دَپاره دَ تذکير دَ توحيد ، او انتبا ذ مکانِ شرقي ته دَپاره دَعبادت کولو وۀ ۔ او دَ مکان شرقي تخصيص دَ وجے دَ افضليت نه نۀ وۀ دا اتفاقي وۀ ليکن نصارىٰ په بدعت کښ اخته شول او دا مکان شرقي يې چه مولد دَ عيسىٰ عليه السلام دے دَ دينه يې قبله جوړه کړه ۔

مسئله :- زنانه باندے حجاب فرض دے ، دَدے وجے نه هغې حجاب ځان ته جوړ کړو ۔

رُوحَنَا ، دَ دينه مراد جبرائيل عليه السلام دے ۔

فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ، دليل دے چه ملائکو ته الله تعالىٰ دا قوت ورکړيدے چه دَ انسان په شکل سره متشکل کيږي او جبرائيل دَ بشر په شکل کښ ځکه راغلو چه بغير دَ تمثيل نه دَ انسان په نظر کښ راتللے نه شي ۔ دلته چه چا دَ روح نه مراد روح دَ عيسىٰ عليه السلام اخستے او هغه دَ بشر په شکل پيدا کيدل يې مراد کړي دي نو دا قول صحيح نه دے ابن کثير هغې ته غريب او منکر او اسرائيلي روايت وئيلے دے ۔

إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ﴿۱۸﴾ قَالَ إِنَّمَا أَنَا

که ته ئې تقوی دار (نو په ډډه شه) - اوئیل هغه یقیناً زه

رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَامًا

رالیږلے شوے یم ستا د رب د طرف نه (هغه والی) چه او بخم تا ته څوے

زَكِيًّا ﴿۱۹﴾ قَالَتْ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي

پاک - هغه اوئیل څنګه به وی زما د پاره

غُلَامٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ

څوے او نه دے لګولے لاس زما سره هیڅ بنده

وَلَمْ أَكُ بَغِيًّا ﴿۲۰﴾ قَالَ كَذَٰلِكِ

او نه یم زه بدکاره - اوئیل هغه دغسے (لکه چه دے اوئیل)

۱۸:- معلومه شوه چه مریم په غیب نه پوهیدله نو جبرائیل ئې او نه پیژندلو، او دا رنګ په تعوذ کښ الله تعالیٰ ته محتاج وه -
إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا، د دے جزاء حذف ده معنی دا ده که ته د الله تعالیٰ نه یریږے نو زما نه په ډډه شه یا تقیا په معنی د عقلمن دے -
الرَّحْمٰن، صفت د دوی په نیز مشهور وؤ-
۱۹:- لفظ د رسول دلیل دے چه لِأَهَبَ، کلام د الله تعالیٰ دے ځکه چه رسول کلام د مرسل ذکر کوی د دے وجے نه چه هبه کوونکے د اولاد الله تعالیٰ دے، جبرائیل نه دے او په یکښ لِيَهَبَ قراءت په صیغه د غائب سره هم ثابت دے-
۲۰:- دا قول د دے په طور د تعجب سره دے او وجه د تعجب ئې روستو ذکر کړیده یا طلب د کیفیت دے - او دا تعجب په اعتبار د عادت سره دے -

قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ ۚ

وئیلې دي ستا رب دا کار په ما باندې آسان دے

وَلِنَجْعَلَهٗۤ اٰيَةً لِّلنَّاسِ وَرَحْمَةً

او چورو ؤ مونږ دے هلک لره نخه دَقدرت دَپاره دَخلقو او رحمت

مِّنَّا ۚ وَكَانَ اَمْرًا مَّقْضِيًّا ﴿۲۱﴾

زمونږ دَطرف نه او دے دا کار فیصله کړے شوے.

فَحَمَلَتْهُ فَانْتَبَذَتْ بِهٖ مَكَانًا

نو په خیټه کښ واخست دا بچے نو په دوه شوه په سبب دَدغه حمل دا یسے ځائے ته

قَصِيًّا ﴿۲۲﴾ فَاَجَآءَهَا الْمَخَاضُ

چه لرے وؤ دَخلقو نه. نو مجبوره کړه هغې لره درد دَ پیدائش

اِلٰى جِذْعِ النَّخْلَةِ ۚ قَالَتْ

دَ ده وهلو تنے دَ کجورے ته او وئیل هغې

سلا: كَذٰلِكِ ، کښ اشاره ده څنګه چه اوس ئې پیدا یسے حال کښ په ستا نه ولادت کیږي. یعني بغیر دَ دینه چه تا ته څوک نیږدے شي.

وَلِنَجْعَلَهٗ ، دَ دے نه مخکښ نخلُقُه ، لفظ مقدر دے.

رَحْمَةً ، مراد دَ دینه نبوت والا دَپاره دَبیان دَ توحید دے.

وَكَانَ اَمْرًا مَّقْضِيًّا ، کلام دَ جبرائیل دے مریم ته په اخبار دَ الله تعالیٰ دے نبي صلی الله علیه وسلم ته.

سلا: فَحَمَلَتْهُ ، نفخ د روح جبرائیل علیه السلام اوکړو لکه سورة انبیاء سلا او سورة تحریم سلا کښ ذکر شوے دي. او بیا پیدا شے وجه چه قوم به مالوه ملامتیا راکوي لرے ځائے ته لاړه.

يٰلَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا وَكُنْتُ

هائے ارمان دے چہ مرہ وے زۂ وړاندے دَ دینه او وے زۂ

نَسْيًا مَّنْسِيًّا ﴿۲۳﴾ فَنَادٰىهَا مِنْ

هیره تیره . نو آواز ورکړو دېته (رغه رسول) دَ

تَحْتِهَآ اَلَّا تَحْزَنِيْ قَدْ جَعَلَ

کوزځائے نه چه مه خفه کیږه یقینًا پیدا کړیدہ

رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ﴿۲۴﴾ وَهُزِّيْ

ستا رب کوزځائے کښ ستا نه روانه چینه . او خوځوه

۲۳:۔ دا دلیل دے چه په نفخ پسے زر حمل ښکاره شو او په حمل پسے سمدستي ولادت شویدے ۔ اویل قول دا دے چه حمل نهه میاشتے په کیږه باندے وؤ پشان دَ عام عادت دَ زنانو ۔

جِذْعِ النَّخْلَةِ ، او دا په بیت اللحم مقام کښ ده دَ بیت المقدس نه اته میله لرے او دا مشهور قول دے ۔

يٰلَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا ، شبه دا ده چه تمنا دَ موت منع ده نو مریم علیها السلام ولے دا تمنا کړے ده ۔

اول جواب دا دے چه دا ویریده چه زما په دین اړخ باندے طعن لږي او دا فتنه ده او دَ خوف دَ دیني فتنے په وجه تمنا دَ موت جائز ده ۔

دویم جواب دا دے چه دا ویریده چه زما په وجے سره به قوم په بهتان او په گناه کښ اخته شي نو پدے لحاظ سره تمنا دَ موت جائز ده ۔

۲۴:۔ فَنَادٰىهَا ، اول قول دا دے چه فاعل جبرائیل علیه السلام دے چه دَ مریم علیه السلام نه خکته یل مکان ته منتقل شوی وؤ او دویم قول دا دے چه عیسیٰ علیه السلام پیدا شو نو

إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَٰقِطْ

ته خان ته تنه دَ کجورے را غورځوی به

عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ﴿٢٥﴾ فَكُلِي

په تا باندے کجورے تازه (رانږولے شوے) - نو خوره

وَاشْرَبِي وَقَرِّي عَيْنًا ۚ فَإِمَّا

او څکه او یخے لره سترګے نو که

تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا ۙ

اولیدلو تا دَ بندګانو نه څوک

فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَٰنِ

نو اُوایه چه یقیناً ما منخته کړیده دَ رحمان دَپاره

صَوْمًا فَلَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنسِيًّا ﴿٢٦﴾

روژه (چپوالے) نو خبرے نه کوؤم نن دَ هیڅ انسان سره۔

هغه دا آواز مور ته ورکړو اول قول غوره دے۔ او دا آواز او دَ دینه مخکښ مخاطبه دَ جبرائیل علیه السلام دَ مریم علیها السلام سره دا کرامات دَ مریم علیها السلام دی حو دَ هغے په اختیار کښ نه وو۔ سَرِيًّا، سری په معنیٰ دَ نهر دا وبو دے یعنی روانے اوبه روستو وَاشْرَبِي، ېدے دلیل دے یا مراد دَ دینه سردار دے یعنی عیسیٰ علیه السلام۔ اول قول غوره دے۔

ف۲۵ :- دا هم کرامات دَ مریم علیها السلام دی چه دَ او چے تنے دَ کجورے نه تازه میوے را پریوځی۔ وَهُزِّي، کښ اشاره ده چه دَ رزق دَپاره ضرور څه حرکت او کسب پکار دے او ورکوی ئے الله تعالیٰ او عمرو بن میمون نه نقل دی چه تازه کجورے دَ زنانه دَپاره په وخت دَ پیدائش دَ بچی کښ ډیر بهتر څیز دے۔

ف۲۶ :- اشاره ده چه دَ نفاس په حال کښ رطب او اوبه استعمالول مفید دی دَ زنانو دَپاره او دَ قوم دَ طعن نه دَ بچ کیدلو

فَاَتَتْ بِهٖ قَوْمَهَا تَحْمِلُهٗ ؕ قَالُوْا

نو راوړو هغې بچے قوم خپل ته په غیږ کښې راواچت کړېوۀ هغوی اوئیل

یٰمَرْیَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَیْـًٔا

اے مریم یقینًا تا راتلل اوکړل راوړې کړلو) په کار

فَرِیًّا ﴿۲۷﴾ یٰۤاُخْتَ هٰرُوْنَ مَا كَانَ

ډېر نا اشنا سره۔ اے خور دَ هارون نه وۀ

اَبُوْكِ امْرَاَ سَوْءٍ وَّمَا كَانَتْ

ستا پلار سړے نا کاره او نه وه

دَ پاره ئے ورته طریقه اوخودله۔

فَقُوْلِیْٓ ، نه مراد په اشاره سره وئیل دی۔ صَوْمًا ، نه مراد صمت (چپولے) دے اوصمت په شریعت دَ هغوی کښې عبادت وۀ دَ دے وجے نه په نذر سره لازمیږی۔ او زمونږ ملت کښې دا منسوخ دے لکه په حدیث دَ ابو اسرائیل کښې ثابت دی۔ هاں زمونږ ملت کښې په روژه کښې دَ کلام قبیح ترک لازم دے او په دے آیت کښې دلیل دے چه نذر په الله تعالیٰ پورے خاص دے او دا دَ صالحینو عمل دے۔

۲۷ :۔ هر کله چه دَ دے تسلی اوشوه نو عیسیٰ علیه السلام ئے په غیږ کښې راواچت کړو او قوم ته راغله نو هغوی پرلے اول انکار اوکړو۔

فَرِیًّا ، فری په اصل کښې دَ څان نه جوړولو ته وئیلے شی دلته مراد داسے کار دے چه نا اشنا دے مثال ئے نشته او ډیر نا کاره دے۔

أُمُّكِ بَغِيًّا ﴿٢٨﴾ فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ ط

ستا مور بدکاره. نو هغې اشاره اوکړه .ېچى طرف ته،

قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ

نو هغوی اُوئیل څنګه خبرې اوکړو مونږ هغه چا سره چه دے

فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا ﴿٢٩﴾ قَالَ إِنِّي

په غیږ کښ وړوکے بچے. اُوئیل .ېچى یقینًا زهٔ

عَبْدُ اللَّهِ ط آتَانِيَ الْكِتَابَ وَجَعَلَنِي

دَ الله تعالٰی بنده یم، راکوی په ماته کتاب اوجوړوی په ما

سـ ٢٨ :- په دے کښ په هغې باندے دَ طعن کولو تاکید ئې اوکړو چه تا په دے عمل صرف ځان نه بلکه مور او پلار هم اوشرمول.
يَا أُخْتَ هَارُونَ ، دَ حدیث دَ مسلم نه په روایت دَ مغیره بن شعبه رضی الله عنه سره معلومیږی چه دا هارون په دغه زمانه کښ یو نیک سړے وؤ نو دوی دَ مریم علیها السلام تشبیه په صلاحیت کښ دَ هغه سره ورکړه. او بل قول دا دے چه مریم علیها السلام دَ هارون علیه السلام په اولاد کښ وه او دَ اخ او اخت اطلاق په نسل باندے هم کیږی او څوک چه داسے وائی چه مریم دَ هارون علیه السلام خورده نو په هغې باندے ابن کثیر سخت رد کړے دے.
سـ ٢٩ :- معلومه شوه چه مریم علیها السلام نذر کړے وؤ تو خبرے ئې نه کولے او په اشاره سره ئې هغوی پوهه کړل.
كَانَ ، په معنی دَ یکون سره دے یا صرف دَ وجود او دَ حدوث دَپاره دے.

نَبِيًّا ﴿۳۰﴾ وَجَعَلَنِي مُبَارَكًا أَيْنَ

پیغمبر۔ او جوړ وي یه ما فائده مند هر ځای

مَا كُنتُ وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ

چه یم زه او حکم یه کوي ماته د مانځه

وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا ﴿۳۱﴾

او د زکوٰت ترڅو پورے زه یم ژوندے۔

۳۰ :- دوی اگرچه عیسیٰ علیه السلام سره خبرے نه کولے لیکن الله تعالیٰ هغه لره گویا کړو او خپل لس حالات ئے ذکر کړي دي چه هغه ټول د هغه په عجز او په عبدیت باندے دلالت کوي او په دے ټولو صفتونو کښې رد دے په یهودیانو او په نصاراؤ دواړو باندے چه چا د هغه په باره کښې تفریط کړیدے او چا افراط کړے دے او د فعل ماضي صیغے په معنیٰ د مستقبل سره دي لیکن ماضي ئے د تیقن د پاره ذکر کړیده۔

۳۱ :- په دے کښې د هغه نور حالات د عبدیت ذکر کړے شوي دي۔

مُبَارَكًا، برکت په انسان کښې دا دے چه د الله تعالیٰ د طرفه خیر ته دعوت ورکوي نو مراد د دینه معلم د خیر دے۔

مَا دُمْتُ حَيًّا، دا دلیل دے چه په موت سره تکالیف د عبادا تو قطع شي او مرده عبادات نشي کولے۔

زکوٰة، نه مراد د عقیدے او د اعمالو او اخلاقو دے چه هغے ته تزکیه د نفس وئیلے شي یا زکوٰة مالي مراد دے او هغه مشروط دے په شرط د مال سره ضرورت۔

وَّبَرًّا بِوَالِدَتِيْ وَلَمْ يَجْعَلْنِيْ جَبَّارًا

اوتیکی کوونکے دَمور سرہ اونه دے گرځولے ما لره زیاتے کوونکے په خلقو باندے

شَقِيًّا ﴿۳۲﴾ وَالسَّلٰمُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُّ وَيَوْمَ

او بد بخت - او سلامتیا ده دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه په ما باندے په هغه ورځ چه پیدا کړے شوم او په

اَمُوْتُ وَيَوْمَ اُبْعَثُ حَيًّا ﴿۳۳﴾ ذٰلِكَ عِيْسَى

چه مړ کیږم او په هغه ورځ چه دوباره ژوندے کیږم۔ دا عیسیٰ

ابْنُ مَرْيَمَ ۚ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِيْ

بن مریم دے وایم زهٔ وینا حقه هغه

۳۲ :- په دے آیت کښ دَ هغه نور دوه صفات دَ عبدیت ذکر کړی دی۔

جَبَّارًا ، هغه څوک دے چه دَ تکبر دَ وجے نه په ځان باندے دَ بل چا حق نه منی۔

شَقِيًّا ، هغه دے چه دَ خباثت دَ نفس دَ وجے نه دَ الله تعالیٰ حکم پر بردی ، دَ یحییٰ علیه السلام په باره کښ عصيًا ذکر شوے وو۔ ځکه چه دَ هغه باره کښ بد نالی نه وه نو صرف عصمت دَ هغه ذکر شو او دَ عیسیٰ علیه السلام په باره کښ یے شقيًا ذکر کړو په دے کښ رد دے په هغه طعنونو چه یهودیانو په هغه باندے کول۔

۳۳ :- دَ اسلام اګر چه دَ ده په ځلے سره وئیلے شوے دے لیکن دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دے په حقیقت کښ - او په دے کښ دَ عیسیٰ علیه السلام درے حالات دَ عجز ذکر شول چه الله تعالیٰ ته محتاج دے په سلامتیا کښ۔

او وَالسَّلٰمُ، کښ الف لام یے عهدی دَ دے وجے نه راوړو چه اشاره اوشی په دے سره سلام دَ یحییٰ علیه السلام ته یعنی هغه سلام په ما باندے هم دے - یا دا دلیل دے په

فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴿٣٤﴾ مَا كَانَ لِلَّهِ

په کښې شک کوي - نه دی مناسب الله تعالیٰ لره

أَنْ يَتَّخِذَ مِنْ وَلَدٍ سُبْحَانَهُ ط

چه اونیسي هیڅ بچے پاک دے الله تعالیٰ ذات

إِذَا قَضَى أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ

هر کله چه اوغواړي څه کار نو یقیناً او وائي هغې ته

كُنْ فَيَكُونُ ﴿٣٥﴾ وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي

اوشه نو هغه اوشي - او (اُوئیل عیسیٰ) یقیناً الله تعالیٰ رب زما

وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ط هَذَا صِرَاطٌ

او رب ستاسو دے نو بندګي کوئ خاص هغه لره دا لار ده

مُّسْتَقِيمٌ ﴿٣٦﴾ فَاخْتَلَفَ الْأَحْزَابُ

نیغه - بیا اختلاف اوکړو ډلو (ضد پالو)

فضیلت دَ عیسیٰ علیه السلام په یحییٰ علیه السلام باندے څکه چه معرفه افضل ده دَ نکرے نه -

۳۴-۳۵ دا آیتونه په طریقه دَ جملے معترضے سره دي - تفریع او نتیجه ده دَ کلام دَ عیسیٰ علیه السلام او رد دے په نصاراؤ مشرکانو باندے او په یهودیانو باندے -

او قَوْلَ الْحَقِّ ، نه مخکښې اقول لفظ محذوف دے او په ۳۵ کښې صریح رد دے په نصارٰی باندے چه عقیده دَ اتخاذ الولد لري رد په دوه طریقو سره دے - یو سُبْحَانَهُ ، او دویم إِذَا قَضَى أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ ، په اول کښې تنزیه ذاتي ده او په دویم کښې عدم احتیاج دَ هغه دے.

۳۶ - دا هم قول دَ عیسیٰ علیه السلام دے - او قال په کښې مقدر دے لیکن دا ئے دَ مخکنو اقوالو نه جدا ذکر کړو

مِنْۢ بَيْنِهِمْ ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا

په کورنۍ کښې (په باره د عیسیٰ کښې) نو تباهي ده کافرانو لره

مِنْ مَّشْهَدِ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۳۷﴾ اَسْمِعْ

د حاضرے د ورځ لوئے نه . ښه آوري به

بِهِمْ وَاَبْصِرْ ۙ يَوْمَ يَاْتُوْنَنَا

دوی او وینی به هغه ورځ چه پیش به شی مونږ ته

لٰكِنِ الظّٰلِمُوْنَ الْيَوْمَ فِيْ ضَلٰلٍ

لیکن ظالمان نن په گمراهۍ

اشاره ده چه دا قول د هغه په حال د وړوکوالے کښې نه وؤ او دا سے په سورة الحمران ۹۶ او سورة زخرف ۹۴ کښې هم دی او په دیکښې رد د شرک فی الربوبیه او شرک فی العبودیت او رد دے په نصاراؤ باندے .

۳۷ ۔ مختلف اقوال په باره د عیسیٰ علیه السلام کښې دا وؤ چه یهودیانو وئیل چه دا ولد الزنا دے او د نصاراؤ نه یعقوبیۍ وئیل چه دا الله دے او په صورت د عیسیٰ علیه السلام کښې دے او نسطوریه وئیل چه دے ابن الله دے او ملکانیه وئیل چه دے ثالث ثلاثه دے ، او مسلمانانو وئیل چه دے عبد الله وؤ او رسول دے . او په دے آیت کښې تخویف اخروی دے د منکرینو دپاره .

مِنْ مَّشْهَدِ ، اشاره ده چه د دوی هلاکت به په هغه ورځ یقینی وی چه ورځ د قیامت حاضره شی . مشهد د مصدر میمی دے په معنی د حضور دے یا اسم ظرف دے او اضافت ئے یوم ته اضافتِ بیانیه دے او قیامت ته مشهد وئیلے شی د دے وجے نه چه وخت د شهادتونو دے .

مُّبِيْنٍ ﴿۳۸﴾ وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ

ښکاره کښې دي. او يره ورکړه دوی لره د ورځ د افسوس نه

إِذْ قُضِيَ الْاَمْرُ وَهُمْ فِيْ غَفْلَةٍ

کله چه فيصله به اوشي د کارونو او دوی (اوس) په غفلت کښې دي

وَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۹﴾ إِنَّا نَحْنُ

او دوی ايمان نه لري. يقيناً مونږ

نَرِثُ الْاَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا

آخري مالکان يو د دې زمکې او د هغه چا چه په دې باندې دي

۳۸ :- په دې آيت کښې اول تخويف دے او بيا زجر دے او مراد د آيت دا دے چه په ورځ د قيامت به دوی ښه اوري او ښه به ويني هغه څه چه دوی تر ېنه نن انکار کوی نو د قيامت په ورځ اوريدل او ليدل څه فائده نه ورکوی لکه سورة سجده ۱۲ آيت کښې چه ذکر راځي.

فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ، يعنې په دنيا کښې نه اوري او نه ويني حق لره او دا سبب د ګمراهۍ دے.

اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ ، صيغې د فعل دي دلالت کوی په مبالغه باندې.

۳۹ :- دېکښې هم تخويف اخروی دے او بيا زجر دے.

يَوْمَ الْحَسْرَةِ ، دا نوم ورته ځکه وائي چه دا منکرين به پکښې افسوس او حسرت کوی په توحيد منلو پسې لکه په سورة حجر ۲ آيت کښې او په اتباع رسول پسې لکه سورة فرقان ۲۷ آيت کښې او په ايمان بالآخرت پسې لکه سورة انعام ۳۱ کښې او په قرآن پسې لکه سورة انعام ۲۷ کښې.

إِذْ قُضِيَ الْاَمْرُ ، تقدير د عبارت دا دے يتحسرون إذ قضي الامر-

وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴿٤٠﴾ وَاذْكُرْ فِي

او خاص مونږ ته به دوی راوګرځولے شي - او بیان کړه دَ نصیحت په طور

الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ ۚ إِنَّهُ كَانَ

په کتاب دَ الله تعالیٰ کښ حال دَ ابراهیم ، یقیناً دے وُو

صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴿٤١﴾ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ

ډیر رښتینے پیغمبر - کله چه اُوئیل ده پلار خپل ته

يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ

اے پلاره زما په څه دلیل بندګي کوے ته دَ هغه څه چه نه اوري

سته :- په دے کښ اثبات دَ تصرف دَ الله تعالیٰ دے او اشاره ده چه ټول عالم به فنا شي او یو الله تعالیٰ به باقي وي او دا علت دے دَ دے قول چه إذ قضي الامر، یعني الله تعالیٰ فیصله دَ انصاف کولے شي ځکه چه هغه مالک دے -

سله :- دا دریمه واقعه ده دَ ابراهیم علیه السلام او جواب دَ شبهے دے - شبهه دَ مشرکینو دا وه چه ابراهیم علیه السلام الله تعالیٰ ته ډاسے مقرب او نزدے وُو چه الله تعالیٰ ورته تصرفات سپارلے وُو - دَ دے وجے نه مشرکین مکه صورت دَ ابراهیم علیه السلام په کعبه کښ کیخودلے وُو او په لاس کښ ورله ازلام ورکړے وُو - اشاره ده چه دے دَ انسانانو په قسمت کښ تصرف لري - حاصل دَ جواب دا دے چه ابراهیم علیه السلام خو دَ توحید دَ وجے دَ پلار نه براءت کړے وُو نو هغه څه رنګه دَ الله تعالیٰ سره شریک کیدے شي او الله تعالیٰ ته عاجزي کوونکے وُو او الله تعالیٰ ته محتاج وُو -

فِي الْكِتَابِ ، کښ اشاره ده چه دَ ابراهیم دَ خپل پلار لحاظ هم نه دے کړے او دا دلیل دے چه ده دروغ نه دی وئیلے او ثلث کذبات چه کوم دی هغه توریے دی دروغ نه دی -

وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْئًا ﴿۴۲﴾

او نه وینی څه څیز او نه لرے کولے شی ستا نه هیڅ تکلیف۔

يَا أَبَتِ إِنِّي قَدْ جَاءَنِي مِنَ الْعِلْمِ

اے پلاره زما بیقینًا راغلے دے ما ته د علم (وحی) نه

مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِي أَهْدِكَ

هغه چه تا له نه دے راغلے نو تابعداری اوکره زما او به خایم تا ته

صِرَاطًا سَوِيًّا ﴿۴۳﴾ يَا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ

لار برابر - اے پلاره زما بندگی مه کوه

۴۲:۔ په دے آیت کښ د پلار دعوت ئے توحید ته کړیدے په نرمه طریقه سره او طلب د دلیل ئے تړینه په عبادت د غیرالله باندے کړیدے په آیت کښ اشاره ده صفاتو د معبود بالحق ته او نفی د دے صفاتو د غیرالله نه، هغه درے صفات دی اوریدل د هرڅه، لیدل د هرڅه، او مصیبتونه دفع کول او دا درے صفات په هیڅ مخلوق کښ نشته که انبیاء وی او که اولیاء وی او که مړی وی او که بتان وی او د دے ترتیب دادے چه اول اوریدل دی نو په هغے سره توجه پیدا شی نو نظر اوکړی نو پس د هغے نه حاجت روائی کوی۔

۴۳:۔ په دے آیت کښ دعوت دے اتباع د رسول ته روستو د بیان د توحید نه، چونکه شبه کیدلے شوه چه ابراهیم علیه السلام پلار ته وائی فَاتَّبِعْنِي، دا خو بے ادبی ده نو اول ئے علت د اتباع ذکر کړو۔

قَدْ جَاءَنِي مِنَ الْعِلْمِ، یعنی ما ته وحی راغلے ده، او اشاره ده چه په اتباع د نبی کښ هدایت د صراط مستقیم منحصر دے۔

الشَّيْطٰنَ ؕ اِنَّ الشَّيْطٰنَ كَانَ لِلرَّحْمٰنِ

دَ شیطان ، یقینًا شیطان دَ رحمان نه

عَصِيًّا ﴿۴۴﴾ يٰۤاَبَتِ اِنِّيْۤ اَخَافُ اَنْ يَّمَسَّكَ

نافرمان دے۔ اے پلاره زما یقینًا یره کوم چه او به رسي تا ته

عَذَابٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ فَتَكُوْنَ

عذاب دَ طرف دَ رحمن نه نو شے به ته

لِلشَّيْطٰنِ وَلِيًّا ﴿۴۵﴾ قَالَ اَرَاغِبٌ

دَ شیطان ملګرے۔ اُوئیل پلار آیا مخ ګرځوے

۴۴: په دے کښ نهي ده دَ اتباع دَ شیطان نه، که انسي وي او که جني وي ځکه چه هغه منع کول کوي دَ توحید او دَ اتباع رسول نه چه دواړه مخکښ بیان شول، او دے آیت کښ عبادت په معنی دَ طاعت دے لکه په سورة یٰس ۶۰ کښ دے۔ اشاره ده چه اطاعت دَ غیر الله په تحلیل او تحریم کښ بے دلیله داعبادت دَ هغه دے۔

عَصِيًّا، اشاره ده چه دَ هیڅ عاصي اطاعت په هیڅ عصیان کښ جائز نه دے۔

اَنْ يَّمَسَّكَ، دَ مس نه مراد جوخت کیدل دي او هغه به همیشه وي۔

وَلِيًّا، او شیطان خو امداد دَ خپل دوستانو سره نشي کولے نو دا ولایت دَ هغه بے فائدے دے۔

۴۵: په دے آیت کښ تخویف دے او علت دے دَ پاره دَ نهي دَ اطاعت الشیطن نه چه مخکښ آیت کښ ذکر شوه۔

فائده: په دے څلورو آیاتونو کښ دَ دعوت طریقه او ترتیب ذکر شوے دے۔

أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ ۖ

آیا ته ( زما د معبودانو نه ) ای ابراهیم

لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ ۖ

که چرې منع نه شوې ته نو په کانړو به دې اولم

وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا ﴿٤٦﴾ قَالَ سَلَامٌ

او لرې شه زما نه ډیره موده. اُووئیل ابراهیم علیه السلام سلام دې وي دې

عَلَيْكَ ۖ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي ۖ

تا ته زر دے بخښنه به غواړم تا لره د رب خپل نه،

إِنَّهُ كَانَ بِي حَفِيًّا ﴿٤٧﴾

یقینًا هغه په ما باندے ډیر مهربان دے۔

ملا :- په دے آیت کښ ذکر د تشدد د پلار دے په ابراهیم علیه السلام باندے اول زورته دویم دباؤ کول په رجم سره دریم شړل د هغه۔

آلِهَتِي، کښ اشاره ده چه پلار د ابراهیم علیه السلام د ډیرو الهو عبادت کوؤ او دا رنګ الهه ئے د نورو خلقو د پاره جوړول او هغوی ته به ئے دعوت د شرک ورکوؤ یعنی ضال هم وؤ او مضلِ هم وؤ۔

لَأَرْجُمَنَّكَ، د دے دوه معنے دی اوله معنیٰ په کانړو سره ویشتل او دویمه معنی کنځل کول۔

مَلِيًّا، ډیره موده همیشه یا سالمًا بیچ چه تا ته تکلیف او نه رسیږی زما د طرف نه۔

ملا :- په دے کښ اشاره ده چه ابراهیم علیه السلام د تشدد په مقابله کښ نرمی کړے ده۔ او دلته د سَلَامٌ، نه مراد تحیه نه ده بلکه متارکت (پریخودل) دی په دغه طریقه سره څکه چه کافر باندے ابتدا د سلام اتفاقًا منع ده نو معنی دا ده چه

وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ

او په ډډه کيږم ستاسو نه او د هغه چا نه چه تاسو ورته رامدشه وائ

مِنْ دُونِ اللّٰهِ وَادْعُوا رَبِّيْ ۖ

سوا دَ الله تعالیٰ نه ، او دُعاء غواړم دَ رب خپل نه

عَسٰٓى اَلَّآ اَكُوْنَ بِدُعَآءِ رَبِّيْ

امید دے چه نه یم زۀ په وجه دَ دعا غوختلو دَ رب زما نه

شَقِيًّا ﴿۴۸﴾ فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا

بدبخته (محرومه)- نو هرکله چه ډډه یئ اوکړه دَ دوی نه او دَ هغه چا نه

(زما ستا نه په خیر او سلامتیا سره جدا کیدل دی) او دا طریقه دَ نیکانو ده لکه سورة فرقان ۶۳ آیت او قصص ۵۵ آیت کښ دی - او دَ سلام اقسام په تفسیر دَ سورة انعام ۵۴ آیت کښ تیر شوی دی -

او سَاَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيْ ، دَ دے تشریح په تفسیر دَ سورة توبه ۱۱۳ کښ تیره شویده -

۴۸ : په دے آیت کښ ذکر دے دَ براءت دَ ابراهیم علیه السلام دَ مشرکانو نه او دَ هغوی شرکی طریقو نه هم - په دیکښ اشاره ده چه موحد باندے پس دَ دعوت دَ توحید نه لازم دی چه دَ مشرکانو او دَ هغوی دَ طریقو نه براءت کوی -

وَاَدْعُوْا رَبِّيْ ، دَ دینه مراد دعا دَ استغفار ده دَ پاره دَ پلار - یا مراد دَ دینه طلب کول دی دَ اولاد دَ پاره دَ ملګرتیا دَ دعوت دَ توحید لکه سورة صافات ۱۰۰ کښ راغی یا مراد دَ دینه نه عامه دعا ده چه مختص ده په رب تعالیٰ پورے په دے آیتونو کښ اشاره ده چه براءت دَ پلار نه په دے طریقے سره سبب دَ عقوق نه دے -

يَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۚ وَهَبْنَا

چه دوی ئې بندګي کوله سوا د الله تعالی نه او بخښلو مونږ

لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ وَكُلًّا

ده ته اسحاق او يعقوب ، او هر يو

جَعَلْنَا نَبِيًّا ﴿۴۹﴾ وَوَهَبْنَا لَهُمْ

مونږ مقرر کړے وو پیغمبر - او بخلے وو مونږ دوی ته

مِّنْ رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ

ډیره د رحمتونو خپلو نه او ګرځولے وو مونږ دوی لره

لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ﴿۵۰﴾ وَاذْكُرْ

ذکر نیک او چت - او یادکړه دوی ته د نصیحت په طور

فِي الْكِتٰبِ مُوْسٰۤى ۚ اِنَّهٗ كَانَ

په دے کتاب کښې حال د موسی یقینًا هغه

۴۹، ۵۰ :- د براءت کولو په وجه الله تعالی په ده باندے څلور انعامات ذکر کوی -

ع۱ :- اسحاق ځوئے او یعقوب نوسے هبه کول او د اسماعیل علیه السلام ذکر ئې ورسره او نکړو ځکه هغه د پلار نه جدا شو په وړو والی کښې او دا رنګ د هغه ذکر روستو مستقل کوی -

ع۲ :- هغوی لره نبوت ورکول مدح او ثنا او نیک ذکر په روستو خلقو کښې جاری ساتل -

او عَلِيًّا ، کښې اشاره ده عموم د دغه ذکر حسن ته په ټولو ملتونو کښې - نو اشاره ده د شرک او د مشرکانو نه په براءت کولو سره ډیر انعامات حاصلیږی -

مُخْلَصًا وَّكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ﴿٥١﴾

پاک ساتلے شویوؤ او وؤ رسول نبی۔

وَنَادَيْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ

او آواز ورکړو موږ هغه ته د ښی طرف د طور

الْاَيْمَنِ وَقَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا ﴿٥٢﴾

غر نه او نژدې کړے وؤ موږ دے راز دار۔

وَوَهَبْنَا لَهٗ مِنْ رَّحْمَتِنَآ اَخَاهُ

او بخلے وؤ موږ ده ته د وجې د رحمت زموږ نه ورور ده

هٰرُوْنَ نَبِيًّا ﴿٥٣﴾ وَاذْكُرْ فِى الْكِتٰبِ

هارون نبی۔ او یاد کړه د نصیحت په طور په کتاب کښی

۵۱، ۵۲، ۵۳۔ دا د څلورم شبهے جواب دے، شبهه په باره د موسیٰ علیه السلام کښی ده چه د موسیٰ علیه السلام د ډیرو معجزاتو نه دلیل نیسی د هغه په قدرت او تصرفاتو باندے او الله تعالیٰ سره یې شریکوی حاصل د جواب دا دے چه موسیٰ علیه السلام په ټولو کمالاتو کښی الله تعالیٰ ته محتاج وؤ په دے آیاتونو کښی کلمه د (نا) دلالت کوی په دے باندے۔ او په دے آیاتونو کښی د موسیٰ علیه السلام شپږ صفات او کمالات یې ذکر کړی دی۔

مُخْلَصًا، نه مراد غوره کړے شوے او د ګناهونو نه پاک ساتلے شوے۔ په دے کښی اشاره ده عصمت د هغه ته۔

رَسُوْلًا نَّبِيًّا، مراد دا چه دواړو صفتونو کښی نسبتی فرق دے یعنی رسول من جانب الله او نبی الی الخلق۔

مِنْ رَّحْمَتِنَا، کښی مطلب دا چه د ده دعا په باره د ورور کښی قبلول دا د الله تعالیٰ رحمت دے دا څه زور د هغه په الله تعالیٰ باندے نه وؤ۔

إِسْمٰعِيْلَ إِنَّهٗ كَانَ صَادِقَ

اسماعیل یقیناً دے وۀ رشتینے

الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ﴿۵۴﴾

لوظ والا او وۀ دے رسول نبی -

وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهٗ بِالصَّلٰوةِ

او دۀ به حکم کوۀ تابعدارو خپلو ته دَ مونځ کولو

وَالزَّكٰوةِ وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهٖ

او دَ زکوٰة ورکولو او وۀ دے په نیز دَ رب خپل

مَرْضِيًّا ﴿۵۵﴾ وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ

غوره کړے شوے۔ او یادکره دَ نصیحت په طور په دے کتاب کښ

الاَيْمَنِ ، دا صفت دَ جانب دے۔ نَجِيًّا ، مفرد صیغه دَ خاوند دَ نجوی کولو (رازدار)۔

وَنَادَيْنٰهُ ، دَ دے تفصیل وړپسے سورة طٰه کښ ذکر کړے دے.

۵۴ ، ۵۵ :- په دے کښ جواب دَ پنځمے شبهے دے ، ځکه چه مشرکین مکه صورت دَ اسماعیل علیه السلام ئے په کعبه کښ کیخود لے وۀ او په لاس کښ ئے ورله ازلام دَ قسمت ورکړے وۀ عقیده ئے دا وه چه دے هم متصرف او واکدار دَ قسمتونو دے - حاصل دَ جواب په اثبات دَ عبدیت او دَ عجز دَ هغه دے په ذکر کولو دَ پنځه صفاتو سره -

صَادِقَ الْوَعْدِ ، صدق دَ وعدے دَ ټولو انبیاؤ صفت دے لیکن خصوصیت دَ اسماعیل علیه السلام په وجه دَ خاص واقعاتو سره دے لکه وعده دَ پلار سره دَ صبر علی الذبح دا رنګه وعده کول دَ یو کس سره او په هغه ځاے کښ درے ورځے انتظار کول دا روایت دَ ابوداؤد کښ دی۔

رَسُوْلًا نَّبِيًّا ، دا دلیل دے چه دَ رسول سره دَ نوی کتاب

اِدْرِيْسَ اِنَّهٗ كَانَ صِدِّيْقًا

ادریس یقیناً دے وؤ رشتینی

نَّبِيًّا ﴿٥٦﴾ وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴿٥٧﴾

نبی - او پورته کړے وؤ موږ ده لره مرتبے اوچتے ته -

موجودیدل ضروري نه دی خوچه دَ وحی په تبلیغ باندے دے مکلف وی نو رسول دے، او دا شرافت دَ اسماعیل علیه السلام په اسحق علیه السلام باندے دَ ځکه چه دَ هغه په صفت کښ رسول نه دے وئیلے شوے -

وَكَانَ يَاْمُرُ اَهْلَهٗ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ، مراد دَ دینه دَ هغه ټول اُمّتیان دی او هغه بنوجرهم قبیله وه، اشاره ده چه دعوت الی عبادة الله سره ئے ډیر محبت وؤ هر وخت کښ به په دیکښ مشغول وؤ -

مَرْضِيًّا، په دیکښ اشاره ده دَ هغه اخلاق حسنه ته -

۵۶، ۵۷ :- په دیکښ جواب دَ شپږمے شبهے دے چه دَ ادریس علیه السلام په باره کښ یهودیانو دروغ قصے مشهورے کړے دی بعضے صوفیانو وئیلی دی چه ادریس علیه السلام الیاس علیه السلام دے او دَ خضر علیه السلام پشان ژوندے دے او دَ خلقو دَ حاجا تو پوره کولو دَ پاره په اوچه زمکه کښ گرځی - دَ دے قصو نه معلومیږی چه دے هم قدرت او تصرف دَ الوهیت لری - حاصل دَ جواب دا دے چه په ده کښ دَ عبدیت صفات وؤ (صدیقیت او نبوت) او الله تعالی ته محتاج وؤ په رفعت دَ مرتبه کښ -

وَرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا، دَ دینه مراد اوچت والے دَ مرتبے دَ هغه دے په نیز دَ الله تعالی او دَ هغے په مقدار باندے الله تعالی عالم دے - یا مراد دَ دینه لیدل دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دی ده لره په شپه دَ معراج په څلورم آسمان کښ او دَ دینه علاوه نورے قصے دَ ده یعنی دَ مَلَکُ سره جنت ته

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ

دا هغه خلق دي چه انعام کړیوؤ الله تعالیٰ

عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ مِن

په هغوی باندے د انبیاؤ نه د

ذُرِّيَّةِ آدَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا

اولاد د آدم علیه السلام نه دي او د (اولاد) د هغه چا نه چه سواره کړیوؤ مونږه

مَعَ نُوحٍ وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ

د نوح سره او د اولاد د ابراهیم

وَإِسْرَائِيلَ وَمِمَّنْ هَدَيْنَا

او یعقوب نه وؤ او د هغه خلقو نه چه مونږ ورته هدایت کړیوؤ

وَاجْتَبَيْنَا ۚ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ

او غوره کړیوؤ مونږ ، هرکله چه لوستلے کیدل به په هغوی باندے

آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا

آیاتونه د رحمان نو غورځیدل سجده کوونکي

وَبُكِيًّا ۩ ﴿٥٨﴾ فَخَلَفَ مِن بَعْدِهِمْ

ژړا کوونکي - نو راغلل د دوی نه روستو

تلل او جنت کښ پاتے کیدل وغیره اسرائیلیات دي -

فائده :- قرآن کریم د ظاهر نه معلومیږي چه ادریس علیه السلام د ابراهیم علیه السلام نه روستو نبي وؤ او دا چه مشهوره ده چه د ده نوم اخنوخ وؤ او د نوح علیه السلام په دریم پشت کښ نیکه وؤ دا خبره هم صحیح ثابت نه ده -

۵۸ :- په دے آیت کښ دعوی د سورت ده یعنی عبدیت او عجز د انبیاؤ علیهم السلام او احتیاج د هغوی الله تعالیٰ ته

خَلْفٌ اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ وَاتَّبَعُوا

ناکاره ناځبان چه برباد ئې کړو مونځ لره او روان شو

الشَّهَوٰتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا ﴿٥٩﴾

په خواهش (دَ نفس) پسے نو زر دے چه مخامخ به شي سزا دَ سرکشئ ته -

یعني دوی په انعام (حمل په کشتئ کښې) او هدایت او اجتباء کښې الله تعالیٰ ته محتاج وُو - او عجز دا دے چه اولاد ئې وُو پلاران او نیکونه ئې وُو - او عبدیت دا دے چه الله تعالیٰ ته ئې سجده او ژړا کوله او پدے آیت کښې ئې دَ څلورو انبیاؤ نومونه پدے وجه سره ذکر کړی دی چه دوی آباء وُو یعني آدم علیه السلام اب اول وُو ، او نوح علیه السلام اب ثاني وُو دَ ټولو انسانانو او ابراهیم او اسرائیل علیهما السلام آباء دَ پیغمبرانو وُو -
اَنْعَمَ ، کښې اشاره ده نبوت ته - هَدَيْنَا ، کښې اشاره ده توحید ته - وَاجْتَبَيْنَا ، کښې اشاره ده نورو لویو صفاتو ته -

س٥٩ :- دا جواب دَ شبهے دے - شبه دا ده چه دَ انبیاؤ دَ واقعاتو نه معلومه شوه چه توحید صحیح دین دے نو دَ هغې نه دا مخالف ادیان څنګه پیدا شول - نو جواب اوشو چه دَ انبیاؤ علیهم السلام نه روستو ناکاره خلق په امت کښې پیدا شول او هغوی دَ انبیاؤ دین برباد کړے دے - او بربادول په دوؤ طریقو سره دی اوله طریقه ، اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ ، مراد تری نه ټول دین دے ځکه اضاعت دَ صلوٰة سره لازمیږی اضاعت دَ ټول دین - او مطلب دا دے چه طریقه دَ انبیاؤ ئې پریخودله - او دویمه طریقه وَاتَّبَعُوا الشَّهَوٰتِ ، مراد دا دے چه دَ خپل خواهشاتو موافق دین ئې ایجاد کړو حاصل دا چه توحید او سنت ئې پریخودل او شرک او بدعت او فسق و فجور پسے روان شول -
خَلْفٌ ، په سکون دَ لام سره ناکاره جانشین ته وائي -
غَيًّا ، دا نوم دَ یو وادئ (کندے) دے په جهنم کښې چه باقی جهنم دَ هغے دَ کرمئ نه پناه غواړی او یا په معنیٰ دَ سرکشئ

إِلَّا مَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ وَ

لیکن هغه خوک چه توبه ئې وویستلې ده د شرک نه او ایمان ئې راوړې او

عَمِلَ صَالِحًا فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ

عمل ئې کړې دے په طریقه د سنت نو دغه کسان به داخلیږی

الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ شَيْئًا ﴿۶۰﴾

جنت ته او ظلم به نه کیږی په دوی باندے هیڅ (ظلم) ۔

جَنّٰتِ عَدْنِ ۟الَّتِيْ وَعَدَ الرَّحْمٰنُ

جنتونه د همیشه اوسیدلو هغه چه وعده ئې کړیده رحمان

عِبَادَهٗ بِالْغَيْبِ ۭ اِنَّهٗ كَانَ

د بندګانو خپلو سره په غیب باندے ، (چه نه دی لیدلی دا جنتونه) یقینًا

وَعْدُهٗ مَاْتِيًّا ﴿۶۱﴾ لَا يَسْمَعُوْنَ

وعده د الله تعالی پوره کیدونکې ده ۔ نه به آوری

او د ګمراهۍ دے نو مراد تربنه جزاء الغی ده یا په معنی د خسران دے ۔

فائده :- سورة اعراف ۱۶۹ آیت کښ د هغه خلقو ذکر دے چه تیمګړی ملایان د بنی اسرائیلو وو او سبب د ګمراهۍ د هغوی حرص د دنیا دے ۔ او په دے آیت کښ ذکر د عامو خلقو دے چه دین ئې برباد کړے دے او سبب ئې جهل او اتباع د شهواتو دے ۔

اَضَاعُوا الصَّلٰوةَ ، بربادی د مونځ عامه ده پریخودل او د وختونو نه روستو کول او تعدیل د ارکانو تقصانی کولو ته شامل دے او د حسن بصری نه روایت دے چه جماعات د مونځونو پریږدی او په زمکو پسے شوی دی دا تول اضاعوا الصلوة کښ شامل دی ۔

۵۹ ، ۶۱ ، ۶۲ ، ۶۳ :- په دے کښ اشاره ده چه روستو

لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا إِلَّا سَلَامًا ۖ وَلَهُمْ

په هغې کښې بې فائدې خبرې نه اوري لیکن اوري به سلامونه، او دوی لره

رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَعَشِيًّا ﴿٦٢﴾

رزق د دوی دے په هغې کښې صباؤ او بیګاه ۔

تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ

دا هغه جنت دے چه ورکوو (بے عوضه) هغه چا ته چه وی

مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴿٦٣﴾

د بندګانو زمونږ نه هغه څوک چه وی تقوی (توحید) والا ۔

وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ۖ

او(روائی ملائک) مونږ نه شو راکوزیدے مګر په حکم د رب ستا

لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا

د هغه اختیار کښې دی هغه څه چه زمونږ نه مخکښې دی او هغه چه روستو دی

د انبیاؤ نه بعضے خلق صالحین هم شته او د هغوی صفات ئے بیان کړل او هغوی د پاره بشارت دے په اوګو احوالو د جنت سره ۔

إِلَّا سَلَامًا ، استثناء منقطع ده یعنی لکن یسمعون سلامًا او مراد ترینه سلام د ملائکو او سلام د الله تعالیٰ دے او مطلب ئے دا دے چه نه به اوری په هغې کښې مګر داسې خبرے چه محبوبے وی۔

بُكْرَةً وَعَشِيًّا ، په معنی د دوام او د همیشوالی دے په دلیل د سورة واقعه ۳۳ سره او ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه مقدار د ورځے او د شپې مراد دے ځکه چه جنت کښې بکرة او عشی او شپه نشته دے او آخری آیت کښې سبب د استحقاق د جنت ئے ذکر کړیدے چه هغه تقوی ده ۔

وَمَا بَيْنَ ذٰلِكَ ۚ وَمَا كَانَ رَبُّكَ

او هغه چه په مینځ دَ دے کښ او نه دے ستا رب

نَسِيًّا ﴿۶۴﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

هیرووںکے - رب دَ آسمانونو او دَ زمکے دے

وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ

او دَ هغه څه چه دَ دے په مینځ کښ دی نو بندګی خاص کړه هغه لره او ځان کلک لره

لِعِبَادَتِهٖ ۚ هَلْ تَعْلَمُ لَهٗ

بندګئ دَ هغه نه ، آیا پیژنے ته هغه لره

سَمِيًّا ﴿۶۵﴾ وَيَقُوْلُ الْاِنْسَانُ

همنامے (هم صفتے) او وائی انسان (کافر)

۶۴ ، ۶۵ :- خلاصه : په دے دوه آیاتونو کښ دَ سورت دوبم باب دے په دے کښ بیان دَ عجز دَ ملائکو دے او احتیاج دَ هغوی په ټولو حالاتو کښ ذکر کوی حتی چه زمکے ته راکوزیدلو کښ الله تعالیٰ ته محتاج دی او رد دَ شرک فی العبادة ئے کړیدے او اشاره ده رد دَ مشرکین بالملائکه ته -

تفسیر :- دا آیت حکایت دے دَ قول دَ جبرئیل علیه السلام چه نبی صلی الله علیه وسلم ورته وئیلی وُو (مایمنعك ان تزورنا اکثر مما تزورنا) نو دا آیت نازل شو - او ربط دَ آیت دا دے چه دا تیر شوے کلام صادق دے ځکه دا جبرئیل علیه السلام راوړیدے په امر دَ الله تعالیٰ سره -

لَهٗ ، یعنی الله تعالیٰ لره تصرف او علم دَ دے ټولو حالاتو دے - مَا بَیْنَ اَیْدِیْنَا ، نه مراد حالات دَ دنیا دی - وَمَا خَلْفَنَا ، نه مراد حالات دَ آخرت دی -

وَمَا بَيْنَ ذٰلِكَ ، مینځ دَ دواړو شپیلو مراد دے - سَمِيًّا ، ابن کثیر په روایت دَ ابن عباس رضی الله عنهما سره لیکلی دی

أَءِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ

آیا هرکله چه زهٔ مړ شم نو خامخا زر به راوبستلے کیږم زهٔ

حَيًّا ﴿٦٦﴾ أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنسَانُ

ژوندے - آیا نه دی یاد دے انسان ته

چه دَ الله تعالیٰ نه سِوا هیڅوک په رحمان سره نشی مسمی کیدے - او بیا تفریع ده دَ توحید فی العبادت په اثبات دَ توحید دَ ربوبیت باندے -

فَاعْبُدْهُ ، توحید دَ فی العبادة باندے امر دے او وَاصْطَبِرْ ، کښ نفی دَعبادت دَغیر الله نه او دوام دَعبادت دَ الله تعالیٰ مراد دے -

س٦٦ ، خلاصه :- دَ دے آیت نه تر آخر دَ سورت پورے دریم باب دے په دیکښ شپږ زجرونه دی ، زجر اول په انکار دَ بعث بعد الموت په س٦٦ ، س٦٧ کښ بیا تخویف اخروی دے دَ س٦٨ نه تر س٧١ پورے ، بیا بشارت دے په س٧٢ کښ - او دویم زجر په استکبار بالدنیا سره دے په مقابله دَ قرآن کښ په س٧٣ کښ بیا تخویف دنیوی دے س٧٤ ، س٧٥ کښ ، بیا بشارت په س٧٦ کښ او دریم زجر دعوی دَعزت په سبب دَ شرک سره په س٧٧ ، س٧٨ کښ - او بیا تخویف اخروی س٧٩ ، س٨٠ کښ او څلورم زجر په اتخاذ دَ الهه باطله دَپاره دَ نصرت او دَعزت په س٨١ کښ او تخویف په س٨٢ او پنځم زجر په اتباع دَشیطان په س٨٣ ، س٨٤ کښ ، بیا بشارت په س٨٥ کښ او تخویف په س٨٦ کښ او رد دَ شفاعت قهریه په س٨٧ کښ او شپږم زجر په اتخاذ الولد دَ س٨٨ نه س٩٢ پورے - بیا دعوی دَ سورت په س٩٣ ، س٩٤ ، س٩٥ کښ - بیا بشارت دے په س٩٦ کښ او بیا ترغیب الی القرآن دے په س٩٧ او تخویف دنیوی په س٩٨ کښ -

تفسیر :- س٦٦ په دے آیت کښ زجر دے په انکار دَ بعث بعد الموت او استفهام انکاری دے -

أَنَّا خَلَقْنَٰهُ مِن قَبْلُ وَلَمْ

چه یقینًا پیدا کړے وو موږ دے وړاندے دَدینه او نه وو

يَكُ شَيْـًٔا ﴿٦٧﴾ فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ

دے هیڅ شے . نو قسم دے ستا په رب باندے ضرور به یوځائے کړو دوی لره

وَالشَّيَٰطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ

او شیطانانو لره بیا به ضرور حاضر وو دوی لره

حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴿٦٨﴾ ثُمَّ

چاپیره دَ جهنم نه په زنګونو باندے پراته . بیا به

ربط :- دا دے چه دَ ابتدا دَ سورت نه رد ووُ په شرک دَ مشرکانو باندے په ذکر دَحالاتو دَ انبیاؤ او ملائکو سره نو اوس رد کوی دَ مشرکانو په بله عقیده باندے چه انکار دے دَ بعث بعد الموت نه .

۶۷ :- په دے کښ رد دے په منکرینو دَ بعث باندے او اثبات دَ بعث دے په دلیل دَ اول ژوند سره او دا سے دلیل په سورة اعراف ۲۹ او سورة یٰس ۷۹ کښ هم موجود دے .

۶۸ :- په دیکښ قسم دے په اثبات دَ حشر باندے او بیا تخویف اخروی دے ، او قسم کول دَ الله تعالیٰ په خپل ذات باندے دَ پاره دَ اثبات دَ قیامت په قرآن کریم کښ څلور کرته ذکر دے یو کرت په سورة یونس ۵۳ کښ . دویم کرت په سورة سبا ۳ آیت کښ . دریم کرت سورة التغابن ۷ آیت کښ . او څلورم کرت دلته .

وَالشَّيَٰطِينَ ، انسی او جنی دواړو ته شامل دے .

جِثِيًّا ، په زنګنانو باندے ناست وی دَ ډیر هیبت دَ وجے نه یا دَ دے وجے نه چه دوی په دنیا کښ خپلو معبودانو ته به دغسے پراته وو یا جثیًا په معنی دَ جماعتونو سره دے .

لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ

را اوکاږو مونږ د هرې ډلې نه

أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴿٦٩﴾

کوم یو د دوی چه ډیر سخت وو په رحمان باندې په نافرمانئ کښ۔

ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِالَّذِينَ هُمْ

بیا مونږ ښه خبر یو په هغه کسانو چه هغوی

أَوْلَىٰ بِهَا صِلِيًّا ﴿٧٠﴾ وَإِن مِّنكُمْ

ښهٔ حقدار وی جهنم ته د داخلیدلو۔ او نشته ستاسو نه څوک

إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ

مګر ورځي به جهنم ته دا ستا په رب باندې

حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾ ثُمَّ نُنَجِّي

ضروری فیصله کړیشوې۔ بیا به بچ کړو مونږ

۶۹:۔ دا هم داخل دے په تخویف اخروی کښ۔ او أَيُّهُمْ أَشَدُّ، کښ هغه سرکش مراد دے چه دوی د هغه تقلید کړے وو هغه ضال او مُضِل دواړه دی۔

۷۰:۔ دا هم په تخویف اخروی کښ داخل دے او مراد د دینه اهل شرک دی که کشران وی او که مشران وی یعنی الله تعالی حقدار د جهنم ښهٔ پیژنی۔

۷۱، ۷۲:۔ دا هم تخویف اخروی دے۔ وَارِدُهَا، په یکښ توجیهات دی،

اوله توجیه دا ده چه ورود په معنی د دخول دے یعنی هر مؤمن او مشرک به جهنم ته داخل کړے شی مؤمن به صرف د سیل د پاره او مشرک د عذاب د پاره نو آیت ۷۲ کښ بیا د هغے تفصیل دے نجات د مؤمنانو، او خلود د ظالمانو

الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَّنَذَرُ الظّٰلِمِيْنَ

هغه کسان چه دَ شرک نه يې ځان ساتلے وو او پرېږدو مونږ ظالمانو لره

فِيْهَا جِثِيًّا ﴿۷۲﴾ وَإِذَا تُتْلٰى

په هغې کښ په زنګونو باندے پراته - او کله چه اولوستلے شي

عَلَيْهِمْ اٰيٰتُنَا بَيِّنٰتٍ قَالَ

په دوي باندے آياتونه زمونږ صفا صفا وائي

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

هغه کسان چه کافران دي هغه کسانو ته چه ايمان والا دي

اَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا

چه کم يو زمونږ او ستاسو نه ښۀ ځائے والا دے

وَّاَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿۷۳﴾ وَكَمْ اَهْلَكْنَا

او ښائسته مجلس والا دے - او ډير هلاک کړيدي مونږ

او په دے توجيه کښ خطاب دَ منکم عام دے مؤمنانو او کافرانو ته - دويمه توجيه دا ده چه ورود په معنٰى دَ ورتيريدلو دے يعنى تاسو ټول به دَ جهنم دَ پاسه ورتيريږي په دے کښ هم خطاب عام دے - دريمه توجيه دا ده چه منکم خطاب صرف کافرانو ته دے او ورود په معنٰى دَ دخول سره دے او ثُمَّ، دَ پاره دَ تعقيب ذکري دے - څلورمه توجيه ورود په معنٰى دَ اطلاع او دَ قرب دے يعنى تاسو ټول به دَ جهنم نه خبر شئ -

اَلَّذِيْنَ اتَّقَوْا ، مخکښ هم تيرشول په ۶۳ آيت کښ چه جنت په تقوى سره ورکوى -

۷۳ :- دے آيت کښ دويم زجر دے په استکبار بالدنيا په مقابله دَ قرآن کښ يعنى چه قرآن لوستلے کيږي نو دوى

قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ

وړاندې د دوی نه قومونه د ډیرو زمانې چه هغوی خائسته

أَثَاثًا وَرِءْيًا ﴿۷۴﴾ قُلْ مَنْ كَانَ

سامان والا وو او شکل والا وو. ته اُوایه څوک چه وی

فِي الضَّلَالَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمَٰنُ

په ګمراهئ کښ نو مهلت به ورکړی هغه لره رحمان

مَدًّا ۚ حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ

مهلت تر دې پورې چه کله اُوینی دوی هغه چه دوی سره وعده کیدیشی

إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ ط

یا عذاب او یا قیامت ،

فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَّكَانًا

نو زر ده چه پوهه به شی چه څوک دې بدحال والا

د دنیا په څیزونو او د دنیا په لویو مکانونو او خائسته مجلس باندې تکبر کوی او ترقی د دنیا د ځان د حقانیت د پاره دلیل جوړوی۔

ملکے: په دې کښ تخویف دنیوی دې چه په دنیا باندې تکبر ولې کوئ ځکه چه ډیر دنیا دار مشرکان هلاک کړې شوی دی او مال د دنیا سبب د هلاکت دې۔

اَثَاثًا، سامانونه د کور او د مجلس او ډیر مالونوته هم وئیلې شی۔

وَرِءْيًا، صورت او شکل او سامان د ریا ته هم وئیلې شی۔

وَّ اَضۡعَفُ جُنۡدًا ﴿۷۵﴾ وَ یَزِیۡدُ اللّٰهُ

او ډیر کمزوری لښکر والا - او زیاتوي الله تعالی

الَّذِیۡنَ اهۡتَدَوۡا هُدًی ؕ وَ الۡبٰقِیٰتُ

هغه کسانو لره چه هدایت موندونکي دي نور هدایت، او همیشه والی والا

الصّٰلِحٰتُ خَیۡرٌ عِنۡدَ رَبِّکَ ثَوَابًا

نیک عملونه ډیر غوره دي په نیز دَ رب ستا په بدله کښ

وَّ خَیۡرٌ مَّرَدًّا ﴿۷۶﴾ اَفَرَءَیۡتَ الَّذِیۡ

او غوره دي په ځائے دَ ورګرځیدلو - آیا ته خبر یې دَ هغه چا په حال باندے

ف۷۵ :- په دے آیت کښ علت دَ دے ذکر کړے شوے دے چه دے کافرانو له دَ دنیا مالونه او زینت دَ دے وجے نه ورکړے شوی دے چه الله تعالی داسے ګمراهانو له مهلت ورکوي لکه سورة العمران ف۱۷۸ او سورة مؤمنون ف۵۵ کښ دي۔

فَلۡیَمۡدُدۡ ، امر په معنی دَ خبر دے یعنی مهلت ورکوي دا خبریه ده یا په معنی دَ دعا دے او ابن جریر وئیلی دي چه دا مباهله ده دَ مشرکانو سرکشانو سره۔

او شَرٌّ مَّکَانًا وَّ اَضۡعَفُ جُنۡدًا ، په مقابله دَ دے قول کښ دے خیر مقامًا واحسن ندیا۔

ف۷۶ :- او په دے آیت کښ بشارت دے هغه مؤمنانوته چه قرآن (ایات بینات) بیانوی کوم چه په ف۷۳ آیت کښ ذکر دي او دا مقابل دَ فلیمدد دے یعنی دَ هغوی سرکشی زیاتیږي او دَ مؤمنانو ایمان زیاتیږي او دا دلیل په اثبات دَ زیادت دَ ایمان دے۔

وَ الۡبٰقِیٰتُ الصّٰلِحٰتُ ، داسے په سورة کهف ف۴۶ کښ تیر شویدي هلته ئے املا ذکر کړو په رد دَ هغه چا کښ چه مالونه او ځامنو ته امید ونه دَ نفع لري نو ځکه ئے املا وئیلے وو او دلته دا مقابل دے دَ شر مکانًا سره او مردًا هم مکان دے یعنی جنت دے۔

كَفَرَ بِاٰيٰتِنَا وَقَالَ لَاُوْتَيَنَّ

چه کفر یې کړ یدے په آیاتو زمونږ او وائی چه ضرور راته به کړ شی مال او

مَالًا وَّوَلَدًا ﴿۷۷﴾ اَطَّلَعَ الْغَيْبَ

مال او اولاد - آیا خبر دے دَغیب په خبرو باندے

اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا ﴿۷۸﴾

یا اخستے دے ده په نیز دَ رحمٰن لوظ (دَ نجات) -

كَلَّا ۚ سَنَكْتُبُ مَا يَقُوْلُ وَنَمُدُّ

هیچرے داسے نه ده ضرور لیکو مونږ هغه خبرے چه دے وائی زیاته وړو

لَهٗ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴿۷۹﴾ وَّنَرِثُهٗ

ده لره دَ عذاب نه زیاتول - او آخر وابخلو مونږ دَ ده نه

۷۷ :- دا دریم زجر دے په تعزز او ترقی حاصلولو سره په سبب دَ شرک دَ آیت مطلب دا دے چه دا کافر وائی (لکه عاص بن وائل) کله چه زهٔ کلک یم په شرک باندے نو دَ دے معبودانو په برکت سره به ماله په دنیا او آخرت کښ ترقی حاصله شی - یعنی شرک سبب دَ عزت په دنیا او آخرت کښ گنړی۔

۷۸ :- دا جواب دَ قول دَ دغه مشرک دے - یعنی آیا دے په غیب باندے عالم دے غیب نه مراد دا قول دَ ده دے - لَاُوْتَيَنَّ مَالًا وَّوَلَدًا -

اَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا، دَ دے یو مطلب دا دے چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه ده سره وعده دَ نجات شویده - دویم مقصد دا دے آیا دَ ده عقیده دَ توحید شته دے چه په هغے سره عهد جنت دے -

۷۹ :- په دے آیت کښ زجر او تخویف دے - لفظ دَ کَلَّا، په قرآن کریم کښ درې دیرش کرته راغلے دے او دا ټول

مَا يَقُوْلُ وَيَاْتِيْنَا فَرْدًا ﴿۸۰﴾

هغه چه وائي او راځي به مونږ ته يواځې (بې اولاده بې ماله) .

وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اٰلِهَةً

او نیولے دي دوي سِوا دَ الله تعالى نه حقدار دَ بندګئ دے

لِّيَكُوْنُوْا لَهُمْ عِزًّا ﴿۸۱﴾ كَلَّا ط

دَپاره چه شي دوي دَپاره مددګاران ۔ چرے نشي کیدے،

سَيَكْفُرُوْنَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُوْنُوْنَ

زر دے چه انکار به اوکړي دَ بندګئ دَ دوي نه او شي به

عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿۸۲﴾ اَلَمْ تَرَ اَنَّآ

دَ دوي په خلاف کښ کوونکي ۔ آیا ته نه پوهیږے چه یقینًا

ع ۵ ۸

دَ قرآن په آخري نصف کښ راغلے دے او دا اول ځائے دے
او دَدے دوه معنے دي کله په معنی دَ حقًا سره وي او کله په
معنی دَ ردع سره وي او دلته په معنی دَ ردع دے ۔
سَنَكْتُبُ ، په دیکښ سین دَپاره دَ تاکید دے او مراد دَ دینه
لیکل دَ ملائکو دي دَ مَا يَقُوْلُ ، نه مراد هغه قول دے
چه په ۷۷ آیت کښ ذکر دے ۔
۸۰ :- په دیکښ هم تخویف اخروي دے ۔ مَا يَقُوْلُ ، دَ دینه
مراد هغه مال او اولاد دے چه دے دعوي کوي دَ هغے دَ بقاء
۸۱ :- په دیکښ څلورم زجر دے په الهه نیولو سره دَ دے
دَپاره چه دوي سره امداد اوکړي ۔
عِزًّا ، سبب دَ عزت او دَ نصرت په دنیا او آخرت کښ ۔
۸۲ :- كَلَّا ، دَپاره دَ ردع دے نو معنی دا شوه چه هیڅ چرے
دَ دوي امداد نشي کولے ۔
سَيَكْفُرُوْنَ بِعِبَادَتِهِمْ ، دیکښ دوه توجیه دي ۔ اوله توجیه
دا ده چه انکار به اوکړي الهه دَ بندګئ دَ مشرکانو نه او شي به

أَرْسَلْنَا الشَّيٰطِيْنَ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ

موږه وریږلدو شیطانان په کافرانو باندې

تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿۸۳﴾ فَلَا تَعْجَلْ

چه خوځوي دوي لره په خوځولو سره۔ نو تلوار مه کوه

عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴿۸۴﴾

په دوي باندې یقینًا شمارو موږ دوي لره شمارل۔

دوي باندې په ورځ دَ قیامت مخالف بیان کوونکي لکه سورۃ یونس آیت ۲۸ او سورۃ قصص آیت ۶۳ او سورۃ غافر آیت ۷۴۔ دویمه توجیه دا ده چه ضمیر دَ یستکفرون مشرکانو ته راجع دي یعني مشرکان په دَ الٰهو دَ عبادت نه انکار اوکړي او دَ هغوي مخالف به شي مګر په سورۃ انعام ۲۳ سورۃ نمل ۳۵ کښې دي، اوله توجیه غوره دَه او دا آیتونه په باره دَ هغه چا کښې دي چه ملائک او انبیاء او اولیاء ئې دَ الله تعالیٰ سره شریک کړي دي۔

سَيَكْفُرُوْنَ، کفر په معنی لغوی سره دے یعني انکار کول۔

۸۳:- په دې کښې پنځم زجر دے په اتباع دَ شیطان مطلب دَ آیت دا دے چه الله تعالیٰ مسلط کړي دي په کافرانو مشرکانو باندې شیطانان انسي او جني چه هغوي تیزه وي دوي لره په شرک او ګناهونو باندې او غصه کوي دوي لره په مقابله دَ موحدینو کښې۔

تَؤُزُّهُمْ، تیزوي دوي لره په شرک کولو سره، ګمراه کوي خوځوي په شان دَ خوځېدلو دَ کټوئ ګناه طرف ته ئې راکاږي دا ټولې معنې دي۔

اَزًّا، دا دَ ازیز المرجل نه اخستل شوې دے خوځېدل دَ کټوئ۔

۸۴:- په دې کښې او ګم تسلي ده په مهلت ورکولو سره او بیا تخویف دے چه الله تعالیٰ شماري ساه اخستل دَ دے خلقو او دا رنګ عملونه دَ دوي۔

فَلَا تَعْجَلْ، یعني عذاب دَ دوي دَپاره په تادئ سره مه غواړه۔

يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ

په کومه ورځ چه راجمع به کړو متقیان رحمان ته

وَفْدًا ﴿۸۵﴾ وَّنَسُوْقُ الْمُجْرِمِيْنَ

په حیث د میلمنو ۔ او به شړو مجرمان

اِلٰى جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿۸۶﴾ لَا يَمْلِكُوْنَ

جهنم ته تږی ۔ وس به نه لری

الشَّفَاعَةَ اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ

د سفارش کولو مګر هغه څوک چه اخستے دے په نیز

الرَّحْمٰنِ عَهْدًا ﴿۸۷﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ

د رحمٰن ذات لوظ ۔ او دوی وائی نیولے دے

ف۸۵ :- په دے آیت کښ بشارت دے او وَفْدًا ، نه مراد دا دے چه میلمانه د الله تعالیٰ به وی او سواره به وی په خائسته سورلو باندے ۔

ف۸۶ :- په دے آیت کښ تخویف اخروی دے او د وِرْدًا ، نه مراد تږی او پیاده بغیر د پیزار نه وړلے دے ۔

ف۸۷ :- په دے آیت کښ رد دے په شفاعت قهری شرکی باندے او په دے آیت کښ دریر توجیهات دی ۔

اوله توجیه دا ده چه اختیار نه لری دا مجرمان د شفاعت کولو هیڅ لره لیکن هغه څوک چه حاصل کړیدے عهد د توحید نو هغوی شفاعت کولے شی ۔ پدے توجیه کښ ضمیر د لا یملکون مجرمانو ته راجع دے او استثناء منقطع ده او استثناء د شفیع ده ۔

دویمه توجیه دا ده چه اختیار نه لری هیڅوک د شفاعت کولو بل چا لره مګر هغه څوک چه مؤحد وی ، پدے توجیه کښ ضمیر د لَا يَمْلِكُوْنَ ، عام دے الهوؤ باطل او مجرمینو او

متقینو ټولو ته راجع دے ۔ ځکه چه مخکښ دواړه ذکر دی او استثناء متصل ده او استثناء د شفیع ده ۔ او دریمه توجیه دا ده چه اختیار نه لری دا متقیان د شفاعت کولو هیچا لره مګر هغه چا لره چه موحد وی، په دے توجیه کښ ضمیر د لایملکون متقیانو ته راجع دے ۔ او په مَنْ کښ حرف لام پټ دے او دا استثناء د مشفوع له ده ۔ او عَهْدًا، نه مراد په اوله توجیه باندے اذن دے او روستو توجیهاتو باندے مراد توحید دے ۔

۸۸، ۸۹، ۹۰، ۹۱ ۔ په یکښ شپږم زجر دے په نسبت کولو د ولد الله تعالیٰ ته او د دے عقیدے ډیر قباحت ئے ذکر کړیدے. اول دا (اِدًّا) په معنی د ډیر ناکاره، یا ډیر درون دے ۔ دویم د دے قول ناکاره اثر په اسمانونو او زمکو غرونو باندے دے. مراد د دینه فنا د دے څیزونو او قیامت قائمیدل دی لیکن فنا شوی نه دی ځکه چه سبب د بقا هغه کلمه د توحید ده چه هغه په عالم کښ شته ۔ حدیث کښ راغلی دی چه قیامت به نه قائمیږی تر څو پورے چه په زمکه کښ کلمه د توحید ویلے کیږی. او په آیت کښ اشاره ده چه شرک سبب د فساد او د تباهئ دے ۔

اِنْ دَعَوْا لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا، د دے دوه معنے دی یو دا چه دعوا په

لِلرَّحْمٰنِ وَلَدًا ﴿۹۱﴾ وَمَا يَنْۢبَغِيْ

رحمان لره ولد (څوی) او نه ده مناسب

لِلرَّحْمٰنِ اَنْ يَّتَّخِذَ وَلَدًا ﴿۹۲﴾

رحمان لره چه اونیسی ولد ۔

اِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

نه دی هر هغه څوک چه دی په آسمانونو او زمکه کښ

اِلَّآ اٰتِي الرَّحْمٰنِ عَبْدًا ﴿۹۳﴾ لَقَدْ

مګر راځی رحمان ذات ته په بندګئ سره ۔ یقیناً

اَحْصٰىهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ﴿۹۴﴾

راګیر کړی دی الله تعالی دوی (په قدرت او په علم کښ) او شمار کړیدی په شمار سره۔

وَكُلُّهُمْ اٰتِيْهِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فَرْدًا ﴿۹۵﴾

او دا ټول به راځی الله تعالی ته په ورځ دَ قیامت کښ تور (یواځے)

معنیٰ دَ نسبت کولو دے یعنی چه دوی نسبت کوی رحمٰن ته دَ ولد ۔
دویمه معنی دا ده چه رامن دکوی ولد چه نسبت یې کوی الله تعالی ته
او حدیث صحیح کښ راغلی دی چه نسبت دَ ولد دَ الله تعالی ته دا کنځل کول دی
هغه ته ۔

سـ۹۲ :۔ لفظ دَ مَا يَنْۢبَغِيْ، په ښکاره ناجائز کښ استعمالیږی ۔ او لفظ دَ
لِلرَّحْمٰنِ، دلالت کوی چه ولد ته حاجت نه لری۔

سـ۹۳ :۔ پدے آیت کښ علت دَ ما ینبغی ذکر کیږی ۔ او دے آیت کښ
دعوی دَ سورت هم ده چه ټول انبیاء او اولیاء دَ الله تعالی عبدیت
کوونکی دی او عبد څو ولد نشی کیدلے ۔ اٰتِی ، نه مراد په دنیا کښ
دی ، یا په قیامت کښ لیکن اوله توجیه غوره ده ۔

سـ۹۴ :۔ دا اشاره ده چه دا ټول دَ الله تعالی په قدرت او علم کښ
راګیر دی او دَ دوی په جزئیاتو باندے هم علم لری ۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا

بیقینًا هغه کسان چه ایمان ئې راوړې دې او عمل ئې کړې دې

الصَّالِحَاتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمَٰنُ

نیک عمل زر ده چه پیدا به کړي دوی لره رحمان

وُدًّا ﴿٩٦﴾ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ

مینه (په زړونو د نیکانو کښ) نو یقینًا آسان کړې دې موږ دا قرآن په ژبه ستا

لِتُبَشِّرَ بِهِ الْمُتَّقِينَ وَتُنذِرَ

دې دپاره چه زیرې ورکړې پدې سره متقیانو ته او ویره ورکړې

بِهِ قَوْمًا لُّدًّا ﴿٩٧﴾

پدې سره قوم جګړه مار ته۔

۹۵:۔ دا هم بیان د عجز د دوی دې په ورځ د قیامت کښ۔

فَرْدًا، یعنی مال به ورسره نه وی او مددګار به ئې هم نه وی تش تور او یوازې به وی۔

۹۶:۔ په دې آیت کښ بشارت دنیوی دې کله چه مراد د وُدًّا، نه محبت په زړونو د صالحینو کښ واخستې شي لکه دا حدیث کښ ذکر شوې دې چه الله تعالی د چا سره محبت کوی نو جبرائیل علیه السلام ته او وائي د ده سره محبت کوه بیا ټول آسمان والو ته د هغه د محبت اعلان اوکړې شي بیا د زمکې والو (صالحینو) په زړونو کښ د هغه سره محبت پیدا کړې شي او دا حدیث امام بخاری او مسلم او احمد د روایت کړې دې۔ یا دا بشارت اخرویه دې چه مراد د وُدًّا، نه مقام د محبت شي یعني جنت۔

۹۷:۔ په دې کښ ترغیب دې قرآن ته د پاره د حاصلولو د ود۔

او آیت متعلق دے دَ ابتداء دَ سورت سره۔
بِلِسَانِكَ، مراد لغت عربیه دے یا نفس ژبه مراد ده چه نبي صلی الله علیه وسلم په تلاوت دَ قرآن کښ نه خطا کیدلو۔
لُدًّا، جمع دَ آلَدّ دَ ده سخت جګړمار، کوږ دَ حق لارے نه، ډیر دروغژن دا ټولے معنے مراد کیدے شي۔ او دَ دے اول مصداق دَ سورت کهف سرهٔ آیت کښ ذکر شوے دے۔
۹۸:۔ په دے آیت کښ تخویف دنیوی دے په ذکر دَ اقوامو مکذبو سره اجمالاً او سبب دَ هغے اعراض دے دَ قرآن۔
رِكْزًا، دَ رفتار په وخت دَ خپے کشار ته ویلے شي۔

تم بحمد الله و توفیقه تفسیر سورة مریم بیوم السبت ۹ رجب ۱۴۱۳ هـ ق (۲ جنوری ۱۹۹۳ء) فی بیت الاخ فی الله ابو عبد الله - ریاض - مملکة العربیة السعودیة

